پیل شوی ،تر څو یی امان الله خان لــــه هیواد نه لری کړ .

له تاسونه زما هیله داده چی خپلوولایاتو ته دبیر ته ورتگ په وخت کی ، خپلو قومونو او عزیزانو ته د ۱۳۵۷ کـــال دثور داووم بریالی انقلاب له امله زموږ دهیلو مر اتــب ورسوی ،او ورته ووایاست چی نور پــــه هیوادکی دظلم او تیری ماڼی نړیدلی دی.او نور دنادری دوری هغه تور اواستبدادیسیاست چی بی اتفاقی واچوه او حکومت وکړه ، او دخپلی بقا لپاره یی یو قوم دبل قوم په مقابل کی جنگاوه له منځه لاړ اوبیا به رانشی .
دافغانستان دموکراتیک جمهور یت دهرراز توپیر په وړاندی که دژبی ، سیمی بلــــه هره بڼه وی مبارزه کړی او وبه یی کړی.
هیله لرم تاسو وروڼه له والیا نو سره په روانو چارو کی همکاری وکړی . او کـــه چیری دهغوی په مربوطو چاروکی اشتباه کیږی له هغوی سره دهغو په له منځه وړلـو کـی مرسته وکړی .

نوی والیان ستاسو دخدمت لپاره دی، او ستا سو دهوسا یی او ستو نزو په لــــری کولوکی به له هیڅ ډول سر بښند نی اولــه ځانه تیر یدنی نه ډډه ونه کړی او دانقلاب دهرفونو سره سم به دټولنیزو فسادو نـــو دجرړو دله منځه وړلو ، په تیره بیادبډودله مینځه وړلو په لاره کی مبارزو وکړی . دغه مبارزه پیل شوی او نور به بډی اخیستنی نکی او بډی ور کوونکی ورك شی .

همدغه‌رازدافغانستان‌دموکراتیك‌جمهوریت دانقلابی شورا مشر او صدراعظم نورمحمد تره‌کی، دجوزا داومړی نیټی په ماز یگر په خلورنیموبجو،د پکتیا ولایت دمرکز گردیز، او گـــر دکوچیانو، دپروان دسرخ پارســا دولسوالــی‌او دپکتیا دولایت دځدرانو او منگلو دمشرانو له استاز یو سره دانقلابی شورا دمرکز پــه‌ڼ کـی وکتل، او له هغوی سره یی خبری وکړی .
۱ر۳ر۵۷

نن ورځ دافغانستان ډمو کراتیك دو لــت دهیواد در نځیدلی او محروم ولس دفرد، فرد دولت دی . اولکه چی تاسی وینی زموږنړدټول ولس ملاتړ ورسره دی .زموږ ډموکراتیك‌اوملی انقلاب دتاسو وطنپر ستانو دبچیا نو پــــه سر ښندنه ،او فدا کاری او دافغانستان‌دخلق ډموکراتیك گو ند په مشری په بری ســـره پای ته ورسید .دظلم دوره یی پای تـــــه رسولی ده ، او نور به دغه شان بی عدالتی ، نا برابری او توپیر په هره بڼه او ډول چـــی وی .زموږ په‌گران هیواد کی ځای ونه لری.
دافغانستان ډمو کراتیك جمهوریت لکــــه

چې دهغه داساسي وظيفو کړښې مووار يـدی دافغانستان دولس په خدمت کې دی .ددولت ټول کار کوونکی که وزيردی او يا والـی، نما يشی څيری نلری ، بلکـه دافغانستان، دتاسو نجيب ولس دخدمت لپاره ګمارل‌شوېدی تاسو ته ډاډ درکوم چې هغوی به زموږدنجيب ولس دهوسايني او آرامی او په پای کـــی دېو مترقی ،آزاد او خپلواك افغانستان پـــه لاره کې تر وروستی سلګی دهيـــخ ډول سر ښمند نی اوله ځا نه تير يدنی څخــــــه ډډه ونکړی .

په تير فاسد رژيم ، په تيره بياد دغـــی ظالمی کورنی دوروستی وا کدار په دوره کی دهيواد دولس او بيلا بيلو قو مونو تر مينځ بی اتفا قی ،او بدبينی راپيدا کيدله ، چـــی پدی ډول په هيواد کی خپله حکمرانی لاپسی ټينګه کړی .خود تاسو صد يقو بچيا نـــو دسلطنتی کورنی دغو فجايعو ته پەپام کو لو سره په پوره يوالی او اتفاق سره د۱۳۵۷کال دثور په اوومه نيټه په زړ ور او قهر مانا نـه پاڅون سره هغه محوه او بيخی ورکه کــــړه اوس پر تاسو ورو ڼو دەچی خپل وزرو نـــه پر انيزی، يو بل ته دمينی ،ورورری اوبرابری په ښه فضا کی په پوره اتفاق او يوو الــ سره لاسو نه ور کړی ،دهيواد دهو ساينـــی اوترقی اودخپل ملی او وګړنی انقلابدټينګښت لپاره زيار وباسی ، دافغانستان ټو لنه يـــوه هوســــــــا او مترقی ټولنه جوړه کړی .

# وروسته تردې به په دې خاوره کې

# ظالمان او ستمګران وجود ونلري

د انقلابي شورا مشر او صدراعظم نورمحمد تره کي د جوزا په دوهمه نيټه دسهار په نهو بجو دمومندو، کوډاخيلو، وزيرو، ماماخيلو ، مسعودو ، افريدو شينوارو ، بلوڅو اودوستي خيلو، کوچيانو دقومونو له سپين ږيرو او خلکوسره دانقلابي شورا دمرکز په ماڼي کي وکتل .

۲۰/۳/۵۷

لومړی تاسی ته دثور دستر انقلاب دبری مبارکي وايم او بايد ووايم چې ، ما او زما ملګرو پنځلس کاله زيات فشا رونــــــه او محروميتونه ومنل خو دخپل عــز م او هغــی لاري څخه چې غوره کړی موږه لاس وانخيست او په پای کی دخلق دډموکراتيک ګو نــــد په مشری دوطن پرستو ځوانا نو او ملـــــی قهر مان اردو په ميړانه د ۱۳۷۵ کال دثور د اوومی نيټی انقلاب وشو ، او په بری سره دنادر دسلطنتی وراسته رژيم او د داود دقلابی جمهوريت دظلم اوستم ماڼی ورانی شوی، او په هيواد کی ډموکراتيک جمهوريت ټينګ شو.

زه تاسی ته وعده درکوم ،چی وروسته تردی به پدغه خاوره کی ظالمان او ستمګران وجود ونلري ،ځکه دافغانستان دمو کراتيک جمهوری دولت ،دافغانستان دولس ،اود افغا نستان دولس په لاس کی دی . ا ودهغه هدف کارګــرانو، بزګرانــو او زيار کښو او زمــونږ ټــولــو شريفو هيواد والو ته خد مت کول دی.

مونږ له پاکستان سره دپښتنو او بلوڅو په باره کی يوه سياسی لانجه لرو ، او غواړو هغه دپښتنو او بلو څو په خوښه دخبرو اوسوله غوښتو نکی تفا هم له لاری حل کړو .

دامان الله خان په وخت کی په هيــوادکی شرايط په بل ډول و، خونن ورځ به مونــږ هيچاته اجازه ورنکړو وچی زمونږ په ضـــــد حرکت وکړی ،ځکه مونږ ددی قدرت لرو،هر هغه څوک چی زمونږ دانقلابی نظام په خلاف تخريب وکړی سر کوب کړو .

پخوا ارتجا عی دولتو نو زمونږ دولس ترمنځ

بی اتفاقی او تورپیر را پیدا کاوه ،او په خپله گټه یی له هغو څخه کار اخیست خو نن ورځ دغه تور سیاست بیخی له منځه تللی، او موږ هرقام اودهغو عنعنو ته پهدرنهسترگه گورو او ظلم اوستم به په هره سویه اوهره بڼه چی وی له مینځه یو سو .

زما ملگری پهملی نوامیسو ، عنعنو اودینی مقدساتو پابند دی ، خپل شپه ورځ به دهیواد والو خدمت ته وقف کړی ، خوديوه هوسا او مترقی افغانستان جوړ یدل دافغانستان دټول نجیب ولس همکاری ته ضرورت لری.

دافغانستان ډموکراتیک جمهوریت هیله لری ددغی خاوری دهر فرد فرد له پارهډوډی، کالی او کور برابر کړی . موږ دتاسی ملاتړ ددی له پاره غواړو چی ټول شیان د تاسو اوستاسو له پاره دی .

هغه اقدامات چی په څو ورومتیو ورځو کی دانقلاب دهڅ ونو په باره کی عملی شوی تظاهری بڼه نلری ،بلکه زموږ داساسیهدفونو څخه شمیرل کیږی .او غواړو پهنژدیراتلونکی وخت کی دخپل ولس او په تیره بیاد هیواد دلیرواوسپیڅلیو ولسونو دآرامی او هوساینی له پاره ستر گامونه پورته کړو .

په پای کی هیله کوم چی خپلو کلیو او بانډوته دستنیدو په وخت کی خپل ولس ته زما تاوده سلامونه ورسوی او یو ځل بیا هغوی ته داډ ورکړی چی دانقلاب ټول ملگری دهغوی دآرامی له پاره زیار باسی .







نورمحمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی وصدراعظم هنگام صحبت با موسفیدان واقوام مومند، کوداخیل ، ماماخیل ، وزیر، مسعود،شنواری، افریدی، بلوچو کوچیها درخانه‌خلق.

۵۷،۳،۲

# د هیواد د خلکو ستر اکثریت د خپل دموکراتیک جمهوری دولت ملاتړ کوی

دانقلابی شورا دمشر اوصدراعظم نورمحمدتره‌کی دهند د کرنت داوونیزی جریدی له خبریال سره مرکه . ۲۳ر۳ر۵۷

پوښتنه ـ

په افغانستان کی دموکراتیک او ملی انقلاب په دغه حساسه سیمه کی یوه ډیره ستره پیښه بلل کیږی غواړم ستاسو دانقلاب پراصلی هدف باندی پوه شم؟

ځواب ـ

دافغانستان دډموکراتیک اوملی انقلاب پیل نه یوازی زموږ دهیواد دولس په ملی ژوندکی یوه ستره او تاریخی پیښه شمیرل کیږی بلکه دنړی دولسونو د آزادی بخښونکو انقلابونو د بڼو لارو په گنجینه کی دبریالی انقلاب څخه یوه نوی بڼه او لاره زیاته کړای شوه دد یارلس سوه اوه‌پنځوسم کال دثور د اوومی نیټی دانقلاب د اصلی‌هدف په باره کی دافغانستان دډموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا تصویب زموږ دانقلابی وظیفو اساسی کرښو ته چه زما له خوا د راډیو افغانستان له لاری وړاندی شوی مراجعه وکړی .

پوښتنه ـ

دانقلابی وظیفو داساسی کرښو په باب موږ په خپله لومړی وینا کی وویل انقلاب د خلق ډموکراتیک گوند په وسله‌وال پوځ کښی دهغه دغړیو له‌خوا پلا نگذاری او اجرا کړ، په کومو اصولو غواړی دخپل هیواد سیاسی دموکراتیک بنسټ کیږدی ، لکه

چی معلومیږی دخلق ډموکراتیك گونداووسله وال پوځ په خپلو کی نژدی همکاری لری آیا دا پدی معنی ده چه پوځیان به په هیواد کی دیوه سیا سی رول سرته رسو لوتـــه دوام ور کړی ؟

ځواب ـ

د خپل هیواد سیاسی ډموکراتیك بنسټ دټولنی ددمو کرا تیکو اصو لو لهمخی دخپلی ټولنی دمشخصو شرایطو په تطبیق کی زموږ دوخت دمترقی ایډیالوژی داصولو او احکامو په اساس ټینگوو لکه چه زموږ دانقلابی وظیفو په اساسی کرښوکی په ډاگه شویده زموږ آزادی بخښو نکی اردو ډیر نسیپ په تو گـه دهیواد په سیاسی او اساسی ژوند اوفعالیتونو کی دافغانستان د نو رو اتباعو پـه شـان دپراخه گډون حق لری .

پوښتنه ـ

داموهم اعلام کړی چی غواړی خپل حکومت ته دموکراتیکه او نمایـنده لـرونکی بڼـه ور کړی یعنی انتخابات کوی په هغه صورت کی به آیا تریوه سیاسی گوند زیا تو تـه دځر گند یدو اجازه ورکړی .؟

ځواب ـ

دانقلاب دودی او بشپړ تیا دضـــرورت او ډمو کراتیکی ټو لنی دجوړولو داړتیا له مخی د علمی ژ و ر ی ځیـــر نـی او غـــو ر ورو سته به دیو گوند یز دوه گوند یـــز او تر هغو زیات سیستم دمنلو په باب تصمیم ونیول شی .

پوښتنه ـ

هیواد اوس دمر کزی جرگه گی اوانقلابی شورا له خوا اداره کیږی زما نظرداده چه دغه دوه حاکم رکنـونه په قـانونی حـرمـت ولری آیا څومره ژرغواړی نوی اساسی قانون جوړ کړی .؟

ځواب ـ

دافغا نستان دخلق ډمو کراتیك گو ندچـه په سر کی یی مرکزی کمیټه ده دهیواد چاری رهنما یی ،رهبری او کنترولوی دافغا نستـان دډمو کراتیك جمهوریت انقلابی‌شورااوحکومت دولتـی چاری اجرا او د انقلاب دقانونمنـــدی له مخی د افغانستان دولس حاکمیت تمثیلوی په جرئت سره ویلی شو چه دانقلاب پـــه او سنی حالت کی زموږ دهیواد دخلکو ستر اکثریت دخپل دمو کراتیك جمهوری دو لـت ملاتړ کوی چه دابه خپله په هیوادکی دیوی پراخی او رښتینی دمو کرا سی د شته والـی شکار ندوی دی دافغا نستان داسا سی قانـون دتدوین او دافغا نستان دولس دانقلابی شـــورا دجوړیدو په باب دانقلاب او ټولنی دحکم او شرا یطو سره ســـم او دافغا نستان دولس دارادی په اساس تصمیم نیول کیږی .

پوښتنه ـ

دخلق ډموکراتیك گوند ستا سو د گوند په مشری په اجتماعی اواقتصادی‌په تیره بیا دځمکی د اصلا حاتو او دملوك الطوا یفـــی دله مینځه وړلو په برخـــوکـــی دبدلونونو سملا سی نافذ یدنی ته ستر اهمیت ور کوی آیا تاسو به داداری دستگاه پرته ددغـــو بنیادی اقداماتو دعملی کیدو له پاره گوندی واحدونو ځخه هم کار واخلی ؟



دافغا نستان ددموکراتیك جمهور یتدخلقدموکراتیكگوندمرکزی کمیټی عمومی منشی اودانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمدتره‌کی دهندکــرنت اوونیزی جریــدی لــه خبر یال ایوب سید سره دمرکی‌پــه حال کــی ۱ر۳ر۵۷

---

ځواب ـ

دافغا نستان دخلق دموکراتیك گوند نـه یوازی دتاسو دپو ښتنی وړ مسا لو په برخه کی بلکــه ټولی چاری رهنمایی، رهبــری او کنترولوی .

پوښتنه ـ

دخلق دموکراتیك گوند غواړی د دو لــت ټوله دستگاه دانقلابی ضد او دمو کرا تیــك ضد عنا صر و ځخه پاکه کړی چه دیــوه دموکراتیك (سا لم) حکومت لەپاره لاره اواره کړی .

آیاد ابه دشکمنو پیو ستو نونو دلرونکـو خلکو دپوره تصفیی سبب شی ددغواشخا صو دقضاوت او برطرفی معیاربه څه وی ؟

ځواب ـ

په اداره‌کی دناسالمو عناصرو دبر طرفــی په برخه‌کی زمونږ دقضاوت معیار، سبوتاژ او دانقلاب په ضد عملی اقدام، فساد، بدنامی ، بډی خوړل، ظلم اوستم اوداداری په چاروکی دماموړینو بی کفایتی ده، سره له دی بایــد

ووایوچې زمونږ داداری اکثریت ماموریـــن بیطرف عناصر او یوه کسان دی چې دهغوی دنوی روزنی ، پرو گرام تر لاس لاندی دی اوله هغوی څخه دچارو د پرمخ بیولو لپـاره کار اخیستل کیږی .

پوښتنه ـ

آیا دخلق دموکراتیک گوند پرو گرام به چې په ۱۹٦٥ کال کی تصویب شودتاسو دټولو ملی سیاستونو لارښونه وکړی ؟

ځواب ـ

دافغانستان دخلق دموکراتیک گوندپرو-گرام دثور دا وومی نیټی دانقلاب څخه مخکی دیوه پړاو له پاره په علمی توگه تنظیم شوی وو چه خپل تاریخی رول یی ولو باوه اوس هم دهغه کلی اصول او ډیری نکتی زمونږ دگوند او دولت دعملی پرو گرام یوه برخـه دی چې البته په راتلونکی وخت کی به دنویو شرایطو لەمخی پەهغه کی نوی کتنه وشی.

پوښتنه ـ

دیوه پخوانی خبر یال په توگه حتمـــا دمطبوعاتو پر آزادی باندی عقیدەلری آیـا اوس ددولت دیوه رئیس په توگه دنظریوآزاد جریان ته اجازه ورکوی ؟

ځواب ـ

دافغانستان ولس دډموکراتیک پر گنو او قشرونو له پاره دموکـراتیک حقــوق او آزادی له دی جملی څخه مطبوعاتی آزادی زمونږ دپرو گرام یوه برخه ده چې پــــه راتلونکی وخت کی به تنظیم شی .

پوښتنه ـ

دشو روی اتحاد سره دتاسی اړیکی تـل ښه دی آیا ستاسو له دغـه ستر گاونـډی سره په اقتصادی او سیاسی اړیکو کی بیاهم دزیات نږدیوالی امکان شته ؟

ځواب ـ

له شو روی اتحاد سره زمونږ اړیکی تل ښه ؤاوښه بەوی په دغه برخه کی زمو نږ دانقلابی وظیفـــو اساسی کرښی څرگنـدی دی .

پوښتنه ـ

دانقلابی وظیفو داساسی کرښـو پـه باب موږه خپله ویناکی دهند هیواد ته یو خاص متا م ور کړ آیا کیدای شی هیله ولـــرو چې ستاسو حکومت به له هند سره دنژدی اړیکو په تیره بیا داقتصادی او فنی همکاری په بر خوکی دټینگښت له پاره ځینی ټاکلی اقدا مات وکړی ؟

ځواب ـ

هند دریم هیواد ؤچی دافغا نستان دموکراتیک جمهوریت یی په رسمیت وپیژاند مو نږ له هند سره د اقتصادی ، تجارتـــی، فنی او کلتوری اړیکو په گهون دخپلیدوستی هر اړخیزه پر اختیا غوا ړو هیله لرم چـــی تا سو دهند زیار کښ ولس او مشرانو تـه زما تاوده سلامونه ور سوی دافغا نستانو لس تل دهندنیکمرغی، ترقی، اوپرمختگ غوښتی او غواړی یی .

# دافغانستان اوسني دموكراتيك جمهوريت

# دولس جمهوريت دى

> د افغانستان دډموكراتيك جمهوريت دانقلابى شورا مشر او صدراعظم نورمحمد تره‌كى دجوزا دمياشتى دڅلورمى ورځى په مازيگر د جوزجان ولايت دقرقين ، آقچى ، منگجك ، سرپل اوسنگ چارك دولسواليو او د فارياب ولايت د اندخوى دولسونوله استازيو او دغه راز دننگرهار دخوگيانيو له مشرانو سره دانقلابى شورا دمركز په بڼ كى وكتل .
>
> ۵۷ر۳ر٤

زما گرانو عزيزانو !لوړى تا سو ته دزړه له كومى د ۱۳۷۵ كال دثور داوومى نيټى دبريالى انقلاب مباركى وايم . او زيرى در كوم چى نور به زمونږ په گران هيوادكى ظلم او ستم او دنژادى ، قومى او ژبنى توپير دولونه چى په تير فاسد رژيم كى زمونږ نجيب او شريف ولس ور سره لاس اوگريوان وبيخى له مينځه تللى ، او دهغو بير ته مينځ ته راتلل امكان نلرى .

ډموكراتيك جمهوريت چى زمونږ په گران هيواد كى دافغانستان دخلق ډموكراتيك گوند په مشرى دثور داوومى نيټى دبريالى انقلاب له امله ټينگ شو يدى ، زمونږ دټولو هيوادوالو سياسى كلتور دژبى اوعنعنو حقوق په مساوي ډول په نظر كى نيو لىاوپه دغه لاركى لازمى هلى ځلى كوى .

دايو تظاهر ندى بلكه دغه ټولى هلى ـ ځلى زمونږ دانقلاب بنسټو نه دى . مو نږ غواړو چى دهيواد ټولو ژبو ته پر اختياوركړو اودهيواد ټول ما شو مان په خپلو مورنيوژبو زده كړه وكړى او دژبى ټول ستمو نه له مينځه لاړ شى .

دافغانستان ډموکراتیک جمهوریت او دتاسو صدیق اور ښتینی بچیان به ټول هغه تفاوتونه او توپیرونه چی په پخوانی رژیم کی دهیواد دکار ګرانو او زیار ګاللیو خلکو داستثمار لپاره تری کار اخیستل کیده او زمونږ نجیب ولس یی دیوبل په وړاندی درولی ودخپل پایښت ستمو نو او ظلمونو لپاره یی لاره آواروله ،بیخی له مینځه یو سی .

ډموکراتیک جمهوری دولت دافغانستان دولس دولت اوزمونږ دکارګرانو، کروندګرو، زیارکښو، ولسونواو رنځیدلو خلکوپه خدمت کی دی .

هغه وخت چی دتوپیرونو جرړی وایستل شوی ،ستم اورنځ خپله په خپله له مینځه ځی ،او داد دی معنی لری چی پسر لی راځی ګلونه غوړیږی اوهر څوك خو شحالی کوی.

داتکراروم چی‌اوسنی ډموکراتیک جمهوریت دولس جمهوریت دی ،او زما هیڅ یو ملګری داهیله نلری چی شتمن شی او ماڼی جو ړی کړی .بلکه یوه ګوله ډوډی بەوخوری‌چی انرژی واخلی او دافغانستان دولس لپاره‌خدمت وکړی .ما اوزما ملګرو وعده کړیده چی له خپل ځان څخه خپل وطن ته دخدمت پەلارکی تیر شو او دافغان نجیب ملت په لاس دخپل هیواد دپاکی خاوری په سینه کی آرام وکړو، او دغه شان دولت چی دهغه درهبری کوونکی ګوند غړی دی ، دغه شان فکرکوی تعریف او توصیف ته ضرورت نلری .

مونږ دخپل ګوند مرا منامه څو ارلس‌ګاله مخکی خپره کړه او په هغی کی زمونږ کړ- نلاره څر ګنده ده .

زمونږ کړ نلاره داسی نده چی داؤد بـه ویل دغه شان کوم اوهغه شان کوم ،خوهیڅ یی ونکړل .مونږ به دخپلی همغی مرا منا می له مخی عمل وکړو .

مونږ یقین دراود چی دافغانستان دخلـق ډموکراتیک ګوند غړی چی انقلابی روزنه ورکړ شویده په یوی اشاری سره دتل لپاره‌دظلـم اوستم ماڼی ورانوی .

لکه چی ړنګی یی هم کړی او تاسودهغو شاهد یاست .

زمونږ په هیواد کی دظلم نظام او دظلـم اوبد بختیو ماڼی له مینځه یو وړل شوه .

دخلکو اوسنی دولت دافغانستان دمیلیتونو څخه جوړ شویدی .زمونږ دهیواد ټول ملیتونه په هغه کی له توپیر او امتیاز پرته بر خه لری .صلاحیت لری او زمونږ دواحد هیـواد ګران افغانستان ولس ته دخدمت هیله لری .

ما دیوه سپین ږیری په توګه هغه رهبری کړیدی هغوی وچی محرومیتونه یی ولیدل، شکنجی یی وایستلی او دهغوی دکار نتیجـه داده چی نن صلاحیت لری دوی وزیران دی‌او دافغانستان دولس لپاره کا رکوی .



دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کی دفاریاب ، جوزجان اودخوزیانیو دخلکو سره دخبروپه وخت کی .

۵۷٫۳٫٤

مونږ له هغو ټولو هیواد وسره چی زمونږ انقلابی رژیم یی په رسمیت پیژندلی دیدوست یو او وبه اوسو ، اوهر هیواد چی دگـــران هیواد افغانستان هو ساینی او لوړتیا پـــه مقصد زمونږ دپروگرامو نو په پرمخ بیو لوکی دقید اوشرط پرته مالی مرستی وکړی، دهغـه هرکلی کو و ،خود اد دی معنی نلری کـــه چیری له دغو هیوادو څخه یو له موږ سره مرسته ونه کړی موږ له هغه سره دوســت نه یو .

اوس تاسی دظلم اوستم څخه خلاص شوی یاست ،تاسی ددولت او دولت دتاسو دی،داسی ظالمان وچی ځان اوپردی یی نه‌پیژندل ، خوزه تاسی ته ډاډ درکوم او تاسی به په عمـل کی وو ینیچی دافغانستان ډموکراتیك جمهوریت به دهیواد دوروسته پاتی کیدو دله مینځه وړلـو

[illegible]تا سی هیواد والو دهوساینی‌لپاره تروروستی [illegible]کی پوری هلی ځلی وکړی .ځکه‌دافغانستان دخلق دموکراتیك گوند ددغه ټا ټو بـــــی

دولس له در دونو سره ښه بلد دی او هغه پوره پیژنی .

خپلو ولسونوته زما او زما دهمکارانو تاوده سلامونه ورسوی ،اوهغوی ته له هره پلــوه ډاډ ورکړی چی نن ورځ ددوی رښتینی بچیان چی دافغانستان دولس اوپه خپله دهغوی لـــه مینځه څخه دی دهغوی په خدمت کی دی او دهو ساینی اود گران افغانستان دیوی نــوی شگوفانی ، مترقی او خپلواکی ټولنی دجوړ- ولو لپاره به هیڅ ډول سر ښنند نه او قربانی ونه سپموی .

زمونږ بهرنی دښمنان ډیر نارام دی،دامانی دوری په شان له‌دغی وسلی څخه کار اخلـی چی گوندی زمونږ انقلابی رژیم کمونست دی، په ډاگه وایم چی دافغانستان ډمو کرا تیـك جمهوریت داسلام دسپیڅلی دین اسا سا تـو ته کلکه پاملرنه کوی او هغوی ته‌په درنـه سترگه گوری، زمونږ دانقلابی دولت شعارچی مونږ هغه عملی کوو په‌لوړیږاوکی زمونږ ولس ته دهوډی ،کالیو او کور برابر ول دی.

# نن ورځ حکومت دستمګرو او دوینو څښونکو سردارانو په لاس کې نه دی

دافغانستان دخلق دموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا مشر او صدراعظم نورمحمد تره کی دجوزا په شپږمه ورځ ترغرمی مخکی په لسو بجو دبلخ ولایت دپوهانو اوروحانیونو، دخوست دلوی ولسوالی دمدی خیلو، شملو، تری زیو، اسمعیل خیلو، مندوزیو او تڼیو ولس دمومندو دکوږاخیلو قومونو، ملکانو ددایه چوپان ، دهزاره وداستازی دشینکی دولسوالی دهوتکو دسرروضی دخروټو دقوم اود خوازکو، توخیو، الکوزیو، سلیمان خیلو، ناصرو او پوپلزیو دقومونو استازی د انقلابی شورا دمرکز په بڼ کی ومنل .

۵۷ر۳ر۶

تاسو ته ددیارلس سوه اوه پنځوسم کال دثور دبریالی انقلاب چی دولس دوسله والو ځوانانو دزړورتوب امیرانی له امله ا و دافغانستان دخلق دموکراتیك گوند په مشری وشو، اود نادر شاهی کورنی اوددا ود دقلابی جمهوریت دله منځه وړلو اونسکورولو سبب شو، مبارکی وایم ، اوزیری در کوم چی تاسی په خپله وینی چی ددغه خاینی او ظالمی کورنی په له منځه تلو سره اوس زموږ په هیواد کی خلقی رژیم ټینګ شوی او هم زموږ هیواد وال له ظلم اوتیری څخه دهر ډول ویری اواندیښنی پرته په خپلو کارونو اخته دی او په آزاده فضاکی ژوند کوی .

درنو ورونو ! لکه چی په څو وروستیو ورځوکی می له خپلو یو شمیر هیواد والو سره دکتنی او خبرو په وخت کی وویل، بیاهم وایم چی ز مو نږ خلقی ا نقلا ب چی دافغانستان دنجیب ولس په بالفعل او بالقوی ارادی سره او دافغانستان خلق دموکراتیك گوند په مشری په بری سره پای ته ورسید.

دافغانستان په رنځیدلو اوزیاراېستونکو خلکو پوری اړه لری، څرنګه چی دنادر په وراسته سلطنتی رژیم او دداود په عامه غولوونکی جمهوریت کی زموږ دخلکو دبیلابیلوپرګنو ترمینځ بی اتفاقی اوبدبینی پیدا کیده او خلك دیوبل په مقابل کی راپورته کیدل په هیواد کی دموکراتیك جمهوری رژیم په ټینګید وسره چی زموږ ټول هیوادپال خلك یی ننګه کوی هرډول توپیر ، بدبینی او مخالفتونه له مینځه لاړل، ځکه نن حکومت دستمګرانواودوینوڅښونکو سردارانوپه لاس کی ندی ، نن ورځ حاکمیت دکارګرو، بزرګرو، منورینو او ټولو هیواد ـ پالو عناصر وپه ګډون دافغانستان دنجیبوخلکو په لاس کی دی •

دافغانستان خلکو ته دامهمه نه وه ، چی څوتنه مرتجع او تالی څټی لـه مینځه ځی، بلکه دامهمه وه چی زموږدوروسته پاتی هیواد ځپلی اورنځیدلی خلك دنادر دظالمی او خاینی کورنی او ددی کورنی دعامه غولوونکی جـلاد وروستی واکمن داود لهواك څخه وژغورل شی•

دغه انقلاب دسلطنتی مستبدرژیم داشرافیت دټولو ظلمونو نتیجه وه چی ځان یی غوښتاو نور دوی خلکو ته دخدمت مقصد نه درلود، اوتور سیاست یی داوچی بی اتفاقی واچـوه او حکومت وکړه •

زه تاسو ته ډاډ درکوم چـی دافغانستان دموکراتیك جمهوری حکومت او هغه کسانچی نن ورځ دانقلاب دسپیڅلو هدفونو په رڼاکی دافغانستان خلکو تهپه خدمت ګومارل شوی دافغانستان دخلق دموکراتیك ګوند په مشری بهدګران افغانستان دهوساینی، آرامی، پرمختګ اوآباد ولوله پاره له هرډول ځان تیریدنی نه لاس وانه خلی، ځکه دوی ستاسور ښتینی بچیان دی اوددغه هیواد دستمدیده تودولهمنځ څخه دی . په هغو دردونو، ظلمونو، کړاوونو چی دافغان پرنجیـب ولس بـاندی پـه نیمـه پیړی کی دنادری کورنی واکمنی کړی ووښه پوهیږی • هغوی که وزیروی یاوالی ماموروی یارئیس په هره اداره کی چی دنده لـری ستاسو حاکم ندی، بلکه ستاسو خدمتګاردی• له تاسی ګرانو وروڼو زماهیله داده، څرنګـه چـی مـو نـن هیـو ا د د خلقـی ا نقـلا ب په ویاړدخوښی مراتب اودملی دموکـــراتیك جمهوریت دټینګښت په لارکی خپـل مـلاتـړ څرګند کړ، پهپاك نیتی او دوروری او برابری دروحیی سره دخپلوخدمتګارانوسره مرستهوکړی او خلکو ته دخدمت په لارکی دهغوی ملاتړ وکړی •

ستاسو سره دلیدنی څخـه خوښی یـم او دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت په لارکی ستاسو دزیاتو بریالیتوبو غوښتنهکوم ، دخپلو سیموخویندو اووروڼوته زماتاوده او خالصانـه سلامونه ورسوی •

# زموږ ستر هدف دادی چی
# د رنځیدلو زیارکښو خلکو له پاره
# ډوډی، کالی، او کور برابر کړو

دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دجوزا په اوومه ورځ ترغرمی دمخه په لس‌نیمو بجود کندهارولایت دمرکزاو پنجوایی ډند سپین بولدك او ارغنداب دولسوالیو اودغزنی ولایت دمرکزاودده یك، زنه‌خان اوخواجه‌عمری دعلاقه داریو، پروان ولایت دتګاب دولسوالی، دکندز ددشت ارچی ولسوالی، دجوزجان ولایت دسرپل ولسوالی ، دننګرهار دشینوار وداچین ولسوالی ، دپکتیا ولایت دجانیخیلو مقبلو، دځاځیو اوځدرانو، دبدخشان او بلخ ولایتونوله یو شمیر خلکو اودبلخ دسجدیه دجومات عالمان دهلمند ولایت ګرمسیراو نادعلی، دکابل اومیربچه کوټ دمومند دحلیمزیوله خلکو او دپښتنو اوبلوڅوله بیلابیلوقومونوسره دانقلابی شورا دمرکز په بڼ کی وکتل .

۷ر۳ر۵۷

دافغانستان بریالی او خلقی انقلاب چی ددغه هیواد په تاریخ کی ساری نلری تاسو هیواد والو وروڼو ته دزړه له کومی مبارکی وایم • دغه انقلاب دخلکوانقلاب اودخلکودپاره اوپه خپله ربنتیانی معنی یو انقلاب و، نه‌یو قصری او ساختګی انقلاب چی دورور او یاپلار قدرت زوی ته ورکړی •

ددغه انقلاب پیل آسان کارنه ودافغانستان دخلق دموکراتیك ګوند چی زه دهغه دمشری ویاړ لرم له پنځلسوکلونو راپدی خواد نادری او داودی فاسدی او مستبدی کورنی درژیمو نو دظلم او استبداد پر خلاف دیوه ملی او خلقی پاخون لاره آواره کړه او هغه وخت چی داودی عوام غولوونکی رژیم زموږ دګوندمشران دوطن پرستی او خلق دوستی په ګناه جیل ته واچول فداکارو او وطن پرستو قهرمانانو چی دوسله-

وال پوځ وفادارو زامنو غوندی زمونږ دتربیی لاندی و په وسله وال پاڅون لاس پوری کړ .
او لکه چی تاسوټولو ولیدلدیوی شپی اوورځی نه‌په لږه موده کی یی دنادری کورنی اودهغوی دوروستنی مستبد ســردار داود استبدادی او فرعونی قدرت پای ته ورساوه •

اوس دافغانستان دخلکو په بالقوه اراده په خپلی خوښی سره خلقی‌رژیم منځ ته‌راغلی دی. دغه نظام به ستاسو دآزادی دپـاره او ستاسو په خدمت کی وی • زمونږ ستر هدف دادی‌چی ددغه هیواد رنځیدلو اوزحمت کښو خلکو له پاره ډوډی کالی او کور بــرابــر کړو•

پداسی شرایطوکی چی ددولت خزانه‌دتیرو خائنینوله خواچورشوی‌ده‌ددغودر یوښیانوبرابرول آسان کارندی • یوازی له اوسنی دولت سره ستاسو مرسته ، یووالی اوملاتړ کولای شی دغه ټول وروسته پاتی والی له مینځه یوسی•

باید ومنوچی لاتراوسه دهیواد کورنیو او بهرنیودښمنانو په خپلوخایننانه توطئو اودسیسو سره زمونږ په خلاف په غرض ناکوپروپاګندو لاس پوری کړی اوپه خپلودرواغجنـو او بی شرمو تبلیغو نوسره غواړی مونږ دعامو خلکو په نظر کی بدوښیی خوتاسوته ډاډ درکوم ستاسو دولت په ټوله معنی داسلام دسپیڅلی دین پراساساتو پابنددی اوپه درنه سترګه به ورته وګوری .

اسلام دوستی دانده چی دخلکو وینی‌وچښی کمزوری تر پښو لاندی کړی، دنجیبوخلکومال ځان او ناموس ته لاس اوږدکړی، بلکــه رښتینی اسلامیت دادی چی‌دظالمانو لاس پری کړی ، دظلم اوبی عدالتی‌جرړی پریکړی‌اودهر ډول نابرابری او استبداد پرخلاف مبارزه‌وکړی لدی امله په جرات اوډاګه وایم چی تردی وروسته به زمونږ په هیواد کی رښتینی‌اسلام تطبیق شی •

دخلکو هوسایی او خوشحالی‌زمونږ دهڅونی سبب ګیږی او مونږ ته جرائـت راکوی چی دانقلاب دسپیڅلو او مترقی هدفونو په تطبیق کی له خپلو خلکو سره په‌یوه صف کی‌پـرمخ لاړ شواوله سره یوپر مختللی او مترقـــی افغانستان ودان کړو •

زما هیله داده زما دزړه له کومی سلامونــه او هیلی دخپلو سیمود خلکو فرد فرد تــه ورسوی‌اوور ته‌وو ایی‌چی‌دافغانستان ددموکراتیک جمهوری دولت ددوی او هیواد دټولو نجیبو اوهیواد پالو خلکو دهوسایی او نیکمرغـــی دتامین له پاره مینځ ته راغلی دی .



نورمحمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی وصدراعظم هنگام صحبت باعدهٔ ازاهالی‌کندهارواقوام پښتون، بلوچ وشهریان کابل در باغ خانهٔ خلق .

۵۷٫۳٫۷

# نور به داسی طبقه او یا طبقې نه وي چې ستاسو د زحمتکشانو د لاسونو ګټې لوټ کړي

دانقلابي شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کي دجوزا په اتمه ورځ ترغرمې مخکې د ګلبهار نساجي،پلخمري، جبل السراج او دجنګلك کارخانو دفابريکو کارګرانو، استازو اود چمتال ، ټغر، خوګيانيو اودکونړ ولایت دڅوکی دولسوالی، نرنګ، نورګل، او سرکانيو دوردګو دولایت دسیدآباد ، چك اوچغتو دسمنګانو ولایت دمرکز ایبکو، کندز، دمرکز، دفراه ولایت داناردری ، دپکتیاولایت دمنګلو، خوست، زنی خیلو ، دغزنی ولایت دحضرت سلطان ، دروداتو ولسوالی دهزارېزو کوچیو ، مومندو، عیسی خیلو، اتمرخیلو اوخوګاخیلو مشرانو او داپریدو د کوکی خیلو قامونو سره وکتل .

۸ر۳ر۵۷

د۱۳۵۷ کال دثور انقلاب چې دافغانستان دزحمتکښو خلکو په اراده وشو ، دهغه په‌اثر دسلطنتي مستبدي او ظالمي کورني مانۍ، چې زمونږ دهیواد پرزحمتکښو خلکو یې له‌هیڅ ډول ظلم ناروا اوبی عدالتی څخه ډډه ونه کړه نسکوره شوه، تاسواو دافغانستان ټولو غیرتي خلکو ته مبارکي وایم .

د۱۳۵۷ کال دثور انقلاب چې دهغه له مخې دستمګرانو او مغرورو او مستبدو سردارانو دوراني، ویجاړي مانۍ پرځای‌دملي دموکراتیك جمهوریت تیره ګیښودل شوه .د افغانستان دخلکو په سر نوشت کی‌یی داسی ژور تاثیر کړیدی چې تاسویی خپله دیوی میاشتی په موده‌کی دخپل سرپه سترګو ګوری .

دخلکو وسله وال پوځ دثور بریالی‌انقلاب چې دافغانستان‌دکارګری‌طبقې‌دګوند دافغانستان



دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمدتره‌کی دخلکو په‌کورکی دیوشمیر هیوادوالوسره دکتنی په وخت کی .

۸ر۳ر۵۷

دخلق دموکراتیك گوند په مشری وشو • او دنادر دمړ دودی کورنی او دهغی دوروستی جلاد داود داقلیت طبقی قدرت دتل لپاره دهیواد له تاریخ څخه ورك شو •

نور به داسی طبقه اویا طبقی نهوی ، چی ستاسو دزحمتکښانو دلاسونو ګټی لوټ ګړی، وروسته لهدی به تاسو کارګران، دهقانان ، زحمتکشان او روشنفکران ستاسو دهیوادد مادی نعمتونو او ټولو مادی او معنوی پانګو مستحق وارثان یاست ، اوملی او انقلابی دموکراتیك

جمهوریت همدغو انسانی او مترقی غوښتنوته دتحقق ورکولو لپاره مینځته راغلی دی •

زه او زمونږ ملګری پنځلس کاله پخوا دداسی رژیمونو دبیخی له مینځه وړلو لپاره ، چی زمونږ دهیواد په ځلیدونکی تاریخ کـی دشرم او ننګ داغونه ګڼل کیږی راووتـو . نوی طراز گوند موجوږ کړ، او دهیواد پهړه

ځنهه کی موږه ملکی او عسکری برخوکی له شور او زوږ نهډك بااحساسه ځوانان ترانقلابی تربیبی لاندی ونیول • څوچی ټاکلی ورځ راـ

ورسیده اوزمونږ غیرتی باشهامته او بااحساسه ځوانانوله وطن او ټولنی نه دسرطان ددانی دله مینځه وړلوله پاره متی راونغښتی •اوپه ځوساعتونو کی یی دخاورینو دیوانو ددرواغجن

قدرت تخته واړ وله ، او دخلکو شریف او ریښتینی نمایندګان دعدالت په څوکی کښیناستل

دخلکو نمایندگان چی دهیواد ټولنی له تل څخه راپور ته شویدی اونن دقانون دحکومت او دټولنیز عدالت تامینوونکی او دخلکو دسعادت

او هوساینی تمثیلوونکی دی • دهغوی لومړنی حقیقی او مترقی وظیفه دهیوادداکثریت محرومو

خلکو لپاره دکور ، کالیو، ډوډی او کار تامین او برابرول دی . خودغه نظـر هغـــه وخـت

دعمل جامه اغوندی چی تاسو هیواد وال وورونه له مونږ سره مرسته وکړی، او دخپل انقلابی او مترقی رژیم سره چی مشخص او مترقـی

اقتصادی سیاست لری • په بیلا بیلو برخوکی مرسته وکړی • البته پوره ډاډه یم چی زمونـږ

کورنی اوبهرنی دوستان له موږسره دمترقی، ملی او انقلابی هدفونو په سرته رسولوکـــی

خالص اوبی قید اوشرط همکاری کړی او کوی یی •

تاسو ته ډاډ درکوم چی دافغانستان ددموکراتیك جمهوری دولت په جوړ یدوسره نه یوازی هغه

فساد او چلونه، بلکه دتوپیر، نابرابری او بی عدالتی ټول ډولونه له مینځه لاړشی او ورونه

قومونه په بالقوه او بالفعل سره دخپلواك او مستقل افغانستان په آرامی ، نیکبختی ،کراری او سرلوړی کی انقلابی ګام زیاروباسی • او دکورنیو مرتجعینو او استعمارګـرانو دبهره ـ

برداری او دسیسو دپاره به هیڅ ځای پاتـی نشی •

زمونږ اړیکی له هغو دولتونو سره ډیـــر زیات ټینګیږی چی زمونږ دموکراتیك جمهوریت په رسمیت وپیژنی ، اوله مونږ سره بــی قید او شرط اقتصادی مرستی وکړی •

زمونږ دملی اوانقلابی دموکراتیك جمهوریت داسی کورنی او بهرنی دښمنان شته دی •چی په بیلابیلوچلونو سره دهغه په بدنامی پسی لګیادی اوپوچی اوله غرضه ډکی پروپاګندی کوی •

البته داپټه نده چی بین المللی ارتجاع او امپریالیزم په دغه شان ملی ،مستقل اوانقلابی رژیمونو باندی دخدشی دلګولو لپاه چی تل دهغوی دناروا اواستعمارانه بلامنازع ګټو مانع ګرزی او ګرزیدلی بی نهایه زیار باسی •

تاسو پوره یقین ولری ، چی دافغانستان دخلکو پیشاهنګ ګوند چی دهغوی دګټو ساتونکی دی او دهیواد ټولو کارګرانو، دهقانانو، زیار کښو او روشنفکرانو ملاتړ ورسره دی ،هیڅ کورنی او بهرنی دشمن تهبه وخـت ورنه کړی دغه ترلاسه شوی بریالیتوب ته چی کلونو کلونو پخوا زمونږ دخلکو داهیله وه زیان ورسوی، او دهغه په مقابل کی خنډ پیدا کړی •

یوځل بیا ددغه خلقی نظام له امله تاسو او دافغانستان ټولو زیار کښو خلکوته مبارکی وایم ، او هیله من یم زما او زما دانقلابـــی ملګرو هیلی او تاوده سلامونه دهیواد ټولـو شریفو اوبااحساسه خلکو ته په هرګوټ کی چی وی ورسوی •

# دافغانستان دموکراتیک جمهوریت

# په هیڅ ځانګړې ملیت پورې اړه نلري

د انقلابي شورا مشر او صدراعظم نورمحمد تره‌کي دجوزا په لسمه‌نیټه ترغرمې دمخه په لس نیموبجو دتخارولایت دتالقانو ، چاه آب، رستاق، فرخار، اشکمش، خواجه غار، او ینګي کلا دولسوالیو اودبهسود دمرکزیات شمیرخلك دخلکوپه‌کورکې ومنل اوله‌دوی سره یې خبرې وکړې .
۱۰ر۳ر۵۷

ګرانو هیواد والو ! دثور زغورنده انقلاب چې ستاسو زړ ورو او هیواد پالو زامنو له خوا په بری سره وشواودهغه له امله زمونږ ځورول شوی ولس دنادری کورنی دظلم او استبداد له منګولو اودهغه له فاسد نظام څخه خلاص شو ، تاسو دهیواد زیار ایستونکو او هیواد پالو خلکو ته دزړه له کومې مبارکی وایم .

دتیرنظام څخه دافغانستان دزیارایستوونکو اوربړول شویو خلکو زغورن او خلاصول‌وړیا لاسس ته ندی راغلی بلکه دافغانستان دخلــق دموکراتیك ګوند په مشری ددې خاورې دهیواد پالو اوسرښندونکو بچیانو د اوږدو مجاهـدو او مبارزو ، ددغې نیکمرغې ارمغان راوړیدی.

دغه عامه غولوونکی رژیم دخپلو شومو او خاینو مقصد ونود ترسره کیدوله پــاره د افغانستان ټول ملیتونه دپښتون، تاجك، هزاره ترکمن، او نورو په نوم په خپلو کې سره‌لاسس او ګریوان کړل٠او دافغانستان شریفو قومونو ترمنځ یې ورور وژل پیدا کړل اودخپلوخاینو بادارانوپه فرمان یې ددغه‌هیوادپه زرونوشریف اوهیواد پال خلك‌بې زړه‌سویه له مینځه‌یوړل٠ ددغوټولوکړاوونو . دبدبختیو، ظلم اوفساد بې عدالتی اوزورزیاتی پرخلاف مبــارزې ددې خاورې هیواد پال ځوانان اوزامن مجبور کړل، دارتجاع‌اوهیوادپلورونکوپرضدمتحده حلقه جوړه



دانقلابي شورا رئيس او صدراعظم نورمحمدتره‌کي دتخار دولايت دمرکز ديوشمير خلکوسره دخبروپه وخت کي .      ۱۰ر۳ر۵۷

کړی • افغان زړ وروبچیانو داکاروکړی اود
افغانستان دخلق دموکراتیک گوند په مشری
خاینو واکمنو او سردارانو پـه خلاف په ړڼا
ورځ راپاڅیدل او دهیواد دتاریخ انقـلاب یی
چی ساری نه‌لری بریالی کړ •

دویاړ ځای دی چی‌اوس دهیوادټول سیاسی
پوځی ، اقتصادی او ټولنیز قدرت دافغانستان
دزیارایستونکو او هیواد پالو خلکو په لاس
کی دی •

دافغـانستان دموکـــراتیک جمهوری دولـت
دافغانستان دټـولـو ملیتـونـو دی او په هیڅ
ځانگړی ملیت اویا فرقی پوری اړه نه لری .
دولت اوس دملیتو نو لمسونی اوبی اتفاقی
ته اړندی او ددولت‌وزیران، والیان او مامورین
دهیواد پلورلو ، خیانت ، ظلم او ستم روحیه
نه‌لری ځکه همدا هیواد پال ووچی دظلم ،ستم
او خیانت پر خلاف پورته شول، اوله عاملینو
څخه یی سخته کرکه لری •

زمونږ هیواد کلونه کلونه دترقی له کاروان
څخه وروسته پاتی اوپه تیره بیا دافغانستان
مرکزی سیمی ، تخار اوبدخشان ډیری وروسته
غورزول شویدی او مرستی ته ډیره زیاته اړه
لری • لدی امله مونږ ترټولوزیات دهیواددغه
شان وروسته پاتی ساتل شویو، اولیری‌سیمو
دعمرانی پروژو په جوړ ولوکی یو • ددی لـه
پاره چی دافغانستان دموکراتیک‌جمهوری دولت
پروژی په‌بری سره تطبیق او عملی شی‌دهیواد
له وطن پالو خلکو څخه غواړو چی له خپـل
دولت څخه خپلی مادی او معنوی مرستی ونـه
سپموی او دهیواد دپراختیا او خلکو دهوسایی
په لاره کی دزړه له کومی زیارو باسی •

زمونږ دښمنان نه غواړی چی زمونږ ولس
هوسا وی . دوی په افغانستان کی خلقی دولت
نشی زغملی • لدی امله زمونږ پرخلاف دننه
اوبهرپه خپلو غرضناکو او زهرجنـو تبلیغاتو
اوپروپاگندوسره له بی شرمو دسیسواوتوطئو
څخه کار اخلی او پرمونږ باندی له مذهب
سره ددښمنی تور لگوی • خو مونږ پوره‌باور
لرو چی نور دافغانستان نجیبو اوزړوروخلکو
دخپل گران هیواد دښمنان پیژندلی دی باور
لرو نور افغان میړنی خلك ددغو غرضناکـــو
هیواد پلورونکو او خائنانه توطئو او دسیسو
باندی تیرنه وزی ، اوزمونږ داعمالوپه برخـه
کی به‌په سالم قضاوت سره زمونږ دښمنان
محکوم او ترټی •

هیله کوم چی دثور دڅغورنده انقلاب بری
اودافغانستان ددموکراتیک جمهوری رژیـــم
دټینگښت له امله زماسلامونه اوپه‌زړه پوری
هیلی دخپلو سیمو ټولو خلکوته ورسوی •

# محترمین هرهغه کاراوعمل کوو چې دهیواد په گټه وی

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی‌شورا مشر او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دجوزا په پنځلسمه ورځ ترغرمی مخکی په‌لسوبجو دخلکوپه کورکی دکونړ دمرکزاوسرکانو دولسوالی دافریدو، دکوکی خیلو اوملك دین‌خیلو ، دپکتیا ولایت دځدرانو ، دکندز ولایت دمرکز او دار چـــی ولسوالی، دمحمود خیلو، کابل خیلو، اودوزیرو داحمدزیو ، دارزگان ولایت دمرکز اوددایکندی او گجران‌دولسوالیو،اودهزاروو اوبلوڅو، دشینواروداویی ولسوالی ، اودننگرهار ولایت دنازیانو او اچین دولسوالیوواو دوربابا اوغنی خیلو دعلاقه داریو، دتیرا دپروځمکنیو، دسمنگانو ولایت دمرکز او دخلم‌ولسوالی اودحضرت سلطان علاقه‌داری، دلوگر ولایت داحمد زیو، موسی خیلواو سلطانخیلو،دقومونو، دکندهار ولایت دمرکز اودارغستان ولسوالی اودبلوڅو اواڅکزیود قومونودجوزجان‌ولایت دخوگا خیلو اود غرنیو مومند ودقومونو، دهلمند ولایت دخر وټودمشر انو،دغزنی ولایت‌ځینوقبایلو، دلغمان ولایت دنورستان ، دبلـخ ولایت دمرکز او نهرشاهی ، شورتیپی، چمتال‌اوچاربولك دولسوالیو ، دزابل ولایت ، بغلان ولایت، دفراه ولایت دمرکز او شینډنډ، بکوا،بالابلوك او اناردری دولسوالیو دنیمروز ولایت دمرکز اودکنگ،چاربرجك‌اوخاشرود دولسوالیودغور ولایت دفاریاب ولایت دمرکزاو داندخوی شولگری او میمنی دولسوالیو، دهرات ولایـت‌دیو شمیر ښځینه استاد انو او ښوونکواود هیواد دهندوانو سپین ږیرو او مشرانو سره‌وکتل •

۱۵ر۳ر۵۷

دثور دپرتمین انقلاب دبـــریـــالیتوب اود افغانستان ددموکراتیك جمهوریت دخلقی رژیم دټینگښت له امله تاسو مشر انو او سپین ږیرو او ستاسو له لاری دهیواد ټول نجیب میړنی او هیواد پال ولس ته دځان او خپلـو ملگرو په زړه پوری مبارکی اوهیلی وړاندی کوم • تاسوسپین ږیری او مشران دټولـــو لومړی دمبارکی وړیاست ددی له پاره چی‌تاسو

واستچی پخپلوغیږوکی مومیږنی، سربښندونکی اوهیوادپال بچیان وروزل او داستاسوجنگیالی بچیانوچی دظلم، ستم، بیدادگری اوبیعدالتیو په خلاف پاڅیدل او دمست سیلا وپه شان یی دظلم اوستم ماڼی ورانی کړی .

ددغه ستر بریالیتوب ترلاسه‌کول چی بـی له‌شکه به زموږ دلر غونی هیواد په زریـــن تاریخ کی په جوت لیك ثبت شی . ساده او آسان کارنه ؤ زموږ میړنی اورنڅیدلی ولس له کلونو راپه دی خوا ددغه ستر بریالیتوب په هیله دقیقی شمارلی • ټولدظلم او استبداد دله منځه وړلو او دظـالمانو اوجبارانو دماتیـو دنسکورولو اوړ نگو لوپه فکرکی وو• خوداسی مشربیی نه در لود چی له هغوی سره خپلو سپیڅلو هیلو ته‌په رسیدوکی مرسته وکړی ترڅوچی دیر شو کالو مخکیدوینو څلمیانوپه نوم یوشمیر روشن فکران او هیواد پال سره راټول شولاودخلقیضد،اوارتجاعی رژیمونودله مینځه وړلوله پاره یی فعالیتونه پیل کړل خودنادری کورنیفاسداوظالمو واکدارانوزیاتره دغه هیواد پال په خاینانه دسیسو سره له مینځه یووړل • خوز موږ په میړنی ولس کی دهیوادپالنی روحیه اودستمگرانو اوجبارانو له جغ څخه دخلاصون فکر ورځ په ورځ مـــخ په زیاتیدوؤ او لاپسی زیاتیده • ترڅو چـــی جنگیالی او هیواد پال ځـــوانان چـی دنادری کورنی دوینو خوړ ونکو واکدار انودبی رحمه پنجو څخه ژوندی پاتی شوی وبیاهم سره راټول شول اودافغانستان دخلق دموکراتیك گوند یی جوړ کړ • ددغه‌گوند یعنیدافغانستان دکارگری طبقی گوند تر لارښونو لاندی هیواد پالواوافغان صدیـقو بچیانو په خـــرگند ډول داستبداد اوارتجاع په ضد خپل فعالیتو نـــه پیل کړل په کلونو کلونویی دهرډول ظلم، شکنجو ، اسارت لاندی اودقر بانیو په ورکولو سره دافغانستان دولس دسپیڅلو هیلودترلاسه کولو له پاره دمبارزی څخه لاس وانه خیست دهیـــواد درنځیدلی او ستـــم ځپلــی ولس پــه ملاتړ ددغو هیواد پالوځوانانونه ستړیکیدونکو هلو ځلو او فعالیتونو گټه ورکړه او دهغـو سوغات دثور بریالـــی انقلاب اودافغانستان ددموکراتیك جمهوری رژیم ټینگښت دی •

دتیر فاسداوپه تاریخی مرگ محکوم شوی رژیم په له مینځه تلو اودظلم اوستم دماتیــو په نسکـــورولو سره هیواد پالو دبریالیتوب لومړی گام اوچت کړ، خووروستی بریالیتوب ته ندی رسیدلی • وروستی بریالیتوب دفقر، بیچارگی، بدبختی، فساداودطبقاتی ژوند جرړو ویستل اوپه پای‌کی دهیواد آبادول اوغوړول دی• ددغه بریالیتوب دترلاسه کولوله پاره چی دگران هیواد فرد فرد وطن پرست کارونه کوی زیارونه‌گالی اودانقلاب ددښمنانوپه‌خلاف زړوره مبارزه ونکړی په یوازی ډول به کـــار سرته ونه رسول شی •

د افغانستان دمـــوکـــراتیك جمهوری دولـــت بهچی په سرکییی انقلابیشورا او دافغانستان دخلق دموکراتیك گوند دیدافغانستان دملیتونو ترمنځ هیڅ ډول تعصـــب ، کینی، اوبی اتفاقی اچولو ته لارورنکړی زموږ په وړاندی بـــه دهیواد ټول ملیتونه ، عنعنی ، ژبه‌او ولســـی



دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمدتره‌کـی له یوشمیر وطنوالو سره دکتنی په‌وخت کی .    ۱۵ر۳ر۵۷

مقدسات محترم وی •

مونږ زیار باسوچې ولس په خپله مورنی ژبه یا په هرەژبه چې وغواړی وغږیږی او زموږ په وړاندی هیڅ ژبه پربلی باندی شهوالی نلری • زمونږ هدف دافغانستان ولس تـــه خدمت کـــول دی ، په تیره بیا هغه ولس ته چې کارکوی ، زیارباسی او کرنه کوی اوله بده مرغه په تیروخت کی دهغوی دوچولودخولو حاصل نورو خوړلی دی •

مونږ هر هغه کار اوعمل چې دهیواد په گټه وی کووبی مونږ دداود دمنقرض شوی رژیم دواکدارانو په شان داووه گلن پلان په نامه ولس نه غـــولوو او یوازی خپل میړنی ولس په‌دی هیله من کوو، هغه عملی کړو اوهغـه خه چې سبایی وایو،بل سبابه پری عمل وکړو او هغه پروژی چې دولت ترلاس لاندی نیولی دیرژ ربه تطبیق او عملی شی •

په دواگه باید پدی اعتراف وکړو چې زمونږ کورنی منابع دومره ندی چې زموږ دوروستـه پاتی ټولنی دجوړولو کفایت وکړی لدی امله مونږ ددوستو هیواد ومرستو ته اړیواود ټولو هیواد ودبی‌قیداو شرطه مرستوهرکلی‌به‌وکړو.

ولس ماد ترەکی په نامه پیژنی چې دازماد قوم‌او قبیلی مشهورنوم دی‌خوزه په‌دواگه وایم چې زه په هیڅ خاص قوم‌او قبیلی پـــوری اړه نلرم زه ددغه هیواد دیوه خدمتگار پـــه توگه دپښتنو ، هزارو، ازبکو اوتاجکو پـــه ټولو ملتونو اودهیوادپه نورو نجیبو قبیلـــــو او قومونو پوری اړه لرم اودگران هیواد ټولو زیار کښو ولسونوته دخدمت په هیله کی‌ژوند کوم •

دخپلو ټولو سیمو ولسو نوته زما دزړه له کومی مبارکی او هیلی ورسوی او هغوی ته دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت سپیڅلی هیلی او هدفونه توضیح کړی •

همدارنگه‌دانقلابی شورامشراوصدراعظم نورمحمد- تره کی‌دجوزاپه۱٦نیټه‌ترغرمی‌وروسته په دوه - نیمو بجو دفراه ولایـــت دشیندنډ ولسوالـی دنورزاییو، اڅکزیو ، تاجکو او بـارکـزیـو قومونو استازی دخلکو په‌کورکی ومنل‌او هغوی سره وغږ ید •

باور لرم افغان نجیب ملت لکه څنــگه چې یی په هیواد کی ددموکراتیك جمهوریت دمنځ ته راتلو ښه هرکلی وکړ دافغانستان ددموکراتیك جمهوری حکومت سره به هـــم دانقلاب دسپیڅلو هدفونو ترسره کیدوپـــه لارکی هیڅ ډول همکاری اومرسته ونه‌سپموی •

# هدف ما ریشه کن ساختن هرنوع ستم اجتماعی وملی از افغانستان است

متن مصاحبه رئیس شورای انقلابی وصدراعظم با مدیر اخبار خارجی آژانس عراق . ۱۶ر۳ر۱۳۵۷

سوال : روابط بین عراق و افغانستان را پس از انقلاب در کشور تان چگونه می‌بینید آیا روابط سیاسی وحزبی نزدیکتر محکمتر شده است ؟

جواب :ــ روابط دوستی برادرانه بین افغانستان و عراق اصولا خط مشی حزب ما

حزب دموکراتیک خلق افغانستان نه تنها بعد از پیروزی انقلاب بزرگ ثور ۱۳۵۷ ، بلکه

ازآن تاریخی که جبهه وطنی ترقیخواه ملی عراق تشکیل شده تنظیم گردیده است، حزب از چند سال بدینسو پیوسته ازموضع گیری های جبهه حزب خلق ودولت جمهوری عراق در مبارزه علیه ارتجاع ، صهیونیزم وامپریالیزم پشتیبانی کرده ومیکند .

شما اطلاع دارید که انقلاب بزرگ خلقی مابه اراده خلق افغانستان ، برهبری حزب دموکراتیک خلق‌افغانستان وبه‌پیشاهنگی افسران ترقیخواه وطنپرست حزب ما ودیگر افسران وسر بازان دلیر کشور صورت‌گرفت درهمان روزهای اول انقلاب، حزب دموکراتیک خلق افغانستان ، دولت جمهوری دموکراتیک افغانستان را تشکیل داد پس معلوم است که مطابق بر مشی حزب ما ودولت جمهوری دموکراتیک ما روابط دوستی و برادری میان افغانستان وعراق درحال رشد وتوسعه است بنا براین طبعا روابط سیاسی وحزبی مانیز نزدیکتر ومحکمتر شده میرود، بهمین جهت

در نظر است که یك هیأتی از طرف ما برای تحکیم وهمکاری بیشتر روابط جانبین به کشور شما اعزام گردد .

سوال :- ملت افغان در اثر پسماندگی هاییکه حکومت های سابق بمیراث گذاشته اند متحمل زحمات ومشقات زیادی شده است سیاست داخلی وطرز تطبیق آن برای بلندبردن سویه ملت چگونه است ؟

جواب :- سیاست داخلی افغانستان درسند مصوب شورای انقلابی جمهوری دموکراتیك افغانستان تحت عنوان خطوط اساسی وظایف انقلابی حکومت جمهوری دموکراتیك افغانستان علما تنظیم واز طرف اینجانب از طریق رادیو افغانستان اعلام گردیده است طرز تطبیق سیاست داخلی ما برای اعتلای سطح زندگی توده های مردم در کادر اصول و موازین انقلاب ملی ودموکراتیك صورت میگیرد ومطابق به اوضاع واحوال کشور ما وبا استفاده از تجارب دیگر انقلاب ها بدون اتخاذ شیوه های تسلیم طلبانه ویا ماجرا جویانه به پیش برده میشود.

سوال:- آیا اراده وتصمیمی برای ایجاد همکاری بین حزب دموکراتیك خلق افغانستان و احزاب دیگر در کشور موجود است تا بدینوسیله یك جبهه ملی بوجود آید ؟

جواب:- طوریکه تجارب دیگر انقلاب های خلقی نشان میدهد ایجاد (جبهه ملی) ویاهرنام دیگریکه روی آن بگذارید ارتباط به پس منظر سیاسی وسازمانی هرکشور دارد .

در افغانستان غیر از حزب دموکراتیك خلق افغانستان بمثابه یگانه حزب سرتاسری بر - قدرت ملی انقلابی وطنپرست ودموکراتیك دیگر حزبی وجود نداشته است یا بعبارت دیگر حزب دموکراتیك خلق افغانستان تنها و همیشه بیانگر صدیق منافع کارگران دهقانان، روشنفکران خرده بورژوازی وبورژوازی متوسط یا بورژوازی ملی بوده ومیباشد، معهذا اگر هم گروه های سیاسی درکشور وجود داشته باشد یا در زمره دشمنان خلق وضد انقلاب بوده اند ویا گروه های کوچك چندنفری بیش نبوده اند انقلاب بزرگ ثور تنها وتنها تحت رهبری حزب دموکراتیك خلق افغانستان صورت گرفته است هیچکدام گروه سیاسی دیگر کوچکترین سهمی در آغاز انقلاب نداشته است البته اکثریت نزدیك باتفاق طبقات واقشار دموکراتیك وملی خلق افغانستان از انقلاب خود از دل وجان نه تنها پشتیبانی کرده است بلکه باتمام قهرمانی وفداکاری از آن دفاع کرده ومیکنند . بدین جهت مسئله تشکیل (جبهه) درکشور ما بعد از پیروزی انقلاب ثور بیشتر جنبه ای اجتماعی وطبقاتی دارد تاجنبه تشکل از احزاب وسازمانهای سیاسی معهذا در (خطوط اساسی وظایف انقلابی) ما به



نورمحمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی‌وصدراعظم هنگام مصاحبه با فواد عبد الله مدیر اخبار خارجه آژانس خبر رسانی‌عراق . ۱۶ر۳ر۵۷

صراحت شعار وحدت عمل تمام عناصر ملی ودموکراتیك، ترقیخواه ووطنپرست کشور که از دست آورد های انقلاب ثور دفاع کندداده شده است .

سوال :- نظام انقلابی اعلام نمود که افغانستان بصورت عموم روابط خود را با تمام کشور ها بخصوص بادول همجوار احترام می‌نماید امابین مقامات‌مسوول ایران ،پاکستان وهند ملاقاتهایی در تهران صورت گرفت تابرای تغییردادن اوضاع درافغانستان بموافقه‌ای رسند. نظر شما راجع به این حرکات چیست و چگونه با آنها مقابله می‌نمائید؟

جواب:- ماچند ین بار به صراحت اعلام کرده ایم وبازهم تکرار میکنم که ماخواهان تامین روابط دوستانه با ایران و پاکستان هستیم روابط ما باهند همیشه دوستانه بوده ودر آینده نیز خواهد بود ، ما اطمینان داریم که هند هرگزدر برابرافغانستان بکدام حرکت غیردوستانه نه‌تنهادست نمیزندبلکه بدیگران نیز توصیه خواهد کرد که به چنین حرکات دست نزنند .

کسان دیگریکه برای تغییر دادن اوضاع درافغانستان تشبث می ورزندمسوولیت عواقب آن بعهده خود آنان خواهد بود. خلق قهرمان افغانستان برهبری حزب دموکراتیك خلق افغانستان راه انقلابی ورهایی بخش را که اتخاذ کرده است شجاعانه تعقیب می‌نماید.

سوال:ـ افغانستان غیر ازطریق ایران وپاکستان راهی به بحر ندارد اگر مشکلاتی با این دو کشور پیش شود آینده ،وضع را چگونه می‌بینید ؟

جواب:ـ اول هیچگاه چنین اند یشه ای‌در فکرمن خطورنمی کند که چنان مشکلاتی‌میان افغانستان، پاکستان وایران بوجود آید که راه های ترانزیتی افغانستان با ایران و پاکستان برهم بخورد معهذا شما بهتر میدانید افغانستان آزاد و مستقل خود یك مرکز شاهراه بین المللی است وهر طرف راه دارد .

سوال :ـ بعضی مخالفین انقلاب در افغا نستان مدعی اند که مسئله بلوچستان وپشتونستان را مجددا تحریك واحیاء مینمایید عکس العمل شما در مورد این ادعا چیست ومسئله اقوام مختلف رادر افغانستان چگو نه میبایید ؟

جواب:ـ بکاربردن اصطلاح تحریك واحیاء دربن‌زمینه‌درست‌نیست، حل‌صلح آمیزسیاسی مسئله ملی خلقهای پشتون وبلوچ همیشه در نزد خلق افغانستان موجود بوده‌است . بعدآ پیروزی انقلاب ثور خلق افغانستان اصولا مسئله خلقهای برادر اقوام افغانستان‌بصورت دموکراتیك حل گردیده است .

شما طی دوسه سال آینده خواهید دیدکه حزب ودولت جمهوری دموکراتیك ما چگونه نمونهٔ عالی برادری وبرابری حقوق ملی و دموکراتیك رامیان‌خلقهای برادروطن واحدمان افغانستان علماوهمه جانبه بوجود خواهد آورد هدف عالی حزب و دولت‌ما عبارتست ازریشه کن ساختن تمام انواع واشکال ستم اجتماعی وملی از افغانستان .

# بعد ازین جنس های خارجی و نفوذ مالی امپریالیزم

# تماسانمی توانند درشکست کنند

رئیس شورای انقلابی و صدراعظم تجار ملی، صاحبان صنایع ، رؤسا معاونین اتاقهای تجارت وصنایع مرکز وولایات کشور را درخانهٔ خلق پذیرفته وبانها گفتند . ۳۰ر۳ر۱۳۵۷

وطنپرستان وانسان های شریف وبااحساس هرشغل وپیشهٔ که داشته باشند وقتی زندگی مصیبت بار هموطنان خود را مشاهده کنند خواهی نخواهی رنج میبرند .

آرامش واقعی برای یك انسان صرف در آسایش ظاهری نیست باید انسان از لحاظ باطنی ووجدانی نیز به قناعت برسد تاوظیفه خویشس رادر برابر وطن وهموطنان به شایستگی، تقواوازخودگذری ایفا نموده باشد، خوشبختی واقعی برای یك انسان صرف با داشتن پول تامین نمیشود، آنانیکه پول بدست دارند باید وجایب خود را در برابر کار گران افغانستان ، پیشه وران وزحمتکشان کاملا درك کنند وازسرمایهٔ خویش که درحقیقت دارایی ملی است طوری استفاده نمایند که هم منافع خود شان وهم مصا لح وطن وهموطنان شان بر آورده گردد .

ماسیزده سال قبل در جریدهٔ تابناك خلق تجار ملی را درجملهٔ دوستان خلق نام بردیم وامروزکه در اثر قیا م پیروزمندانه خلق ـ

افغانستان تحت رهبری حزب دموکراتیک خلق افغانستان وشجاعت و جانبازی سربازان فداکار وطن قدرت بدست حزب دموکراتیک خلق قرارگرفته است . مکرراً یادآوری می‌نمایم که شما تجار ملی وصاحبان صنایع تحت رهبری ، حمایت وکنترول جمهوری دموکراتیک خود با اطمینان کامل میتوانید به شغل وپیشه تان ادامه بدهید، چه دیگردزدان وغار تگران جان ومال این وطن وجودندارد که شمارامورد تجاوز وغارت قرار دهند، بعدازین اجنبی های خارجی ونفوذ مالی امپریالیزم نمیتواند شما را ورشکست بسازد ، ماتسهیلات لازم رابرای رشد وانکشاف واقعی به خاطر نجات سرمایه های ملی فراهم مینمائیم وشما نیز در برابر پروگرام های انقلابی جمهوری دموکراتیک افغانستان که به خاطر نجات خلق این وطن‌طرح‌ودر دست‌اجرا قرار داردهمکاری وفداکاری نمائید وبگذارید فرزندان شماونسل های آینده یادی ازین فداکاری ها نمایند و برخود ببالند .

به شماخاطر نشان مینمایم که به پروپاگند های مغرضانه منابع امپریالیزم گوش ندهید و به فکر بهبود جامعه خود باشید ومن کاملا بشما اطمینان میدهم که دریک جامعه مرفه شمانیزازرفاه وآسایش برخوردارخواهید بود .

# مونږ نه غواړو چې په تشو وعدو خپل ولس وغولوو

**دانقلابی شورا مشر اوصدراعظم دجوزا په دوو یشتمه نیټه ترغرمې دمخه په لسو بجو دپکتیا ولایت ځدرانو، منګلو او دځمکنیو ولسوالی دخروټو، دبغلان ولایت داندراب، دلوګر دخرخ علاقه داری او مرکز اودهغه ځای دنور وسیمو، دپیرکوټی او سیدونکو توری خیلو او وزیر ، دننګرهار ولایت دخوګیانیو ولسوالی ، دشیرزاده دعلاقه داری ، دمومندو خویزیو اوحلیمزیو او دباجوړ دچار منګو، دسمنګانو دولایـــت ددره صوف ولسوالی ، دکندهار دسپین بولدك اوارغستان دولسوالیو، دغزنی ولایت دجغتوولسوالی، دکنر داسمار دولسوالی ناړی دعلاقه داری او دکامدیش دولسوالی ، دلغمان ولایت دنورستان ولسوالی په کابل کی داوسیدونکو ازبکانو او دفاریاب ولایت دقیصار دولسوالی دقومونو سپین ږیری مشران او استازی دهیواد دنساجی فابریکو کارګران دکابل ولایت دشکردری او قره باغ دولسوالیو، دکندز ولایت دقلعه زال ولسوالی، او جوزجان دقرقین دعلاقه داری قومونو یوشمیر مشران سپین ږیری او نمایندګان او دکندهار غزنی اوهرات دولایاتو څخه دموټرو دورکشاپونو چلوونکی کلینران او کارګرانو دخلکو په کورکی ومنل اوهغوی ته یی وفرمایل :**

**۲۲ر۳ر۵۷**

**دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت انقلابی شورا پدی لټه کی ده ،هغه پلانونه چی دهیواد داقتصادی او اجتماعی حالت دښه والـــی او دافغانستان دزیار کښو ولسو نو هوساینی او آرامی لپاره یی جوړ کړ یدی هغه په عمـــل کی پلی کړی ٠**

لدی امله ناسوته ددغه انقلاب مبارکی‌درکوم چه دغه انقلاب رښتینی او خلقـــــی انقلاب دی او کود تانده چی قدرت یی له یوه لاسی څخه بل لاس ته ورکړی‌وی •

دثور بریالی انقلاب چی دتیرفاسد رژیم دله منځه تلو سبب شواو دهغه له‌امـله قــدرت دافغانستان ولس لاس ته‌وورغی آسان کارنه‌و. چی دیوه تن اویا دڅوکسانو له خواشوی‌وای زمونږ گوند ، دافغانستان دخلــق دموکراتیک گوند دجوړ ید وله وخــت څخه ترنن ورځــی پوری دوطن‌پرستو او رښتینو افراد وله روزنی څخه چه ملکی او عسکری افراد یکی شته‌دتیر فاسد رژیم دفشارونو او شکنجو سره‌سره‌هیڅ ډول زیار ، سرښندنه او فداکاری ونه سپموله ترڅو چی دغه شان انقلاب یی منځ ته راووړ• زمونږ انقلابی ملگرو نه غوښتل چی دثور په انقلاب کی آن‌یوتن ووژل‌شی • مونږ څوکاله مخکی هم کولای شول چی په دغه شان انقلاب لاس پوری کړ و او مساعدفرصت ته موانتظار ویست خوداود چی په خپله پوهیده دغه شان انقلاب مینځ ته راتلونکی دی زه او زمایوشمیر ملگری یی بند یان‌کړو او فکر یی کاوه‌چی زمونږ په بندی توب سره به نور انقلاب‌ونشی• خو زمونږ نورو گوندی ملگر وچی لازندان ته نه ووتللی دافغانستان دخلق ددموکراتیک‌گوند په مخکینی پلان اولار ښوونه سره په کارلاس پوری کړ اوپه رڼا ورځ یی دتاریـــخ ځپلــی سلطنتی رژیم اود داود دقلابی جمهوریــــت فرعونی مانی چی په همدغو ماڼیوکی زمونږدله مینځه وړلوله پاره تصمیم نیوه او خوښی یی کوله رانسکوری کړی‌او قدرت‌دولس درښتینو بچیانو لاس ته ورغی •

دتیر رژیم او دداود دقلابی جمهوریـــت په‌له مینځه تلوسره زمونږ هیلی نه پـــوره کیږی • تر هغه وخته پوری چی مونږ دهیواد اقتصادی او اجتماعی ودی او دافغــانستان د رنځیدلو ولسونو دهوسا ینی او آرامی دپاره په عمل کی دانقلاب سپیڅلی هدفونه پلی‌نه کړو•

مونږخپل مقصدته درسیدوله پاره غواړوچی مربوطی چاری دهیواد دسیاسی قدرت څښتنانو ته‌په لاس ورکړی شی او په عملی ډول داسی کارونه وکړی شی چی زمونږ دولس له پاره گټور شی • او لومړی هدف چی دووړی ،کالیو او کور برابرول دی تامین شی •

مونږ نه غواړ وپه تشووعدو سره‌خپل ولس چی کلونه کلونه یی لدی امله رنځ ویستلی دی وغولوو .نن ورځ داسی‌ورځ نده‌چی وکولای شو څوك وغولوو، مونږ دهرڅه چی‌وعده ورکوو دهغه په تر سره‌کیدوکی به تر٠ وروستی‌شیبی هلی ځلی وکړولکه‌چی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت انقلابی شورا دهغه پلانونو دتطبیق اوپه عمل کی دهغو دپلی کولو په لټه کی‌ده چی انقلاب څخه مخکی یی دهیواد اقتصادی او اجتماعی حالت دښه والی او دافغانستان زیار کښی ولس دهوساینی او آرامی دپاره جوړ کړیدی •

دیوی تولنی بدلون او تغییر دومره هم ساده ندی، چی په یوه دوه میاشتو او یاله هغــو څخه به لږ او زیات وخت کی‌مینځ ته راوستل شی •

موږ بیاهم تکرار وو چی دداود په شان په خپل اووه کلن پلان سره ولس وغولاوه،څوك نه غولوو • خو تاسوته ډاډ درکوم چی موږ به پنځه کلن پلانونو طرحه او تطبیق کړوچی په رښتیا سره بدلون مینځته راوړی او زموږ ګران هیواد افغانستان دیو پر مختللی هیواد بڼه ځانته غوره کړی اوزموږ ټولنه په پوره هوساینه اوآرامی کی ژوند وکړی .

دافغانستان دموکراتیك جمهوری حکومت د تاسو خدمتګارو اودی نه دستاسو بادار، زموږ اساسی هدفونه دافغانستان ولس ته خدمت کول دی اووی به . موږ ستاسو څخه هیڅشی نه پټوو او تاسو ته دروغ نهوایو •

هغه څوك پټولو او دروغ ویلو ته اړدی ، چی دجیب دډکولو او په بهرنی بانکونوکی دپانګی اچولو په فکر کی وی • موږ نه دجیب په فکر کی یواونه په بهرنیوبانکونوکی دسپماپه غم کی ، بلکه زموږ ټولفکرونه زموږ دولس هوساینی او آرامی او زموږ دهیواد دوروسته پاتی والی دله منځه وړلو ته متوجه دی چی څه ډول کولی شو هغه جبران کړو •

یقین لرم چی دغه ټولی ستو نزی اوپسمانی به دافغانستان دټول هیواد پالملت په همکاری حلشی • کهڅــه هم ددغو پسمانیو دلهمینځه وړلو له پاره په کورنیو منابعو کی څه ندی پاتی شوی اوپه تیر رژیم کی لوټ او چــور کړی شوی دی خودافغانستان دمــوکــراتیك جمهوری دولت به د دوستو هیوادو دمرستو د راجلبولو له پاره لازمی هلی ځلی وکړی چی دخپلو پروژو دتطبیق له پاره بی له قید او شرط مرستی تر لاسه کړی •

موږ هیڅکله افغانستان لیلام تهنه وړاندی کوو • موږ به دافغانستان خپلواکی او دهغه ناپیلیتوب په میړانه سره وساتوموږ ددوستو هیوادو مرستی لکه چی څوځله میویلیدی بی له قید او شرط څخه منو، لکه چی په نړیکی دپرمختیایی هیوادو دپرمختګ او ترقیله پاره دبهرنیو مرستو او پورونو ترلاسه کول رواج دی •

موږ دمسلمانانو بچیان یو، زموږ ولس مسلمان دی داسلام دسپیڅلی دیــن اساساتو ته پهدرنده سترګهګورو، هیڅوكبه داادعاونشی کړای چی موږ داسلام له دین سره مخالفت کوو •

موږ که چیریاصلاحات مینځته راوړو داسلام مخالف ندی لکه چی داسلامپه سپیڅلی آیین کی په ډاګه سره دووری ، برابری او ټولنیز عدالت حکم شوی دی • هغه څــوك چی داسلام مخالف دی ، داصلاحاتو مخالــف دی ، دعدالت او برابری مخالف دی •



نورمحمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی وصدراعظم هنگام صحبت باعدهٔ کثیری ازاقوام مختلف مرکز و ولایات کشور درخانهٔ خلق. ۵۷٫۳٫۲۲

دادافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دکړنلاری
او هدفونو هغه لنډه توضیح وه چې
تاسو ته تشریح شوه. هرڅه ته چې په راتلونکی
وخت کی اقدام وکړو تاسو پری خبر وو اوله
تاسو څخه یی نه پټوو • له تاسو دوستانو
څخه هیله کوم چې دخپلو کلیو او بانډو ولسونو
ته زما او دنورو انقلابی ملګرو دوستانه سلامونه
اوهیلی ور سوی او دخپل خلقی دولت هدفونه
چې دولس دهوساینی او آرامی او دافغانستان
دپر مختګ پر ته بل څه ندی توضیح کړی
او هغوی ته ډاډ ورکړی چې نورظلم، ستم او
تو پیرپه هر شکل او بڼه چې وی بیخی له
مینځه تللی نور به داسی حکومت مینځته رانشی
چې دولس ترمینځ دبی اتفاقی په اچولو سره
حکمرانی وکړی • مونږ دملیتونو ترمینځ اتفاق
او یووالی تامینوو او هغوی له پاره کارکوو.

هیله لرم داسی ورځ راورسیږی چې په کوڅه
او بازار ، په کلیو او بانډوکی دخپلو ورونو او
خویند وسره وغږیږم •

په پای کی یوځل بیا دځان او دانقلابی
شورا دملګرو له خوا تاسو ته دثور دپر تمین
انقلاب مبارکی وایم او دتاسو دنیکمرغی هیله
کوم.

کی مونږ داسی کارو نه کړی چی نه یوازی
دافغانستان زیار کښو خلکو دهغو هر کلی
وکړ .بلکه هغوی ډاډه شول چی دهغوی‌خلقی
دولت په ریښتیا سره دهغوی په گټه کارکوی
او دغه راز دسیمی او نړی دکار گرانو-
بزگرانو او زیار کښانو پام مودی ته واړاوه
چی دغه شان خلقی دو لتو نه څه ډول کار
کوی او څر نگه دخپلو خلکو دنیکمر غی
له پاره هلی ځلی کوی او یوه شیبه هم
دهغوی دگټی او آرامی لپاره نه ضا یع‌کوی.

مو نږ خپل انقلاب هیڅ ځای ته نه صادروو
او پدی لته کی هم‌نه یو چی په نورو هیوادونو
کی توطئه او دسیسه وکړو . بلکه دغه
تاریخی انقلابو نه په وار سره په هر ځای کی
خپل کار تر سره کوی .لکه چی په
افغانستان کی زه په پوره ډاډ سره وایم ،
چی زمونږ په خلقی انقلاب کی بل هیچا
هیڅ ډول مرسته نده کړی او نه یی مو نږ
لمسولی یو بلکه مونږ دخپلو خلکو دگټو
په بنسټ اود تاریخ په امر انقلاب کړی دی
همدغه راز هیله من یو او باور لرو چی
په نړی او سیمه کی کار گران بز گران‌او
زیار کښان پرته زمونږ له مرستی او بی‌له‌دی
چی انقلاب زمونږ له خوا صادر شی هغوی
په خپله دغه شان انقلابونه پیل کوی هغوی
پوهیږی چی گټی یی په څه کی دی .

مونږ یوازی کولای شود یوی نمو نی په
توگه څر گند شو و ا ولکه دلمر په شان
وځلیږو ، خو ځینی ارتجاعی عناصر ، امپر-
یالیستان او ددوی گوډا گیان غواړی چی دغه
لمرپه دوو گوتو پت کړی او داسی
څرگندوی چی ته‌په وایی دلته لمر نشته
مگر لمر ،لمردی اونه شی کولی هغه په
دوو گوتوپت کړی او دهغه وړانگی په نړی
توده او هر څوك به روښانه کړی او هر چاته
په‌دا احساس ورکړی چه څه دول خپل
ځان دارتجا ع اواستبداد داستثمار له منگولو
څخه خلاص کړی ، ځکه زمونږ‌گناه نده او
لکه چه و موویل مونږ دهیچا په کور نیو
چارو کی لاس نه وهواو دهیچا کور ته‌ډبری
نه غور ځوو .

په همدی ترتیب په‌کلکه هیله لرو چی‌هیڅوك
زمونږ په‌کورنیو چاروکی‌ډبری‌راونه غورځوی.

له دی امله چی امپر یالستان او دهغوی
گوډا گیان زمونږ په خلاف بی ځا یه هلی
ځلی کوی کومه اندیښنه هم نلرو ، مگر
کله چی وو ینو زمونږ په خلاف له ډبرو غور-
ځونی څخه لاس نه اخلی هغه وخت دوی‌هر
چیری چی وی هغه ټکوو او رسوا کوویی
اوهغوی نړیوالو ته معرفی کوواو څرگند وو
چی دهغو منبع کومه او اصلی ځای یی چیری
دی او دغه راز که چیری هغوی خپلو دغو
ډبرو غور ځو لو ته دوام ور کړی زه پوره
باور لرم چی دهیواد ټول کار گران ،بزگران
او زیار کښان او زمونږ خلقی اردو په
پوره میړانی سره تیاره ده چی دغه شان
ډبری غور ځول له مینځه یو سی .

مونږ په تیره لنډه موده کی اوه فر مانونه
صادر کړل چی هر یو یی دافغانستان دخلکو‌په
سر نوشت کی زیا تی اغیزی لری او دهغوی

دمادی او معنوی گټو په تامین کی یی ستری اغیزی کړی او کوی یی . مونږ دخپلی‌شپیږمی او اوومی گڼی فر ما نونو په صادرو لو سره دهیواد زیار کښی بز گران دگروی، ســود، او نورو دظلم او ستم له منگو لو څخــــه وژغورل او دخپل هیواد دانسا نانو او نجو نو پیرودل او پلورل کیدل موپای ته ورسول ، له دی وروسته به هیڅوك داحق ونلری چــی زمونږ نجونی ، پیغلی او خویندی لکه دپخوا په شان وپلو ری .

ځینی داسی فکر کوی چی دانقلابی شورا داوومی گڼی فرمان په صادر یــدو سره په افغانستان کی ښځه په اصطلا حارزانه شویده پداسی حال کی چی‌دغه راز مفکوره بیخــــــی غلطه اوبی اسا سه ده .څر نگه چی موځو څو ځله ویلی مونږ تل داسلام اسا سات په نظر کی نیولی او هغو ته احترام کوو، له‌دی امله مود ښځی حق او مهر چی دشر عــــــی امر له مخی له دری سوو افغا نیو سره برابر لس در همه دی تجو یز کړی دی چی زمونږ دهیواد ځو انان او پیغلی آزادانه او ددواړو خواوو په موافقه اوهم له شرعی منا سکو سره سم واده وکړی .یو ځل بیا وایم چی انسان قیمت نلری ،اوکه څوك داسی فکر کوی‌چی گواکی دانسان قیمت دری سوه افغانی ټاکـل شویدی اشتباه کوی اوباید خپله اشتباه سمه کړی .

دشپیږمی گڼی فرمان په صادر یدو او تطبیق سره داستثمار وو نکو او سود خورو له جیبونو څخه څه دپاسه دیرش زره ملیو نه افغا نـــی را ایستلی شوی او زمونږ دبی ځمکو او لـږ ځمکو بز گرانو لاس ته ور غلی دی . پدغه مهم کارسره هغوی دسود خورو اواستثمارـ وونکو له منگو لو څخه خلاص شوی دی،او اوس په زیاته مینه دخپل هیواد او سنــــــی او راتلو نکی حالت ته گوری او خو شحالــه دی چه له دی وروسته هرڅه چی‌کړی حاصل به یی په خپله اخلی چی مو نږ ددوی پد غه خو ښی کی شریك یو .

البته ددغو فر مانونو په صادر یدو سره زمونږ دخلکو ټول در دونه نشی دوا کید لای مو نږ به نور داسی ارزښتمند او گټور اقدامونه هم سرته ورسوو چی دهغو په نتیجه‌کی پــه واقعی تو گه دافغانستان فیو دالی ټو لنه له بنسټ څخه بد له شی ،او دیوه آبادافغانستان نوی ټو لنه مینځ ته را شی .

مونږ به دزر گو نو بی ځمکو اولږ ځمکــو بزگرانو په گټه ځمکه برابره کړو ، اودهغوی لپاره مو نژدی له پنځه ویشت څخه تردیر ش لکو جر یبو پوری ځمکه ویش ته چمتوکړی ښایی په راتلو نکی وخت کی یی په بزگرانو باندی وویشو ،چی په پوره سو کا لی پــــه خپلو ځمکو کی‌کارنه وکړی‌اوبسیا شی.البته زمونږ مقصد داندی چی دځمکو له څښتنانـــو څخه ټولی ځمکی واخلو او ټو لی وو یشـــو بلکه په هما غه اندازه ځمکه دځمکی دڅښتن په واك کی ور کول کیږی چی ژوند یــــی بسیا کړی او نوره دټولو زیار ایستو نکــو دنیکمرغی دتامین په غـــرض ویشو ، دغــه کار دراتلو نکی نوی ټولنی په جوړ ولوکـــی ډیره ښه وسیله شمیر له کیږی .

څرگنده ده چې زمونږ دغه تعمیری، سیاسی اقتصادی او اجتما عی اقدامات په ځینـــو هیوادو نو بنه نه لگیږی .په تیره امپریا- لیستان چې زمونږ له هیواد څخه داستثمار دورك کید لو سره په اند یښنه کیږی .مونږ هغوی ته وایو چې خاندی او که ژاړی مونږ دغه کار سر ته رسو وځکه دا زمونږ هیواد دی .زمونږ انقلاب نه دچا په امر اونه دچاپــه دکتی شوی دی .

مونږ مخ په وړاندی ځو مونږ هغه کارونه کوو چې زمونږ دخلکو اقتصادی او اجتمـاعی گټی پکی پر تې وی او هیڅ پروا نلرو چــه دغه کار دامپر یالیستانو او یا دار تجاع پــه زیان تمام شی زمونږ خلك له مونږ سره دی،او زمونږ خلقی اردو په ټوله معنی له خپل‌خلقی دولت څخه ددفاع لپاره چمتو ده نو هیڅـــوك نشی کولی چې مونږ ته گو زار ر اکړی.

یوځل بیا وایم چې ارتجاع او امپریالیستان په مونږ داتور لگوی چې خدای دی نکـــړی مونږ کــافر یو، دحیرانتیا ځـــای دی چې یو کافر هیواد چې په خپله بیخی مسلمان نــدی او نه داسلام آئین منی ،څر نگه په مو نــږ تور لگوی هغو ی دافغانستان اونورو متر قی هیوادو په خلاف تل دکفـرله وسلی څخـــه کار اخیستی او اخلی یی .

خو اوس شرایط بیخی بدل شوی مونږ په ټولو پخوانیو نیمگړ تیا وو باندی‌پوهیږو. دمثال په توگه په تیروځلویښتو پنځو ســو کلو کی یو لږ تو لنیز بد لو نو نــــــه په هغه وخت کی دنهضت مشران نــــــه پوهیدل چې له کومه ځایه یی پیل کړی‌یوه مترقی ارمان لرونکی خلقی اردو یی نه لرله هغوی فکر کاوه چې خلك یی دفاع کـــوی خلك ورسره دی او هیڅوك پری برید نشی کولی .دوی اشتباه وکړه ، ځکه په هغـــه وخت کی دخلکو سیاسی او ټولنیز شعوردومره وده نه وه کړی او امپر یالیستا نو دخپلـــو گوډا گیانو یعنی مسلمان نو له پرتگیا نو په مرسته دهغوی پر ضد تبلیغات پیل کړل،او پرڅوتنو بی وسه عسکرو سره چې مترقـــی ارمان یی نه درلودونه شو کړای دارتجاع په ضد مقاومت وکړی . خو مونږپه تیرو اشتبا- ها تو باندی په علمی ډول پوهیدو په اردوکی مو دخپلو زیار ایستو نکو خلکو مر بـــوط ځوانا نو او افسرانو سره خلاق بر خوردوکړ. کلو نه کلو نه مو وروزل او دکار گـــــر طبقی پر گوند باندی مو را ټول کړل، اودهغه پردوران جوړوونکـی ایډیالـوژی بـانـدی موسمبال کړل ، چې په پای کی یی دخپـــل گوند په دستور دثور انقلابی ستر پا څـــون بر یالی کړ .اوس چې زمونږ دبر یا لـــی انقلاب څخه شپږ میاشتی تیری شوی زمونږ اردو ، دافغانستان دخلکو دغه وسله‌وال پوځ په یو خلقی اردو او بنتی دی، او په هغه کی له خلقیانو او یا هیواد پا لو او متر قـــی عناصر وپرته بل څوك نشته .

البته اردو دکار یوه برخه وه مونږهغه‌خلك چې دهغوی ټولنیز اوسیاسی شعور تر پخوا او اصلاحات وشول خو ژرله مینځه لاړل ځکه ډیره وده کړی ده هم په نظر کی ونیـــول

په تیره بیا زموز ګو ند دخپل هیواد ددفاع قدرت لری .ګوند دټول انقلاب لپاره ډیره اغیزمنه وسیله ده که ګوند نه وای ویلای شم چی انقلاب نه‌عملی کیده•

مونږ اومړی دګوند دجوړیدو او دهغه دپیاوړی کید وپه فکر کی شو و ، چی نه یوازی په‌کابل بلکه دافغانستان په ګوټ ګوټ که‌هغه پیاوړی کړو. ګوند ته موږ یار ایستونکی ځوانان او نجو نی رااټول کړی او هغوی تنظیم او منسجم شول • ګو ند وکړای شول داردو اعتماد هم ترلاسه کړی ددوی ځان خبره برخه یی پر ځان را ټوله کړه او په پای کی یی دثور خلقی انقلاب وکړ .

که ګوند نه وای نو انقلاب نه کیده ،او که چیری یوه کودتاهم شوی وای یوه خلقی پا څون به نه بلکه یوه بی ارزښته کودتابه وه اوس ټول واك اواختیار دګوند په لاس کی‌دی اوپه ښه توګه یی رهبری کوی .دافغانستان ټو لی چاری دیوه تن په لاس کی نه بلکه دټول ګو ند او ټو لو زیار کښو کار ګرو او بز ګرو لخوا یی لارښودنه کیږی .

زه تا سوته ډاډ درکوم چی نور هغه‌غلاګانی اختلا سونه او نور ناوړه کارونه بیخی په دولت کی نشته . اوریدلی به مو وی چی امیر عبدالرحمن دبډو اخیستلو په تورد ورځی څونه وژل خوبډی خوړل نه ور کید ل اوداله دی امله ووچی هغوامیران‌په خپله غله اوبډی خواره وو .خو موږ په افغانستان کی بډی خوری نږدی صفرته راورسول اوداد‌ګوند له بر کته بولو .

موږ په ګوند کی خپل بچیان داسی روزلی دی که هغوی له لوژی مړه شی هم بډی نه اخلی اوله علاقه دارنه نیولی تروزیرانو پوری زموږ مامورین په خپل معا ش سره‌خپل ژوند تیروی • ډوډی او چای خوری‌اوهیڅکله دنورو جیبو نو ته ستر ګی نه نیسی ، او نه دا سی روزل شو یدی چی دچا جیب ته زړه ښه کړی او داستا سو دګوند او دولت ستر ویاړ دی او دغه کار دافغانستان په تاریخ کی ساری نلری .

زه تاسوته مبارکی وایم ، چی تا سوداسی دولت او ګو ند لری چی ستا سو په خد مت کی دی او تا سوته کار کوی . اوس ازبك، تاجك، هزاره، پښتون او نورستانی ټول دوروڼو په څیر ژوند کوی ، حقوق یی برابر دی ، ددوی دودونو ، رسم او رواجونو او ژبو ته هوو ده ورکړ یده .

اوس دوی یو له بل سره هیڅ تربګنی نلری .هغه بز ګر چی په میمنه کی یوی کوی له هغه بز ګر سره چه په ننګر هار یا پکتیا کی په کرنه بوخت دی په خپلوکی څه دښمنی لری ؟

هغه فیوډالی دولت او فیوډاله طبقه وه‌چی تل یی هغوی پدی نوم اوپه هغه نوم یعنی پښتون، هزاره، تاجك او ازبك په نومونو یو له بل سره په خپلو کی جنګول .

اوس ستاسو دولت ، ستاسو ګوند او زموږ کار ګران بزګران او زیار ایستونکی

پدی وياړی چی دارنگه احساس له منځـــه تللی دی .اوس ټول برابر حقوق لری او ټول دورونـو په توگه په خپل هیواد کی آزاد ژوند کوی .

زه تاسو ته زیری درکوم چی دغه دولــت دسالاری غو لو ونکو دو لتونو په څیر نه دی چی تا سو یوازی په خبرو خو ښی کــــړی ستاسو لویان خوشحـاله کـړی او ستـاســو واړه وټکوی موږ داسی نه یو لویان زموږ وروڼه دی او کشران هم. چاپ اندازان ،داسونو څښتان او ټول خلك زموږ ورو ڼه دی او موږ ټو لو ته د در ناوی په ستر گه گو رو او هیڅ وخت به داسی ونه کړ وچی دپخوا پــه شان يوله بل څخه ښه وبولو اوویی لمسسوو.

هغه لو بی چی دمثال په توگه دبدخشان او فارياب تـــر منځ کیږی او یویی گټـی دایو عادی کار دی . موږ دغه شان لوبی بیا هم تشو يقو و او سپورت چی دټو لنی پـــــه وده او پر مختیا کی زيات اهميت لری‌پراخوو زه تاسو ټولو چاپ اندازانو، داسونو خاوندانو او هغه چا ته چی اسو نه روزی په ښه نظر گورم او تا سو ټولو ته مبارکی وايم او هم هغه چاته چی لو بـه‌یی گټلی ده مبا رکــــی وايم او هم هغه چاته چی په دغو لو بو کی یی گټون کړیدی مبارکی ورکوم .

یو ځل بیا ستا سو په ذریعه خپلو ټولـو گرانو هیواد والو ته په هره سیمه اوهر ولایت کی چی دی خپل تاوده سلامو نه رسوم .

او هغوی ته وایم ، چی ددوی خلقی دولت به‌په ډیـــر نژدی وخـت‌کی ددوی دپاره داسی کا رونه وکړی چی ددوی گټی وسا تی‌اوهغوی یی په خپلو ستر گو ووینی .موږ هر څــــه چی وايو هغه عملی کوو او موږ هیڅکلـــــه بادنه تلو ، موږ تشی خبری نه کو څـه چی وايو هغه په عمل کی پلی کوو .

تا سو ته هم سپار ښت کوم چی لاړ شی دټولو کار گرانو ، بزگرانو او زیارایستونکو ته ووایا ست چی په کو پراتیفو نو اواتحادیو کی سره را ټول شی ، ځکه ټول ښیگنی او بریالیتوبونه په یووالی کی دی او پـــــدی وسیله کولای شو دافغانستان دخلکو ټولنیز نیکمر غه ژوند تامین او هغوی دخو شبختـــی په لور روان کړو .

ستاسی سره دخپلی کتنی له امله مننـــــه کوم .

# با تطبیق پلان پنجساله بنای سعادت جامعه ما مستحکم خواهد گردید

متن بیانیه رادیو تلویزیونی رهبر کبیر وانقلابی مانور محمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی وصدر اعظم بمناسبت عید سعید اضحی

۱۹ر۸ر۵۷

بسم الله الرحمن الرحیم:

هموطنان عزیز !

بمناسبت عید سعید اضحی به شما وتمام برادران پشتون وبلوچ از صمیم قلب تهنیت می گویم مخصو صا به آنعده کسانی تمنیات نیك وتبر یکات خود را اظهار میدارم کـــه امروز از جمله ار کان عالی دین مبین اسلام یکی آنرا که حج میباشد بجا آوردند .

در این روز چنان عمل بزرگ قر با نــی وفدا کاری انجام یافته است که آن برای تمام مسلما نان یك نمونه بر جسته شد هٔ میتواند.

ماوشما نیز باید درراه سعادت ونیـــك بختی خلق چنان فدا کار ی واز خود گـــذری نما ییم که در نتیجه آن مسلما نان زحمتکش ماوتما م جهان آرام ومسعود شوند .

انقلاب کبیر ثور خلق افغانستان را ازهر گو نه قید وبند نجات داد اکنون مسلمانان زحمتکش کشور مابا آزادی وآرامی کامـــل میتوانند امور مذهبی واجتما عی خود را بجا آورند مااز آنعده ملاها ورو حـانیون محترم خود قدر دانی زیاد می نما ییم که آنهـــا به مسایل دینی ورو حانی خود مشغول بـوده ونمیخوا هند که زیر پرده دین بر ضدمنافع خلق افغانستان عملی را انجام دهند ودر تلاش آن نباشند که دیـن را آله سیاست قـــرار دهند .

این قابل افتخار ویـادآوریست که تمـام خلق ما در راه آبادی کشور شان با ماسهم عملی گرفته وهمواره میگیر ند در هر جاجهت



نورمحمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی وصدراعظم هنگام ایراد بیانیه به مناسبت عید سعیداضحی. ۱۹ر۸ر۵۷

---

آبادی کشور عزیز خود بصورت داو طلبانه کارهای جسمانی، اجتماعی را انجام میدهند.

دو شیز گان زیبا وجوانان مقبول ما میرمن ها ومردان محترم مابه پاس همدردی واعتمادیکه به دولت خلقی خود دارند بطور دستجمعی بدعوت ورهنما یی ادارات دولتی وحز بی در راه اعمار خانه ها گل، سنگ و خشت را انتقال میدهند زیرا آنها بصورت شعوری احساس مینما یند که اکنون کشور از خود شان است ،دولت از خود شان وتمام زمین وآسمان از خود شان است.

با ید بگویم که‌این کار دسته جمعی تعمیری نشا نه آغاز بیداری زیاد سیاسی واجتما عی خلق افغانستان عزیز است.

ما یقین داریم که در یك مدت بسیار کوتاه درراه‌آبادی کشور همچوکارهای‌داوطلبانه ومطلوب اجتماعی انجام خواهد شد.

این بیجا نخواهد بود اگر مکرراً اظهار نما یم که فرمان شماره هفتم زولانه دیگری را ازپا های اجتما ع ما بدور افگند که این یك‌ضر به بزرگ دیگر تاریخی در جهت سر کوب کردن نظام فیو دالی بود.

خلق ودولت ما جداً تصمیم گرفته اند که ماشین سیستم فیو دالی رانه تنها از نظر سیاسی واقتصادی از بین ببرند بلکه درعین

حال برای ازبین بردن کلتور فیو دا لـــی ورسم ورواجهای نامطلوب آن نیز قدم هـــای موثر بر دارند اکنون نیروی جوا ن اجتما ع ما ازقید وبند نجات یافتند ودر راه آبـــادی کشور وجامعه خود سهم کلی خواهند گرفت.
کار گران دهقا نان وسایر زحمتکشان کشور ما باشوق زیاد وجد یت اتحادیه هاوسازمان های خود را تشکیل مید هند وجهت منافـــع خود صندوق هاو کوپراتیف های تعاونی‌تاسیس میکنند وبا شور وسرور بی پایان دستـــــه دسته در همچو فعا لیتها ی دمو کراتیـــک سهم می گیرند زیرا مسیر راه آنها بازشده وآن موا نع ومشکلات بزرگی که‌در جهـــت چنین فعالیتها ی دموکراتیك موجود بوداکنون ازبین رفته است وآنها با اطمینان خاطـــر نیرو های تعمیر ی‌خود را باهم پیوند داده سیل آسا در جهت آبا دانی وطن عزیز خود وبرای بدست آوردن منافع مادی ومعنوی خود مساعی همه جانبه را بخرج مید هند .

فر نگی های مسلمان نما وکا سه لیسان ارنجا ع داخلی وخارجی‌به پول امپر یا لیست ها وتحر یك آنها تلاش های بی ثمر میناما یند که در راه ترقی وپیشر فت افغانستان سنگ اندازی کنند و حکم تـاریخ را باطـل نما یند ولی اردوی قهر مان و نیرو منـــد خلقی مابه حمایت خلق زحمتکش خود وبه رهنما یی حزب نیرو مند خلقی خود همیشـه کمر بسته وآماده است تاهر گونه‌دسا یس واقدامات خاینا نه آنها را خنثی سا زنـــد وبه‌هیچ وجهه این گونه دسا یس آنهـــا نخوا هد توا نست اثر قابل ذکری در جهت پیشرفت ما وارد نما ید و جامعه مادر راه‌رشد اقتصادی واجتماعی بطور خوشس آیند روان است .

سعادت ورفاه حقیقی جامعه ما دراین‌است که منابـــع طبیعی‌ما بصورت‌خوبی بکارانداخته شود وکشور بسوی‌صنعتی شدن گا مهـــای سریع بر دارد ودر عین حال یك زرا عـت عصری ومیکا نیزه داشته باشد لذا برای‌تامین این آمر دولت ازیك طرف پروژه های سابقه را فعال ساخت واز جانب دیگر کار طـــور اسا سی روی پلان پنجسا له جریان داردما یقین کامل داریم‌که باتطبیق پلان پنجسا له بنای سعادت جامعه ما مستحکم خواهد شـــد وخلق رابسوی یـك زندگـــی مسعود سوق خواهد داد .

مانع بزرگ راه رشد اقتصادی قروض‌ومفاد آن میباشد که ظاهر ،داود از کشور هـــای خارجی گرفته وقسمت اعظم آنرا برای خـــود مصرف نموده بودند ، دولت خلقی شما بـرای حل این موضوع تلاش های پیگیر وهمـــه جانبه مینما ید .

کار بزرگی کـــه دولت درپیش رو دارد اصلاحات ارضی میباشد تطبیق این‌کاربزرگ وبی نظیرهمکاری وحمایت‌تمام‌خلق‌را‌یجاب‌میکند دولت میخوا هد که‌این کار بزر گرا بـــه اشتراك خلـق بی زمین وکم زمین تطبیق کند اصلا حات ارضی بسیاری از خلق بی زمیـن وکم زمین کشور مارا صاحب زمین خواهـــد ساخت .

باید اظهار نماییم که دولت تنها به اصلا-
حات ارضی اکتفا نمیکند ما برای از دیاد
تولیدات زراعتی خود تر تیبات بسیار بزرگ
را برای احداث بندها، نهرها، وکانال
ها اتخاذ کرده وهم آمادگی لازم صورت میگیرد
که توسط واتر پمپ ها زمینه کشت زرع را
برای هموطنان خود میسر سازیم .

برای تهیه تخم های خوب کود کیمیاوی
ترا کتور ها ودیگر ماشین های زراعتی
کارهای مطلوب جریان دارد وبرای توسعه
شبکه های برق هم کار های خوبی انجام شده
است .

ماامور استخراج نفت راسرعت بخشیده ایم
در این چند ماه گذشته منابع جدید
نفت کشف شده است پیشبینی ما این است
که درآینده نزدیك موفق خواهیم شدو سایل
تصفیه نفت را نصب نما ییم وامید است
افغانستان بزودی به این موفق گردد که
حد اقل بدان اندازه نفت را بد ست آرد که
برای مصرف داخلی کفا یت کند همچنان
مابرای استخرا ج منابع معد نی دیگر خود
تر تیبات لازم اتخاذ نموده ایم .

دراین مدت کوتاه ماتوانستیم که با احتکار
وبازار دزدی مبارزه موثر نماییم وبرای ازبین
بردن رشوت واختلاس کار های مو ثرانجام
شده است که هموطنان عزیز ما خود مشا-
هده میکنند در سابق در افغا نستان هرورزده
ها حتی صد ها قتل صورت میگرفت . ده ها
وصد ها سر قت واقع میگر دید مگر اکنون
در تما م افغانستان روزانه دو ویا سه قتل
میشود ومیزان دزدی ها فوق العاده پا یین
آمده است واین خود بیا نگران است که
دولت خلقی برای استحکام امنیت داخلی
اقدامات مطلو ب کرده است واین وضع اعتماد
کامل خلق رابر دولت آشکار میسازد .

در باره صحت عامه هم دولت در این مدت
کوتاه چنان اقدا ماتی نموده است که طبابت
را ازسا حه تجارتی آن بیرون سازد دکتوران
وطنپر ست ما هم در این قسمت نقش مطلوبی
بازی کرده اند امید وارم که در آینده نزد-
یك امور صحی ما ازین هم بهتر ومفید تر
گر دد .

فر نگیان مسلمان نما عنا صر پست وخاینی
که از بعضی کشور های ارتجاعی خا رجی
رشوت میگیرند همیشه میخوا هند که در
کشور عزیز مایکنوع ناآرامی وپراگندگی
ایجاد کنند با داران آنها این را متحمل
شده نمیتوا نند که در افغانستان نظام فیودالی
سقوط کند وبجای آن یك نظام نو متر قی
وخلقی بمیان آید مگر خلق زحمتکش ودولت
خلقی ما توسط ار دوی نیرو مند خلقی

خود تما م دسا یس مخفی و اشکار چنیـــن خا ینا ن را کاملا خنثی سا خته اســـت ودر آینده نیز خنثی خواهد سا خت.

مادر این مدت کوتاه در کشور عزیز خود یکتعداد منازل ،سر کها ، پلها وخطوط مواصلاتی را اعمار کرده ایم که مژده آنرابه تمام وطند اران میدهد که عنقریب درافغانستان در راه زندگی نو گام های مطلوب برداشته خواهد شد .

ما در ساحات تعلیم وتربیه ، تعلیمات عالی ونیز اطلاعاتی وکلتوری چنان گام های بـر داشته ایم که بخوبی نشان نمید هد کـه دولت برای تامین حقو ق واحتیا جات همـه جانبه تمام ملیت های بر دار مصروف کـار است باید بگو یم که منبع قدرت وحرکت حزب و دولت ماهم همین اعتماد وحما یـت خلق میباشد .در کشور همسا یه و دو ست مـاایــران اوضاع سیاسی وامنیتی سبب نا آرا می خلق نجیب آنجا شده اســت افغانستان بحیث یك همسا یه خوب سعادت ورفاه خلق ایران را میخوا هد وامید واراست که برا دران ایرانی ما بزودی از طر یــق صلح و صفا زندگی اجتما عی خو یشــرا از سر بگیر ندو هرآنچه آنها مخواهنـد بدست آوردند .

مادر تمام جهان ومنطقه صلح میخوا هیـم وبرای این خواسته خود سعی نموده وخوا هیم کرد ما با تمام کشور های جهان وخا صتـا با همسایه های خود در صلح ودوستی زندگی میخوا هیم ،بین ما واتحاد شو روی دوستی وبرادری کامل موجود است وبا همد یگـر اعتماد واعتقاد مستحکم داریم امیدواریم کـه چنین دوستی واعتماد را بادیگر همسا یگان هم تا مین نما ییم .

حفظ ودفاع ازحقوق بشر ازنکات برازنـده سیا ست داخلی وخارجی ما شمرده میشود.

ما به منشور ملل متحد مانند سابق بـه نظر قدر می نگریم ونه تنها استقلال و عـدم انسلاك خود را بصورت مستحکم حفظ میکنیم بلکه به استقلال وعدم انسلاك سایر کشورها هم به نظر احترام خواهیم دید . ما آن یگانه اختلاف سیاسی که درباره برادران پشتون وبلوچ با پاکستان داریم برای حل آن از طـرق دوستی ومذاکره مسا عی همه جانبه بخر چ مید هیم ما از اعراب خا صتا از مساعـی خلق فلسطین برای تما مین حقوق مشرو ع و مسلم آنها حما یت میکنیم ودر هر جا از جنبش های نجات بخش ملی پشتیبانی میکنیم تبعیض نژادی را بشدت تقبیح میکنیم .

در اخیر یکبار دیگر به مسلما نان افغانستان وتمـام جهان به مناسبت عید سعید اضحی از صمیم قلب تهنیت میگو یم .

بااحترام

# دکوشانیانو مغلقه او پیچلی دوره له هنری نظره یو غوره یدلی دوره ده

**دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیتی دعمومی منشی دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم دگران او انقلابی لارښود نورمحمد تره کی دهغه پیغام متن چی دکوشانی څیړنو دبین المللی سیمینار په مناسبت صادر شویدی.**

**۱۳۵۷ر۸ر۲۴**

خو شما له یم چه دثور لهدوران جوړوونکی انقلابه وروسته ددو ستو هیواد وله یو ها نو سره دخپل هیواد دپو ها نو لمړنی نړیوال سیمینار پرا نیزم .

دافغا نستان نوی دولت چه دخلکو رښتینی حکو مت دی ،هڅه کوی چه له یوی خواد هیواد ستر و خلکو ته ډوډی ،کالی او کور برابر کا ندی اوله بلی خوا دخلکو تاریخ او انسانی فر هنگ او هنر وغو ړوی .

مونږ دمترقی او مخکښی فلسفی پربنسټ دپد یدو منطقی او دیا لکتیکی پیو ند په نظر کی لرو او دخپل تاریخ تیرو خت په باب دنوی پوهنی دمعیار ونو او محکو نوله مخی قضاوت کوو او ننیو ا وسبا نیو نسلو نوته به دهیواد واقعی تاریخ روښا نه کړو .

مونږ ددغه اصل پر بنسټ چه دبشری ټولنیز تاریخ، هستی زیږ ونکی خلك جو ړ وی نه مفتخوار او ممتاز لږکی هڅه کوو چی خپل پوهان دغه ډول څیړ نواو مطالعا توته وگمارو .

دکوشانیانو ددوری په باب گرویږ نه او څیړ نهچه زمونږ په هیواد کښی دمرئیتوب ددوران له زوال سره برابره ده ددغسی څیړ نو او قضا وتو نو له پاره پیل کیدی شی او په همدی شان دی زمونږ هیواد ټولی تاریخی دوری دعلمی جهان بینی په معیار سره وڅیړلی شی .

دکوشانیانو مغلقه او پیچلی دوره له هنری نظره یو ه غوره یدلی دوره ده او هغه مجسمی او آثار چه لهسرخ کوتل، دلبر جین او په غزنی کی دسر دار له غونډی اود هډی دښتر له غو نډی او نورو سیمو څخه لاس ته راغلی دی ددغی ادعا رښتینی شاهد دی نو بی ځایه نده چی دکو شا نی څیړ نو بین المللی مرکز زمونږ په هیواد کی تاکل شوی اودغه بین المللی مرکز وظیفه لری چه د کوشانیانو ددوری دتیا ره او مبهمو څنډو په رو ښا نه کولو کی له هیڅ ډول هلو ځلو څخه ډډه ونه کړی .

هیله لرم چه زما دهیواد پو هان دکوشانی دوری دنورو څیړونکو او ماهرا نو په مرسته بر یالی شی چه لدغه سیمینار څخه گټوری نتیجی واخلی او په صمیمانه فضا کی په پوره ښه سره دعلم او پوهی په پراخه ډگرکی یوپوخ او په زړه پوری گام پورته کړی.

**دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم**
**نورمحمد تره کی .**

# د ننگرهار د پوهنتون د پرانستلو په مناسبت پیغام

**د ننگرهار پوهنتون دپرانستلو پــه مناسبت دانقلابــی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دپیغام متن۰ ۱۳۵۷٫۸٫۲۹**

**گرانو وطنوالو ، درنو استادانو اومحصلانو!**

نن چه دجلال آباد په لرغونی ښار کــی دننگر هار پو هنتون ددر یونو یو پوهنځیو پــه پیل کیدوسره پرانستل کیږی نه یوازی ددی پو هنتون دمحصلا نو او استادانودپاره دخوښی ورځ ده بلکه دهیواد دټولو زیارا یستونکو او په تیره بیاد ننگرهار دولایت دزیار کښو خلکو لپاره دزیات اهمیت وړ ورځ گڼله کیږی ځکه ددی پوهنتون پرا نستل ټو لــو استادانو ، محصلانو او دافغانستان زیارکښو خلکو ته دزړه له کومی مبار کی وایم اوهیله لرم چی ددی پوهنتون پرا نستل به زمونــږ دزیار ایستو نکو دپاره گټو روی اوپوهنتــون به وکولای شی چه خپلی وظیفی په ښه توگه دخلکو دپاره سرته ورسوی .

پوهنتونونه اودلوړو ښوونو موسسی دټولنی په علمی ،اقتصادی ،اجتما عی او کلتوری تکامل کی ستره برخه لری او دټولنی اوسیمی دخلکو دپاره زیات ارزښت لری ،دغه مؤسسی نــه یوازی دټولنی داړ تیاوړ علمی ،فنی اوتخصصی کدرونه او پرسونل روزی او ښا گر دانوته دتیرو نسلو نو علمی میراثو نه انتقا لــوی بلکه دخلکو داذهانوپه تنــو یــر دسیاســـی شعور په لوړ ولو او دعلمی معلو ماتو متر قی اندیښنو ایډیالوژی او کلتوری په خپرولــو او رواجو لوکی هم سترنقش لری۰

دثور دستر انقلاب څخه پخوا زمو نــږ په ټولنه باندی فیودالی نظام مسلط وودکوم په سر کی چه غدار نادر کورنی دارتجاع او امپر یالیزم نو کره کورنی ولاړه وه دفیودالی منا سباتو دشته والی له امله دتولیدی قواوو وده ډیره پڅه وه او دتولید آلات ډیر بسیط او ابتدایی وو له دی امله زمونږ دخلکو د ژوند سطحه ډیره ټیټه وه .

بیسوادی ، بی کاری ، ناروغی لوږه ، بی کوری ،بربنډی زور او ظلم اوتیری هغــه

اجتماعي پدیدي او پیښې وي چې زمونږ میړنی او زیار کښ خلك یې ډیر زیات ربړول او ځورول دلوړ ونښو ونو ، موسسې ډیرې لږې محدودې او بې کیفیته وې .اکثراد استثمارگروطبقو زامنو او لوړو ته دلوړو زده کړو فرصت څه دهیواد دننه او څه په خارج کې میسر ؤ خودزیار ایستونکو خلکو لوڼې اوزامن حتی دسواد څخه هم بې برخې وو .

دثور ستر او پرتمين انقلاب چې دافغانستان دخلکو په اراده دافغانستان دخلکو ددموکراتيك گوند په لارښوونه او دزړ ورو او وطنپالو نکو افسرانو ا وسر بازانو په گلهون سره بری ته ورسيد فيودالي وروست نظام يې راوپرزاوه او دنادري کور نۍ دنيمې پيړې سياسي ا واقتصادي حاکميت او تسلط يې دتل دپاره پای ته ورساوه او سيا سي قدرت دافغانستان دخلکو دموکراتيك گو ند دکار گرې طبقې مخکښې ته وليږديده چې دافغانستان دموکراتيك جمهوري دولت يې منځته راووست لکه چې دجمهوري دمو کراتيك حکومت دانقلابي وظيفو په اساسي کوښو کې ويل شويدي دغه دولت دنور وستر و وظيفو تر څنگه دلو ړو ښو ونو دمؤسسو او پوهنتو نو دپر اختيا وظيفه هم په غاړه لري

نو ځکه دلوړو ښووڼو وزارت د ننگرهار دپو هنتون جوړ ونو ته اقدام وکړ .

دلوړو ښو ونو وزارت دهيواد داقتصادي ودې داړتيا وړ علمي اوفني کد رونو د روز لو له پاره يوازې دننگر هار پوهنتون په پرا نستلو اکتفا نه کوي بلکه دد موکرا تيك جمهوري دولت په لومړی پنځه کلن پلان کې به دنورو پو هنتو نونو او دلو ړو ښوو نو دمؤسسو په جوړ ولو باندې هم اقدام وکړي تر څو خپلې وظيفې دافغا نستان دزيار ايستو نکو په وړاندې په ښه توگه سر ته ورسوي .

داټول عالي ار مانو نه، سترې فدا کارې او قرباني غواړي تر څو سرته ور سيږي دا قرباني اوله ځان څخه تير يدنه له ډيرو درند واو پيا وړو استا دانو او ميړ نيو محصلانو څخه انتظار کيږي .

گر انو او خوږ ووطنوا لو !

زمونږ او ستا سو هيواد ، زمونږ او ستاسو خلك او زمونږ او ستا سو انقلاب په علمي اساساتو کار اوزيار غواړي، علم ز مونږ دخلکو دبر يالي توب لار رڼا کوي . لدې پرته چه تاسو په خوږه او ژوره مينه دخپل انقلاب دبر يالي توب لەپاره چمتو اوسي او خپله پدغه بريالي توب کې برخه واخلې او نورورته تيار کړی د عزت اوپت بله لاره نشته .ددغه هدف په لاره کې ستا سو دټو لو دبرياليتوب په هيله يوځل بياد ننگر هار پو هنتون ددې پر اختيا مبارکی درته وايم .

(دانقلابي شورا رئيس او صدراعظم نورمحمدتره کی)•

# پوهان په ټولنه کې د مشعلونو او د ټولنې

# دستنو په څیر دي

زموږ انقلابي پوه مشر او د افغانستان د خلکو ستر لارښود نورمحمد تره کي وینا چه د کوشاني څېړنو دبین المللي سیمنار له غړو سره د کتلو په وخت کې وکړه .
۱۳۵۷ر۸ر۳۰

د خلکو ستر مشر د افغانستان د خلکو د دموکراتیک ګوند د مرکزي کمیټې عمومي منشي نورمحمد تره کي پوهانو ته د زړه له کومې ښه راغلاست ووایه او زیاته یې کړه .

پو هان په ټو لنه کې د مشغلو نو او د ټولنې دستنو په څیر دي دوی ټو لنه روښنا نه کوي دوی تل د ټولنې مخکښ دي د ټولنې متفکر ما غزه دي نو ځکه موږ تاسو ته په درنه سترګه ګورو د افغانستان خلك نه یوازي تا سو تـه بلکه د ټولي نړۍ پو ها نو ته په درنه سترګه ګوري ځکه چې هغوی د بشر د سعادت او نیکمرغي لپاره هلې ځلې کوي او د دوی هلو ځلو نـن ور ځ نړۍ دې درجې ته رسو لی ده چـــې بلکل اوس په فضا او د سمند رونو په تل کې ګرزي او د نړۍ هري برخې ته یې ځانونه رسولي دي چې دا ټول د پوهانو د زیار او کار بر کت دي .

پوهان د ټول بشریت ګډه پانګه، ګډه شتمني او ګډ اشخاص دي دوی که څه هم په بیلا بیلو هیوادو کې ژوند کړي خو په ټول بشریت او ټولې بشري نړۍ پورې اړه لري له همدې کبله هغوی ته ټول خلك په درنه سـترګـه ګوري ځکه چې د دوی د کار اوږ یار نتیجـــه د ټول بشریت په ګټه ده او ټول بشریت تري نه فایده اخیستی شي.

په هر هیواد کې چې څو مره پو هان ډیـــر وي په همغه اندازه دهغه هیواد ډیره وده او په چټکتیا سره پرمختګ کوي . زموږ په هیواد افغانستان کې د وروسته پا تې والـي یوستر علت دادی چې دلته د پوهانو او علماوو



دانقلابی شورا رئیس‌او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دگوشانی خیړنود بین المللی سیمینار له غړو سره دخلکو په کورکی دویناا په‌حال کی ・

دمنځ ته راتګ پـه لاره کی خنډونه وواودوی نشو کولی چی ښه وده وکړی اوخپلو خلکوته په زړه پوری خدمتو نه سرته ورسوی ددی علتونه اوموجبات خوراډیردی .

البته اساسی علت یی په ټوله نړی کـی دوروسته پاتی هیوادو په باره‌کی هغه ارتجاعی استعماری اوامپر یالیستی قو تونه ووچی نـه یی پر ینښودل ددغوهیواوخلك وده وکړی ا و هلته پوهنه او پوها ن دخلکو دخد مـتاو نیکمر غی دپاره پکار واچول شی دڅور سـتـر انقلاب د اخنډونه دتل لپاره له منځه یووړل.

دافغا نستان خلکو واقعا په تاریخ کی ډیری هلی‌ځلی او ډیری مبارزی کړیدی اودپـر-دیو یر غلګرو په ضدیی په کلکه له‌خپـل هیواد څخه دفاع کړ یده خوپه ځینو وختوکی له دی هیواد څخه هم دخاوری پر اختیارغـو-ښتو نکی تللی دی چی پدی ټولو کی هیڅ یوه هم دومره اهمیت نه درلود لکه څومـره چی دڅور ستر انقلاب یی زموږ دهیواد دخلکو دپاره لری .

ددی انقلاب په نتیجه کی دافغانستان پیاوړو خلکـو ځـان دتـل لپاره هـم، داستعمار هم دامپریالیزم اوهمدداخلی فیوډالیزم اوفیوډالانو له منګو لو څخه آزاد کړی اود یوی داسـی ټولنی جوړ ولو دپاره ئی لاره خلاصه کـړی دچی په هغی کی به یوو ګړی دبل وګـړی وینی نه زبیښی بلکه هغه به دنیکمرغی وروړ-ګلوی او سو کالی یوه ټو لنه وی .

زه یقین لرم چی د افغانستان‌په دموکراتیك جمهوریت کی به دعلم او پوهی رڼا نـوره هم خپره شی اوله‌هغی څخه به‌زموږ ټولنـه په اقتصادی ټولنیز اوفر هنګی لحاظخو راښه استفاده وکړی اوزه پدی باندی پوره باور او یقین لرم اوهم دافغانستان خلك پدی با ندی ښه پوهیږی. په‌کابل کی به جوړه شـوی پخوانی سیمنار ونه هیڅ کله دومره دقدروړ نه‌ووبلل‌شوی‌لکه څومره چی موږدغه سیمینار دقدروړ ګڼو ځکه چی موږ یی په قـدر ا و ارزښت ښه پوهیږ واو تاسو تـه پـه دی مناسبت بیاهم مبارکی وایـو چی تاسو یوه داسی هیوادته له‌داسی انقلاب نه‌وروسته راغلی یاست چی هغه دپو هنی په قـدر پوهیږی اولاریی ورته خلاصه کړیده .

موږ په افغا نستان کی پخوا نی اقتصادی او ټولنیز ظلمو نه له منځه یو وړل دعلـم اومعر فت دودی او پراختیا لپاره مولاره‌خلاصه کړه اوستاسو له‌سیمینارڅخه زموږ یوازنـی هیله داده چی تا سو کو شانی دوره پـه داسی توګه وڅیړی چی موږ ته دهغـه وخت تولیدی قو تو نه دتولید ډول او په همدی‌توګه

دهغه وخت دخلکو دژوندانه څر نګوالی کلتور او هنر په ښه توګه څر ګند او معلوم شی او دافغا نستان دد موکراتیك جمهور یت خلك وکړای شی چی ددغو نویو څیړنو په‌اساس دخپلی ټولنی په ودانو لو کی نور مو ثر ګامونه واخلی .

زه تاسی دکوشانیانو دنړیوال سیمینار ګډو نکو ونکو یا ملر نه یوځل بیا دی‌ټکی ته رااړوم چه دهغه وخت هنر ،فلسفه اوکلتور باید دهغه وخت دتو لید دړول او تولیدی مناسباتو په رنا کی وڅیړل شی په تیره بیا باید دا خبره په‌ښه توګه روښا نه شی‌چی په هغه ټولنه‌کی غلامی څنګه وه دفیوډالی تاثیرات یکی څومره ووا وددغو سیستمو نو تر اغیزی لاندی دخلکو دژوندانه شرا یط په څه ډول وو .

مونږ ته دو مر ه‌ښکاره ده چی دکوشانیانو په دوره کی غلامی خو وه خود فیو دالی سیستم نخښی هم پکښی ښکاره وی څکه چی‌هلته په کرنه باندی‌پیل شوی واوداوپسنی له استعمال سره خلکو آشنا یی پیدا کړی وه خوبیا هم ددغه وخت اساسی تولیدی قوت غلامان وولومړنی کمون پکښی مات شوی وو او دمر ئیتو ب سیستم پکښی ډیره وده کړی وه .

زه نه غواړم چی پدی موضوع باندی زیاتی خبری وکړم خو ستا سو پوها نو یا ملر نه دی ټکی ته بیاهم را اړوم چی هره ټو لنه باید دخپل اقتصادی او ټو لنیز سیستم په اساس وڅیړل شی او علمی رنا پری واچول شی .

څکه چی پدی توګه په ډیره په زړه پوری نتیجه لاس ته راشی اوزمونږ دلرغونی واقعی تاریخ تیاره ګوټونه په ښه‌ډول رو ښانه شی .

زه یقین لرم چی تاسو به هم لدی نظره پدی ډیره مهمه دوره باندی ښه رڼا اچو لی وی او په زړه پوری نتیجی به موتری‌اخیستی وی .

زه ستاسودکار له نتیجو څخه خورا خو شحاله یم او هیله لرم چی ستا سواستو-کنه په افغانستان کی ښه تیره شوی او همه ځایو نه‌چی تاسو زمونږ په هیواد کی لید لی دی‌ستا سی دعلاقی وړ به ګرځیدلی‌وی.

او بیا هم زه داهیله لرم چی یو وخت بیا افغانستان ته راشی او بیا مونږ له خپلو معلوماتو له خپلو څیړنو څخه مستفید‌کړی .

تاسی متفکر ماغزه چی اوس له افغانستان څخه بیر ته ځی زمونږ زړ ونه له تاسو سره دی زمونږ سلامو نه زمونږ احترامونه دپوهانو ټو لو ټو لنو اوخپلو خلکو ته ور سوی.

په پای کی له تاسو څخه هیله کوم چی دافغانستان دثور پر تمین انقلاب چی په نړی کی دانقلاب یونوی طرز او نوی لاره ده وڅیړی او دانقلاب دعواملو په باره کی خپلی نظر یی وړاندی کړی .

# د ځوانانو خلقي سازمان

# زموږ د ګوند د غږ ولو مړي زانګو ده

دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند عمومي منشي دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دهغې وینامتن چې دځوانانو دخلقي سازمان درهبري هیأت دکتنې په وخت کړی ؤ. ٤ر٦ر٥٧

زموږ ستر اوانقلابي مشر دافغانستان د دموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې عمومي منشي دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دخلکو په کور کی دافغانستان دځوانانو دخلقي سازمان د رهبری هیات د کتنی لپاره و مانه لو مړی د انقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دافغانستان دځوانانو دخلقي سازمان رهبري هیات ته ستړي مه شي اوښه راغلاست ووایه.

زموږ ستراوپوه ښوونکي وویل ! ماپخواله ګوندی کدرو نو سره چې هغوی هم ځواناناو تاسوبیخي تنکي ځوانان اونوی نسل یاست کتلي اوداچه له تاسوسره له نږدې څخه ګورم اودراتلونکي په باب په خپلوکي سره تبادل افکار کوو نولدی امله ویلای شم چې داکتنه خورامهمه ده .

دثور ستر انقلاب چې بې ساری انقلاب دی له پخوانیو بدلونونو سره دخپل ماهیت اوشکل په لحاظ توپیر اساس بەپه هیواد



زموږ ګران او انقلابی لارښود ، دانقلابی شورا رئیس او صدر اعظم نورمحمدتره‌کی‌دځوانانو دخلقی سازمانونو درهبری‌هیات سره‌دکتنی په وخت دخلکو په کورکی .

کی فیوډالیزم بیخی نسکور شی تراوسه پوری موداسی سخت گوزارونه ورکړی چه سرییی پری راګرزی اوهمدارنګه فیوډالان بەدپخوانی غیر طبیعی ژوند څخه لاس‌واخلی اوطبیعی‌ژوند باندی بەپیل وکړی •

اوله هغه درانه پیټی څخه بەیی چی تراوسه پوری یی په اوږو کړی وو خلاص شی . مقصد دلته دځمکو اصلاحات‌دی‌چی دځمکوپه اصلاحاتو سره فیوډالیزم له منځه ځی او دداسی ټولنی اساس ایښودل کیږی چی هلته دوګړی لەخوا وګړی نه استثمار یږی اوزه باور لرم چــی دعلمی سوسیالیزم په اساس باندی به ټولنه ډیره وده وکړی •

تاسو ځوانان ډیر خوشس بخته یاست چی موقع په لاس درغلی دځپلو خلکو دنیمګرغی لەپاره څپلی پخوانی هیلی عملی کوی البته دغه هیلی مونږ پخوادر لودی خوهغه چاتــه به موځرګند ولی شوی چی اعتماد موپری‌کولی شواوس تاسو دهغو ظالمانو په قصر کــی ناست یاست چــی دعدالت او برابری ځــای تری جوړ شوی دی •

دهیوداددرهبری کولو دغه تاریخی رسالت تاسو پوری اړه لری اوزه یقین لرم چی‌تاسو بەخپل تاریخی رسالت‌پەښەتوګەسرته ورسوی اواوس تاسی ته دخپلی دغــی درنی وظیفی دسر ته رسولو دپاره ټول امکانات هــم‌برابر شویدی •

# داورځپانه اساساً دافغانستان دموکراتیک جمهوریت دافکارو خپرونکی ده

«دثور انقلاب »دور ځپانی دخپر یدولـــه امله دانقلابی شورا رئیس او صدرا عظـــم نورمحمد تره‌کی دپیغام‌متن· ۱۳۵۷ر۹ر۹

**داوځپانه اساسا دافغانستان دموکراتیـــک** جمهور یت دافکار وخپرو نکی ده دافغانستان په تاریخ کی دا لړ مړی ځل دی چی دثـــور دانقلاب په نتیجه کښی دکار گرو د طبقـــی دمخکښی گوند په رهبری داسی دو لت مینځ ته راغلی چی **دهیواد** دټولو زیار ایستو نکو خلکو مادی او معنوی گټی تمثیلو ی نو طبعا **داورځپانه به‌هـــم دزیار ایستو نکو خلکـــو هراړخیزی گټی په‌نظرکی ونیسی او د هغـــه** به ددولت دمترقی پا لیسیو په اساس لـــــه هرلوری دفاع او حما یه کړی .

(دثور انقلاب ) ورځپا نه به ددولت خارجی او کور نی سیا ست په بنه تو گه دهر چاتر غوږ و ور سوی او هر څو ك به پدی پـــوه **کړی چی دولت دخلکو په ملاتړ اومر ستـــه** دخپلی ټو لنـــی په‌جـــوړولوکـــی څــه ډول اقتصادی او اجتما عی هلی ځلی کوی .

داور ځپا نه به تل ددولت افکار او نظرات په بنه تو گه تفسیر او تشر یح کړی او دزیار ایستو نکو خلکو او ددوی ددولتـــــی اور گا ن تر مینځ به یوه په زړه پـــــوری لا یقه او پوه تر جما نه شی .

زه باور لرم چی د (ثور انقلاب )ور ځپانه به ددولت ټول هغه اقدا مات په بنه تو گـــه منعکس کړی چی زموږ دستر او په زړه‌پوری گو ند دهغه مرام په تحقق او پلی کو لوکی یی کوی دافغانستان په تاریخ کی یی‌دلومړی ځل دپاره دافغانستان ددو ستا نو او ددوی ددشمنانو تر مینځ یوه پنډه سره کـــــربنه وا یستله .

همدا پول دا در نه ور ځپا پـه به دثـــور دانقلاب نه وروسته ددولت دهغو اساســـی کرښو په اسا س چی د ۱۳۵۷ کال دثور په نو لسمه نیټه خپر ی شویدی ددولت کارونه او اجرا ات په ښه توګه نشر او زمو نــــږ د زیار ایستو نکو خلکو تر غوږ وبه رسی ور سوی اوسم نشر یحا ت به ور کړی .

داور ځپا پـه به زمو نږ زیار ایستو نکی خلك نور هم پدی ټکی ښه پوه کړی چــــی څه پول او په څه وسیله دولت سره دپنځه کلن پلان په عملی کید وکی مؤ ثره مرسته وکړی او هم به ددولت ټو لی اعلا میـــی او ددو لت نیکی هیلی او عملی کا رو نه چی دخپلی ټو لنی په بد لو لو کی یــــی خپروی دعا مه ؤ دتو جه وړ وګر زوی اود دوی دملاتړ حاصلو لو دپاره بـــه ښــــه سعی وکړی .

څر نګه چی زمونږ له مرام او اسا ســـی کر ښو څخه څر ګند یږی دولت غوا ړی چی دخپلو ګر انو هیواد والو په مر سته خپلـــی ټولنی ته داقتصادی ، اجتما عی او کلتوری له نظره بیشمیره تغیر ورکړی او خپله ټو لنه دا سی یو اوته ور سوی چی هلته له فـــــر د څخه دفرد استثمار ورك شی او بیا بل تر دی هسك یو اوته مخ په وړاندی لاره شی نو دا ور ځپا پـه به دغه مطلب په ښه تو ګه اوپه ښه بنه کی زیار ایستونکو ته وړاندی کړی.

(دثور انقلاب ) ور ځپا پـه به ددو لـــت دافکار و دخپرو لو په لړ کی هغسی خپرونی هم وکړی چی دو یو نکو دطبقا تی مبا رزی دشعور در او یښو لو د پاره اودا چی با ید سیا سی قدرت دزیار ایستو نکو طبقو پــــه نفع دخلکو دګو ند په لاس او واك کـــــی ټینګ وی اغیزمن نشرات وکړی یعنی دزیار-ایستو نکو خلکو سیا سی او اجتما عــــی شعور دطبقا تی مبا رزی په اسا س را ویښ کړی او هرڅوك پدی پوه کړی‌چی‌داستثمار کیدونکی او استثمار کوو نکی څوك دی‌او دواړه خواوی دخپلو مادی او معنوی ګټو د سا تلو دپا ره څه پول هلی ځلی کوی او څر نګـــه دیو دبل دراپـرزولو دپـــاره پـــه پټه او ښکاره هراړ خیزه مبا رزه کوی.

البته زمو نږ دهیواد نوری روز نامی،جریدی او مجلی (په هره ژبه چی دی ) او همـــدا پول زمونږ دخلکو در اویښو لو او خبرولـــو او ددوی تعلیم او تــربیـی وسیلـی لکـــه (رادیو تلویزیون) هم ددولت دکـــړ ووړو په بار ه کی دروند او مهم نقش لو بوی‌اوپه دی لاره کی یی وړ ګا مو نه اخیستی دی.

زمونږ (دثور انقلاب ور ځپانه) به ددولت دمر کزی ور ځپا ڼی په تو ګه دنورو تبلیغاتی وسا یلو په څنګ کی ددولت دافکــــار و دخپرولو په برخه کی لاښه مرسته وکـــړی او ددولت د افکار و دخپرو لو په بر خه کی به دهیواد نوری هراړ خیزی خپرو نی دیــــوه ټا کلی هدف لو رته متو جه کړی .

زه باور لرم چی «دثـورانقلاب ورځپانه» به دانقلا ب‌له دښمنا نو سره مو ثره مبا رزه وکړی او ټول مسلما ن نما فر نګیـــــــــان

(اخــوانیان) ، اشراف زاده گان ، چــــپ افرا طیان ، تنگ نظره او عظمت طلبـــــــه نشنلستان او نور چی د ټولو او به خــــور یودی یعنی په جهانی امپر یالیزم پــــوری تړلی دی زمو نږ پیا وړ و خلکو ته ورو پیژنی .

د ثور انقلاب .فغانستان په ټول تاریخ کــــی بیساری انقلاب دی دافغانستان زیار ایستو- نکو تل سر پورته کړی دی اوله حا کمــــو طبقو او ددوی دا یجنټا نو څخه دځان ژغورنی دپاره یی خو نړی قیا مونه کړ یدی ډ یری هلی ځلی یی کړی او ډیری وینی یی پـــــه مځکه رژولی دی . خو ځکه چی ددوی‌طبقاتی شعور کمزوری ؤ او دخلکــو دغسی قیــامــو او هلو ځلو یوه پوه او مستشعره رهبری نه درلوده نوتل یی دیوه ستمگــر او ظــالــم پرځای بل ستمگر او ظــالم کښینولی دی او دخلکو دی ټولو فداکــاریو او قــربــانیـــو به هیڅ نتــیجه ورنه کړه او خلکو بــــــه هما غسی خوار ، نا آرامه او ناوړه ژو نـــد در لود .

خود ثور ستر انقلاب ددی وضعی لمـــــن و نغښته او سیا سی قدرت زیار ایستو نکـو خلکو په لاس ور غلی او دستمگرو او ظالمو طبقو او ددوی دحا کما نو ټغر یی دتل لپاره ټول کـــړ. نو «دثـــور انقلاب» ورځپـانــــه وظیفه لری چی خپل ولس په دغه ټکی بنه پوه کړی او دخلقی دولت نظرات او اراده‌چی دټولو زیار ایستو نکو خلکو پر مادی اومعنوی گټو ولاړه ده دوی ته ورسوی .

داورځپانه باید په‌خلکو کی دخپل ژ ونـد دښه کو لو او دکار او فعا لیت رو حیـــــه پیا وړی کړی او خلك خپل ژوند ته هیله‌من خو شبین او وهڅوی .

ددی ور ځپا نی ټول تحلیلو نه با یـــد ریا لستیك او د اجتما عی ژوند پر عا مـــو قوانینو با ندی متکی وی .

دافغانستان‌اوسنی‌خلقی دولت‌داستثمارکیدونکو اواستثمار کوونکو ترمینځ بی طرفه اوناپییلی ندی نوځکه داور ځپانه چی ددولت دافکارو خپروونـــکی ده هم دطبقاتـــی مبارزی پـــه ډگر کی بی طرفه نده او ددی مبا رزی په رهبر ی کولو کښی به داسی برخه وا خلـی چی ددولت له اهدافو او غوښتنو سره سمه وی .

دټو لو زیار ایستو نکو خلکو او دهغـــو ددولت هیلی له ټو لو ټو لنیز و خپرو ونکو وسا یلو څخه خور ا ډیری او هر اړ خیـــزی دی دا ټول‌وسا یل با ید په خپلو خپرو نـو کښی تل دکار گرانو ، بز گرانو او نو رو زیار ایستو نکو خلکو منا فعو ته انعکا س ور کړی چی دا کار هم با ید په خو رابنه تد بیر سره وشی .

برسیره پدی «دثـور انقلاب» ورځپانـــــه با ید په منا سب وخت کی دثور انقلاب تاریخی او دهغه اقتصادی، اجتماعی علتـونـه دمسوولـــو مقامـاتـــو پــــه مر سته تر لاسه او خپاره کړی او داکار پداسی تو گه وکړی چی زمو نږ زیار ایستو نکی خلك دخپــــل مو جودیت په درنښت او اهمیت پوه شـــی او په دوی کی د «پر ځان باور » احســاس غښتلی شی .

البته داور ځپا نه به هیڅکله داستثمار کیدونکو او استثمار کو ونکو طبقو دپخلا والی دپا ره نه بلکه داستثمار کو و نکو او ظالمو طبقو او اقشار و د تضعیف او له مینځه وړلودپاره ددولت دپالیسواو غوښتنو سره سم مبارزه وکړی .

بشپړه هیله لرم چی ددی ور ځپانی په تاسیسولو سره بهدولت داذهانو درو ښانه کو لو په برخه کی هغه څه چی غواړی حاصل کړی .ددی ور ځپا نی په خپریدو سره دولت یو داسی گام او چت کړی چی اهمیت بهیی ژرتولوته څرگندشی.

لنډه داچی داور ځپا نه باید دټو لو زیار ایستو نکو خلکو پدی تکی دپو هولو دپاره هر اړ خیزی هڅی وکړی چی دوړی او ماړه، دپت او بربنډ دپلی او سپاره ترمینځ تر هغه وخته دوستی او وروری نه شی را تلای ترڅو دا حالت له مینځه نه وی تللی .

دا حا لت هله یقینا له مینځه ځی چی له فرد څخه دفرد استثمار ورك شی او هر څوك دخپل استعداد مطابق دخپل کار ثمر په خپله وا خلی .

ورځپانه به دټو لنیز ژوند ددمو کرا تیك کولو دپاره هر اړ خیزی خپرونی وکړی او دکار گرانو ، بزرگرانو ، زلمیا نو او نو رو ټول ټول اتحاد یود جوړو لو دپاره به ښی لار ښو ونی وکړی او ښوی به دد غسی دموکراتیکو فعالیتو اهمیت ته متو جه کړی .

دور ځپانی بر یالیتوب پدی کی دی چی دخپلوو یو نکودپاره په زړه پوری مضامین خپاره کړی او هغو ته ورځپا نه په خپل وخت ور سوی .

# د بشر د حقوقو د اعلامیې د تصویب د ۳۳ کالیزې په مناسبت پیغام

| د بشر د حقوقو د اعلامیې د تصویب د دری دیرشمی کالیزی په مناسبت زموږ د ستر لارښود او د انقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی د پیغام متن ۱۹ر۹ر۱۳۵۷ |
|---|

پدی وخت کی چی په ټوله نړی کـــی د بشر د حقوقو د جهانی اعلامیې د تصویـــب دیرشمه کالیزه نمانځله کیږی خوښ یم چی د بشر د حقوقو د جهانی اعلامیی لـــــه پرنسیپونو او مندرجو اصولو ســــره د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت د خلکــو او حکومت ژور ملاتړ او ټینګه عقیده تایید کړم .

داووه پنځوسم کال د ثور اوومه د افغانستان د خلکو په سیاسی او ټولنیز ژوندانه کـــی د افغانستان د کارګری او خلقی انقلاب د نجات بخښنی او پرتمین بریالیتوب نیټه لیــــک او له ظلم ، بی عدالتی ، استبداد او د بشـــر له اساسی حقوقو نه له څــــرګند وسر ـ غړونو څخه د خلاصون پیل دی .

دا یوه داسی ورځ ده چی د هیواد نجیب خلك د منځینو پیړیو تر خورا سختو شکنجو لاندی له نیمی پیړی ژوند وروسته د نیکمرغه او د ابادیوند په لاره قدم ږدی دیو داسی نظام په رڼا کی چی په نړیواله ساحه کی د بشر د حقوقو جهانی اعلامیی او د ملګرو ملتو منشور ته ربښتینی درناوی د سیاسی ، اقتصادی

ټولنیز او کلتوری ژوندانه په ټولو برخو کی د ښځی او نارینه تر منځ د حقوقو د برابری تامین ، په کور نی بر خه کی د دموکراتیک فردی آزادیو تامین دهغه د انقلابی وظیفــــو له اساسی کړ نښو څخه دی .

د زندان له سلولو نو څخه د څه د پاســــه دوولس زره تنو بند یانو خوشی کول چی له هر ډول بشری حقوقو څخه بی برخی وو ، د شپږمی ګڼی فرمان تصویب چی دهغــــه له مخی د هیواد په ملیونو نو بزګرو او بی ځمکی ځمکی بزګران د سود او سلم له منګلـــو څخه خلاص شول ، د ښځی او نارینه ترمینځ د حقوقو د برابری په باب او ومه ګڼــــــه فرمان چی د کورنیو دواده او د کورنیــــو د آرام او نیکمرغه ژوند لپاره یو زیری دی ، اتمه ګڼه فرمان چی دهغه په تصویب سره د ځمکی دد موکراتیکو اصلاحاتو اولـــــه فرد څخه د فرد د استثمار له منځه وړلو اوله دی لاری څخه د استثماری مالکیت او د فیودالی او ماقبل فیــودالـی د مناسباتــو له منځــــه وړلو په برخه کی د افغانستان د زیار کښو

خلکو دا کثر یت یو پخوا نی ار مان ترسره کیږی او دهغه له مخی دبی طبقو ټو لنی دجوړولو په لاره کی دهیواد دخلکو د غوښ اکثر یت دانقلا بی یو والی دمنځ ته راوړلو په غرض دکارگرانو، بزرگرو یووالی تامینیږی روا جیږی او ژور یږ ی دکا ر گر ی اتحادیو دهرستی دصندوقونو جوړول او په دی لنډه موده کی دافغانستان دخلکو دا کثریت په گټه دحکو مت په لسو نو نور مثبت اقدامونه هر یو دټو لنیز عدالت ربنتینی دیمو کراسی او دافغانستان دخلکو ددمو کراتیکو حقو قو او آزادیو دتا مین په لاره کی د خلقی دولت دمقد سو او لوړ و هد فو نو څر گندوی او ښکار ندوی دی لدی امله دهیواد دنجیبو او رنځیدلو خلکو لپاره هم دخو ښی ځای دی چی دهیواد په تاریخ کی دلو مړی ځل لپاره دد سمبر لسمه یعنی دبشر دحقوقو دجها نی اعلامیی نړ یواله ورځ دهغی په ربنتینی بڼه او دیوه داسی نظام په رڼا کی نما نځی چی دملگرو ملتو منشور او دبشر دحقو قو جها نی اعلامیی ته زیا ت در ناوی کوی او دهغو دمند رجا توپه تطبیق کی د خپلو انقلا بی وظیفو داساسی کر ښو په اتکا په پوره صمیمیت عمل کوی ·

دد سمبر لسمه یو داسی وخت دی چی دبشر دحقو قو دجها نی اعلا میی دمند رجاتو داصلو د مرا عات او تطبیق په لاره کی دبین المللی ټو لنی او دملگر و ملتو دسازمان هلی ځلی یو ځل بیاد دنړ یوالو دپا ملر نی وړ گر زی پدی وخت کی افغانستان دموکراتیك جمهوری حکومت دملگرو ملتو د مؤسسی دیو سو له دوست او عدالت خو ښو ونکی غړی په تو گه دنړی په تیره بیاد هغو سیمو دخلکو چی تر اوسه پوری داستعمار دپردی واکمنی او د نژاد پالونکو رژیمو نو تر واکمنی او تو پیری سیا ستونو لاندی ژوند کوی دبشر دحقو قو دتا مین اور عا یت کولو په لاره کی دهغی موسسی هلی ځلی او اقدامونه په خوښی سره یادوی·

دنړ ی دانقلا بی او متر قی خلکو او قوتونو غوښ او هر اړ خیز ملا تړ چی دافغانستان دمو کراتیك جمهور یت له هغو سره په یوه لیکه کی ولاړدی دنړی دآزادی غوښتو نکو خلکو په تړ ره بیا دمنځنی ختیځ، افر یقا او لاتینی امر یکا دخلکو دقهر ما نا نه مبا رز و په پلوی اود استعمار ی امپر یالیزم او بین المللی ارتجا ع دقد رتو نو پر ضد بی له شکه دبشر دحقوقو دجهانی اعلامیی دمند رجا تو او دملگرو ملتو دمنشور داساساتو دتطبیق په لاره کی مثبته او اغیزمنه برخ اخیستل دی ·

له دغه وخت څخه په استفادی سره دافغانستان دمو کراتیك جمهور یت له ټولو هغو خلکو سره چی تر اوسه پوری خپلو بشری اسا سی حقو قو اوله هغو څخه دخود ارا دیت حق او ملی خپلواکی ته نه دی رسید لی یو ځل بیا خپل ژور ملا تړ اعلاموی او دنړی دنو رو متر قی او انقلا بی قو تو نو په سنگر کی په دی لاره کی دهغوی له قهرمانانه مبارزو او دملگرو ملتو له هلو ځلو څخه خپل هر اړ خیز ملاتړ ته دوام ور کوی ·

# موږ د خلکو بچیان یو او د هیواد خلکو ته له صادقانه خدمت څخه پرته بله لاره نه لرو

زموږ انقلابي او ګران مشر دافغانستان دخلکو دد موکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې عمومي منشي دانقلابي شـــورا رئیس اوصدرا عظم نورمحمد تره‌کي دهیواد دولایاتو مستوفیان دخلکو په کور کې ومنل او له‌هغوی سره یې خبرې وکړې .

۱۳۵۷ر۹ر۲۵

دالومړی ځل دی چه دخپل هیواد له حسابي ، ذهني کار ګرانو سره ګورم او خبرې ور سره کوم .

نه یوازې موږ اود ولت ستاسو له خدمت او کار څخه خوشحاله یو بلکه تر کومه ځایه‌چې خبر یود هیواد ټول خلك هم له تاسو څخه خوښ دي او باید داسې وي .

دمخه مستوفیانو او حسابي کار ګرانو دفیوډالانو خدمت کاوه چې هیڅوك تري خوښ نه وواو باید هم خوښ نه وای او ددې وخت هم برابر نه ؤ چې هغوی‌صادقانه کار وکړي ځکه که چیرې په خپله هغوی صادق هم وای واکمنو مقامات و هغوی ته وخت نه ور کاوه چې صادقانه کار وکړي ځکه دهغوی غوښتنې داوې چې مستوفیان دخپل مرام له مخې له اصلي او صادقانه لارې څخه واړوي او دخلکو ضرر ته یې وګماري او دا یو طبیعي کار دی چې په فیوډالي نظام کې ټولنیزې ګټې له فردي ګټو څخه قربانیږي خو له نیکه مرغه دثور له بریالي انقلاب نه وروسته دغه حالت بیخي پای ته رسیدلی دی .

دثور بریالي انقلاب یوخلقي انقلاب وودا انقلاب دکارګرانو، بزګرانواونوروزیار ایستونکو انقلاب و چې زموږ او تاسي ټول یې دخلکو دروزنې او خدمت لپاره ودرولو او باید هم یې در ولې وای اوس ستاسو کار زیار او هلې ځلې دخلکو په ګټه دي او باید هم وي .

اوس تا سو خپلي وظيفي درك کړ يدي چي په څه ډول خپل ځا نونه دخلکو خد مت ته وقف کړی ددی لپاره چي مونږ دخلکو بچيا ن يو او دهيواد خلکو ته له صا دقا نه خد مت څخه پر ته بله لارنه لرو مو نـــــږ دخپلو خلکو لپاره انقلاب وکړ ، او دازمونږ د خلکو نيت او غو ښتنی وی ، چي مو نږ يی دانقلاب په لاره برابر کړ و او وياړ لرو چي هغوی پر مونږ باندی باور وکړ او پـــه خپلو مادی ، معنوی او اخلا قی همکا ريـــو سره يی مونږ سمبال کړو لهدی امله مونږ وکولای شول په جرات سره داسی حا لـــت منځ ته را ولو چي نن دافغانستان ټو لنه په رښتيا سره په داسی لوری پرمخ ځی چيپه هغی کی به ديوه تن لخوابل تن په هيـــڅ ډول نه استثمار يږی .

زمونږ دمحا سبو کا ر گرانو خد متو نه او دهغوی صد اقت او هلی ځلی په رښتيـــا سره دافغا نستان دخلکو په گټه ثا بتـــی شوی .

او بيا هم بايد ثا بتی شی که چيـــری زمو نږ حسا بی چاری پوره او سمی وی او لکه چي يی زمونږ خلقی دولت په پام کـی لری همغه ډول تر سره شی په رښتيا سره د خلکو دهو سا يی او آرا می سبب کيږی او ددولت اقتصادی قدرت پيا وړی کيږی .

ستا سو حسا بی کار گرانو و ظيفیدماشينی کارگرانو، دکرنی دکارگـــرانـــو او نـــورو کار گرانو په شان ډيری در ندی دی اوباور لرم چي تا سی خپلی دغه درند ی وظيفـــی په ښه تو گه دهيواد دزيا ر کښو خلکو په گټه تر سره کوی .

دانقلاب دو ستا ن ټول زيار کښان دی هغوی نه يوازی دانقلاب دو ستان دی بلکــه انقلاب دهغوی دی گټند او دولت په هغـــوی پوری اړه لری او په ډا گه وايم چي ټــــول مادی او معنوی نعمتو نه دهغوی دی ځکـــــه مو نږ هغوی ته کار کوو او هغوی زمو نـــږ مـــلا تړکوی او يقين لرم چي پهلنډهموده کـــی

به زمونږ دټو لو زيار ايستو نکو اهليت،والك او سيا سی شعور دو مره بشپړ شی چيخپل دښمنان په کور ، کو څه ، ښار ، دښتـــه، او ټو لنه کی له منيځه يو سی .

زمو نږ زيار ايستو نکی او دولت دښمنان هم لری ، هغوی دو مره زيات ندی خو لدی امله چي کلنو نه کلو نه يی سيا سیقدرت په لاس کی ووزياته تجر به او مهارت لری او په بيلا بيلو چلو نو او جا مو سره زمونږ زيار ايستو نکی خلك غو لوی او ځانو نـــه دخلکو دوستان ښئی بايـــد وپيژنـــدل شـــی او له مينځه يو وړل شی .

لکه چي مخکی می وويل : دخلکو دغــه دښمنان په بيلا بيلو بڼو سره را ځی کلــــه څادر په اوږ هاچوی او سپينه پگړی پهســـر تړی ، کله چپن او ښکلی قره قلی خولـــی په سر کوی او ځا نونه دخلکو در ښتيا نيو دوستا نو په توگه ښيی خو په حقيقت کـــی دخلکو دښمنان دی مو نږ ته تو پير نــــه لری چي هغوی څه شی آغو ندی او څـــــه په سر کوی خود خلکو دو ستان دی او

زموږ دوستان دی او د خلکو دښمنان دی زموږ دښمنان دی .

زموږ له خلقی انقلاب څخه نور هیڅوك بیزاره ندی اوکر که نه لری خو یوازی هغه څوك چی دخلکو دښمنان دی دانقلاب مخالفت کوی ځکه هغوی پوهیږی چی په پای کی خلك هغوی محکوموی او ددی لپاره چی گټی یی په خطر کی دی هرڅول هلی ځلی کوی موږ بایـد خپل دښمنان تعقیب او وپیژنو او وپوهیږوچی هغوی څوك دی ؟ مقصد دانه دی چی هر چیرن آغو ستو نکی، خولی لرونکی او لونگی په سرکوونکی خدای دی نه کړی زموږ دښمنان دی بیا هم وایم چی باید دا په نظر کی ولری چی هیڅوك یی احساس نه کړی هغه څوك چی سپینه پگړی یی تړلی یا یی قره قلی په سر کړی ده زموږ دښمنان دی بلکی یوازی هغه څوك چی غواړی دخلقی دولت پر ضد او زموږ د زیار کښو پر ضد توطئه او دسیسه وکړی هغوی زموږ دښمنان دی هغه څوك چی موږ سره غرض نلری هغوی په تیینگه غیږه کی نیسو او دوی رو زیار کښو په شان یی قدر کوو داده زموږ پالیسی .

زموږ بهرنی دښمنان هغه څوك دی‌چی په هیواد کی یی په کلکه استثمار دوام لری اوله دی امله چی زموږ په هیواد کی استثمار مخ په ورکید ودی او هغه خپل زیان وینی زموږ دښمنان خپل هیوادته غواړی ییسی ور کړی او بیرته یی زموږ هیواد ته را لیږی چی دلته سمبو تا ژ وکړی چی موږ به ددغو هیواد و نو نوموته او کا رونه په خپل وخت کی څرگند کړو خو موږ یو ځل بیا هغوی ته اخطار ورکوو که چیری خپل دغه ناوړه کارته دوام ور کړی هیڅ ډول گټه نه تر لاسه کوی او باور لرم چی ضرروینی ځکه ددغو هیوادو نو زیار کښان زموږ پلوي یا ن دی دافغانستان خلقی انقلاب په رښتیا یو خلقی انقلاب دی چی په حقیقت کی دتیوری له پلوه او دایـډ یالوژی له پلوه سرحدنه لری او دهوا په څیر هر چیری نفوذ کوی .

زموږ خلقی انقلاب باید ډیر ژر خپل دا سی ثمر څرگند کړی چی هر څوك یی په ټو له معنی احساس او په سترگو وو ینی موږ یدی او ومیا شتو کی په رښتیا سره دا سی گا مونه پور ته کړ یدی چی خلك یی په سترگو وینی چی په تیرو خت کی فیو ډا لانو او فیو ډالی رژیم ددغو اقدا ما تو تصور هم نشو کولای .

خلقی دولت د زیار ایستو نکو ستو نزی او تکلیفونه درك کړی او داسی گامونه یی پورته کړی چی په رښتیا سره دهغوی په گټه دی موږ فیو ډالی وروست نظام ټکولی او ټکوویی ، تولی ستونزی لوړه ده که بر بنډتیا ، بی کوری دی که ناروغی اوکه لالها ندی اودر پدری دا ټول دفیو ډ الی نظام زیږ نده دی که څه هم څو څو ځلی می ویلی دی چی سیاسی قدرت مو په واقعی تو گه له فیو ډالانو څخه اخیستی دی اوس غواړو چی اقتصادی قدرت هم زیار ایستو نکی په لاس کی واخلی .

داقتصادی قدرت نیول یو آسا نه کارهم ندی او یو څه وخت غواړی څکه ټولسیاسی قدرت دهغه دتر لاسه کو لو دپاره په کار اچول کیږ ی چی په څه ډول دفیو ډالی وروست نظام زیر بنا وتکول شی خو زموږ زیار ایستو نکی خلك باید موږ ته وخت را کړی چی لو مړ نی پنځه کلن پلان عملی شی دهغه دعملی کید و لار مو موندلی ده‌او پوره یقین دی چی دهغه په تطبیق سره‌دانسان له خوا دانسان له استثمار څخه دخلاصی، آرامی او پر مختللی ټو لنی بنسټ ایښودل کیږی .

موږ څوك نه غولوو او دنړی لـه ټو لو هیوادونو څخه مو له استثنی پر تـه دخپل لومړنی پنځه کلن پلان دتطبیق په برخه کـی مرسته غوښتی ده ، زه دخپل هیواد خلکو ته زیری ور کوم چی دغـه پنځه کلن پلان چی زموږ دټو لنی په بدلون کی ډیر مهم او تاریخی رول لوبوی زمو نږ دهیواد خلکو لو مړ نی اړ تیاوی چی ډوډی، کالی او کور دی لیری کوی .

په دوهم پنځه کلن پلان کی په غو ځـه تو گه ویلی شم دداسی یوی ټو لنی بنسټ ایښودل کیږی چـی په هغـی کـی له فـرد نه دفرد استثمار نه وی .

باید زموږ زیار کښان حوصلـه ولـری او مو نږ ته وخت را کړی او له مو نـږ سره مرسته وکړی چی خپله ټو لنه له سره جو ړه کړوپه دی مقصد موږ دهیواد لومړنی پنځه کلن پلان تر لاس لاندی نیو لی دی‌چی دتطبیق په درشل کی دی، ددغه پلان تطبیق دهیواد ستا سو مامور ینو همکا ری غواړی او دهغه په عملی کو لو کی ستا سو هلـی ځلی ډیره ستر ه اغیزه لری .

په ډاگـه وایم زموږ یوستر دښمن چـی داخوانیانوپه شان دافغـانستان دخلکو دښمن دی او تل یی دافغـانستان دخلکـو په سرـ نوشت لو بی کړ یدی بی سوادی ده، موږ باید دبی سوادی دله منځه وړلو په لاره کی داسـی هلی ځلی وکـړو لکـه چی له خپلو نو رو دښمنا نو سره مبا رزه کوو.

بی سوادی یوه داسی توره پرده ده چی‌له بده مرغه دفیو ډالی نظام دخصلت له املـه زموږ دهیواد وگړو په سلو کی له شپږنوی څخه تر اووه نوی پوری یی تر اوسه پـه تیا ره کی سا تلی دی او تاسی ته معلو مه ده چـی دا خلـك دزړه سوی وړدی اوله دوی سره مرسته په کارده چی موږ بایـد هغه پیل کړو .

خلقی دو لت تر هغه وخته خپلو هد فو نو ته رسید لی نه شی چی پوه پر سو نـل، پوه او با سواده خلك ونه لری او با یـد وویل شی چی بی سوادی له یوی سـتـری ناروغی نه پورته مو نږ دخو اری په یوی‌کندی کی غور ځولی یو .

زمو نږدخلقی دولت وظیفه به داوی چی په څه ډول له بی سوادی سره مبا رزه وکـړو او په دی برخه کی څر نگه پلانو نه جوړ کړو او غواړم انقلا بی شورا او مرکزی کمیټـی ته پیشنهاد وکړم چی داتمی گڼی فر مان‌په څیر په دی برخه کی یو فرمان صادر کـړی چی دبی سوادی زموږ ددغه ستر دښمن دله

منځه وړلو په لاره کې له تا سي ځخه نیولی تر یولیکو نکی او دلگی مشر پوري مبارزه وکړي او حتی په خپله زه چمتو یم چې دلیك لوست دزده کړي دیو کورس تدریس په غاړه واخلم او دبی سوادی په له مینځه ـ وړلو کې خپله ونډه سر ته ورسوم .

تا سو مستو فیان باید په خپله ټو لنه کې لکه دوا لیا نو، ولسو الانو او ددولت د نو رو کار کوو نکو په څیر دخلقی سلو ك بیلگی اوسی چې داپه خپل وارد افغانستان ددموکراتیك جمهوریت د انقلابی شورا دفرما نو نو په تطبیق کې ارز ښتناك اوگټور رول سر ته رسوی .

تاسو مستوفیان باید په خپله ټولنه خپل کار په چا پیر یال کې داسی بیلگی اوسی چې څوك درته گوته ونه نیولی شی .

ځکه په تیرو رژیمو نو کې مستو فیان د فیوډالانو او استثمارگرانو په خدمت کې وو چې دخلکو په منځ کې یی بد شهرت پیدا کړی و خو تا سی باید دخلکو په خدمت کې اوسی اوخپل خلقی حیثیت اوچلندځرگند کړی .

مو نږ له خپلو گا ونډ یو هیواد ونو سره دو ستا نه اړیکی غواړو اوپه دی لټه کې نه یوچې دهغوی په کورنیو چارو کی لاس ووهو اوهمدغه راز له هغوی نه غواړو چې زمونږ په کورنیو چارو کی هیڅ ډول لاس ونه وهی .

مونږ دایران له خلکو سره دزړه له کومی خواخوږی لرو او په هغه هیواد کی داوسنی حا لت له منځه تلل غواړو او دهغه هیواد دخلکو غو ښتنی دهغوی نیکمر غی تا مینو ی او مو نږ په هغو ی کی هیڅ ډول لاس نه دی وهلی او دلاس وهنی فکر نه لرو .

یواز ینی سیا سی اختلاف چې له پاکستان سره یی لرو هغه دپښتنو او بلو څو دحقوقو تامین دی چې مونږ دهغو سوله ایز حل غواړو ، مونږ پاکستان ته هیڅ ډول ضررنه دی رسو لی اونه یی رسوو .

همدا رنگه له هغوی نه په کلکه غواړو چې هغه هیواد هم زمونږ غو ندی همدا سی دریغ غوره کړی .

له شو روی اتحاد سره زمونږ اړ یکی دتیرو شپیتو کلو نو په اوږ دو کی په رښتیا سره دوستانه او دورور گلوی دی او دافغا نستان او شوروی اتحاد دخلکو په گټه دی .

زما او مړنی سفر چې شو روی اتحاد ته وشو په رښتیا سره دافغانستان او شو روی اتحاد دخلکو په گټه ترسره شویدی، یودبل په کورنیو چارو کی مو لاس نه دی وهلی مو نږ دخپل نا پییلتو ب دریغ ، خپله خپلواکی او دخا وری تما میت په تما مه معنی سره ساتو او هغه محترم گڼو .

مو نږ له شوروی اتحاد سره دد و ستی او ښه گا ونډ یتو ب یو تړون لا سلیك کړیدی چې البته دسیمی دامنیت دتا مین دا فغا نستان دخپلوا کی ملی حا کمیت اونا پییلتوب دپاره ډیر گټور دی په مسکو کی می له شو روی اتحاد سره زمونږ دد وستی دتړون په برخه کی دبیلا بیلو دولتونو

دیو سلو پنځه ویشتو سفیر انو په وړا ندی
څر گنده کړه چی دغه تړون دهیڅ یوه‌هیواد
په‌زیان اویادبل هیچاپه مقابل‌کی‌نه‌دی بلکی
په آسیا او نـړی کـی دامنیـت د تـامیـن
او سو لی لپاره لاسلیك شو یدی . چـــی
هیچا ته ضرر نه رسوی .

زمونږ دغه تړون دافغانستان او شو روی
اتحاد تر منیځ په دو ستی کی یو نوی با ب
پرانیستی‌دی چی په‌رښتیاسره دواړه هیوادونه
کولای شی چی دخپلواکی دخاوری د تمامیت
او خپـل ملـــی حـاکمیت پـــه سـا تلـــو
سره یوه له بل سره په اقتصادی او کلتوری
سا حو کی همکاری وکړی ددغه تړون پـــه
لاسلیك کو لو سره مونږ وکو لای شـــول
چی بیا هم خپل دو ستا ن خو شحاله اوخپل
دښمنان غمجن کړو .

که مونږ له خپلو دوستانو سره‌کوم تړون
لاسلیك کوو یا نور اقتصادی اقداما ت‌کوو
یا پنځه کلن پلان جو ړ وواو دهغه دتطبیـــق
په لاره کی هلی ځلی کو و هغوی نه یوازی
خپه کیږی بلکی په‌رښتیا سره یی زړونـــه
ما تیږی او یا لدی سیمی څخه تښتی .

مو نږ یوازی دخپلو خلکو مادی اومعنوی

نیکمر غی په تشو وعدو سره نده غو ښتـی
دا چی ویلی مودی چی مونږ دهغوی نیکمرغی
غواړو سمد لاسه مو په عمل کی اقـــــدام
کړیدی ، یو ځل بیا تا سو ته سپار ښتنه کوم
چی زما سیلا مۍ نه دهغو سیمو خلکو تـــــه
چی هلته څی ورسوی او هغوی ته ووایی چی
خلقی دولت شپه او ورځ دهغوی دمادی او
معنوی نیکمر غی او سو کالی لپاره لگیادی
او کار کوی .

مونږ دافغانستان دبیلا بیلو ټو لو ملیتونو
دژبی کلتور او دود ونو دژوندی کولو اوتعمیم
لپاره هلی ځلی کړی او وبه یی کړو .

او تا سو به په ډیر نژدی وخت کی‌وگوری
چی مونږبه دټولو ورونړو ملیتونو حـق تامیـن
کړو .

مونږ او ستاسو لپاره دډیر ویاړ ځای دی
چی دذهنی کار گرانو په ټو گه دهغو کسانو
په کتار کی ولاړ یو چی جهان جوړوی او
هغوی چی جهان جوړوی له هیچانه نه‌ویریږی.

بر یالی دی وی دافغانستان ټول زیـــــار
ایستو نکی .

# افغانستان اوس خپله داسی مستقله لاره چی د ټولو زیاراایستونکی ګټی پکی دی غوره کړیده

داافغانستان دخلکو ستراو پیاوړ ی ښوونکی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمدتره کی وینا، کله چی دخلکوپه کورکی دولایاتو دښوونی او روزنی له لویومدیر انو، مرستیالانو اودبیسوادی سره دمبارزی دآمرانوسره کړیده . ۳۰ر۹ر۵۷

پرما ګرانو ملګرو اودوستانو !

ډیرخوشحاله یم چی له تاسوسره دلته ملاقات کوم ، ستاسو سره زما کتنه هم لکه دنورو سره زما لیدنی کتنی ستراهمیت لری ځکه چی تاسو ښوونکی او روز ونکی یاست اود ښوونکو اوروزونکو دمقام اهمیت خورا زیات دی .

تاسی ته به ښه معلومه وی چی ښوونه او روزنه هم لکه دنورو شیانو په ځیر طبقاتی اړخ لری مثلا دمریتوب په دوران کی هم ښوونه او روزنه وه او ښوونه او روزنه پداسی اساساتو باندی وه چی هغه دغلامانو دخپلواودبادارانو دودی اوقوت دپاره به کیده اودهغی ښوونی او روزنی مقصد داو چی تل دبادار دطبقی حاکمیت سیاسی او اقتصادی قوت پرځای وساتی نود دوی ښوونکو او روزنکوهم همداسی نسلو نه ورته روزل چی دامطلب ترسره کړی .

بیاپه فیودالی نظام کی هم دغه شان وه چی دفیودالانو داقتدار اوقدرت دساتلو دپاره به ښوونکو او روز نکو هلی ځلی کولی ، ځوانان داسی ورو زی چی دفیوډالی نظام سیاسی او اقتصادی قدرت ټینګه وساتی او خلکو د استثمار دپاره زمینه نوره هم برابره کړی او دایې یالوژی له پلوه نوی نسل ته داورتلقین کړی چی فیودالی نظام برحق دی او څرنګه باید استثمار کوونکی خپل استثمار ته دوام ورکړی





دافغانستان دخلکو ستر اوپیاوړی ښوونکی،دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمدتره‌کی، کله چی دخلکو په کورکی دولایاتو دښوونی اوروزنی له لویو مدیرانو، مرستیالانو اودبیسوادی سره دمبارزی دآمرانو سره خبری کوی .

او نورهــم دخلکــو پراوړوسپــاره وی اوپــه خه‌ډول استثمار کیدونکی خلك دازبینه‌وزغمی اوټول مشکلات وګالی په‌همدی ډول دسرمایه‌داری نظام ښوونکو او روزونکو داوظیفــه درلوده خپل نسلونه ددی دپاره وروزی چی دسرمایه داری نظام استثمار ادامه پیدا کړی او خلکو ته خپل استثماری نظام داسی وښیی چی دایو برحق نظام دی هیڅ زوال نلری‌اوتل ترتله به‌وی خود لومړی ځــل دپاره په‌پاریس کی په ۱۸۷۱ کی چی دکار ګرو او بزګروطبقو حاکمیت قایم کړ اوپه دی لارکی یی‌هلی ځلی وکړی ۰

خو ځرنګه چی ګوند نه وو سم تنظیم او سازمان یی نه درلود داانقلاب له بده مرغه له ناکامی سره مخامخ شو، دهمدی اساس له مخی دکارګرانو او بزګرانو ستر وښوونکــی دادرك کړه چی باید پیاوړی ګوند منځ تــه راشی اوبیاپیاوړی ، منظم اوبادسپلینه ګوند وکړی شول چی داکتوبر ستر انقلاب بریالی کړی داکتوبر دسترانقلاب په بریالیتوب سره دبشر په تاریخ کــی دلــومـړی ځل دپــاره داتیوری، داعقیده، دااحساس‌په‌عملی ډګرکــی له مینځه یووړل شو، چی غلامی یا فیوډالی اویاسرمایه‌داری نظامونه‌اوددوی حاکمیت بی‌ذواله دی .

زمامقصد دادی چی دښوونی اوروزنی‌بنسټ په طبقاتی اړخونو باندی ولاړ دی په افغانستان کی هم داګومان کیده ، چی دلته هرشی زوال نلری ، هر شی به همداسی دوام‌کوی ،سلطنت به دوام کوی، دداود دیکتاتوری به دوام‌کوی، هرشی به دوام‌کوی۰ خوزمونږګوند وکړی شول چی داعقیده دلته هــم وځپی او دلومړی ځل دپاره یو خلقی‌انقلاب‌یعنی دکارګرانو ، بزګرانو اوټولو زیار ایستونکو انقلاب منځ ته راولی۰

دثور سترانقلاب ټولو نړیوالوته وښودله چی دافغانستان خلك نور په پخوانیوافسونګریو نه غولیږی او واقعا دخپلو زیار ایستونکــو خلکودپاره‌هلی‌ځلی‌کوی‌اوقدرت دزیارایستونکو خلکوپه لاس کی دی ۰

زمونږ دثور انقلاب واقعا داسی انقلاب دی، داسی حیثیت لری لکه پنسلین ، پنسلین هغه انتی بیوتیك ، هغه دټولو مکروبوضد دواده، چی په ټولنه کی شته لکه داټول فیوډالان ، اخوانیان ، افراطیان، هرډول افراطیان دټولوپه وجودکی‌دثورانقلاب‌په‌واسطه‌هغه داروورپیچکاری شول، چی داټول یی کمزوری‌کړل اودافغانستان په رنځ وهلی ټولنی کی یی درغیدونښی پیدا کړی۰

دثور له ستر انقلاب‌نه وروسته‌زمونږ لومړی درمل هغه لومړی فرمان وو چی‌دهغه پراساس باندی په افغانستان کی دموکراتیك جمهوریت تاسیس شو، دوهم فرمان زمونږددموکراتیك جمهوریت ددولتی اعضا وو په باره کی وو چی داهم‌ډیرمهم‌فرمان وو، په‌دریم‌فرمان باندی دفیوډالی نظام قوانینوته بدلون ورکړی شواو خلقی قوانین منځ ته راغلل اوددغو قوانینو په اساس دانقلابی شورا قوت او قدرت وټاکل شو، دحکومت لاری چاری تعینی شوی ، چــی واقعاداهم دافغانستان په ټولنیز ژونـد کــی ډیره ستره پیښه وه، خلورم او پنځم لمبــر فرمانونه هم دغسی و، مګر شپږم لمبر فرمان

دافغانی ټولنی پهوجودکی بالکل سرخی نما بانه کړه، دی فرمان دافغانستان ټول بیوسه خلک کارگران او بزگران دسود خورو، سلم خورواو نورو استثمار کوونکو له ظلم او تیری څخه خلاص کړل او ټولنی هغه خواته مخه وکړه چی مونږ یی غواړو اوټول زیار ایستونکی له هرراز استثمار څخه خلاصوی •

دی تاریخی شپږم لمبرفرمان ډیره ښهاوپه زړه پوری اغیزه کړیده، البته اووم او اتم لمبر فرمانونو دافغانستان ټولنه بیخی په ښو ودروله اوزه دایقین لرم چی اوس دافغانستان ټول زیار ایستونکی پهدی متیقن دی چی ددوی دنجات او خلاصون لاره ډیره صافه شویده اودااوس په دوی پوری اړه لری چی څرنگه په دی لاره باندی نه ستړی کیدونکی گامونه واخلی او دخپل مقصدو خواته روان شی .

مونږ تاسو ته وایوچی تاسوددغهشان ټولنی دجوړ ولو په برخه کی ډیره ستره وظیفهپه غاړه لری، تاسی باید دهغی ټولنی دپاره چی زمونږ زیارایستو نکی یی جوړوی داسی نسل وروزی چی خپلی ټولنیزی چاری په راتلونکی وخــــت کی په ښه توگه سرته ورسوی اوهغه ټولنه لاهم دنیکمرغی اوسوکالی په لور په ډیر ه ښه توگه پرمخ بوځی •

ماتل خپلوملگروته دگوند ترجوړولو وروسته وویل : زمونږ اوستاسو لومړی وظیفه داده کله چی هر کوچنی حتی وزیریږی سملاسیپه غوږ کی داورته وواياست چی طبقاتی مبارزه مههیرویاودزیارایستونکولپاره دقدرت دلاس ته راوستلومفکوره وروزی اووده ورکړی .

اوس چی مونږ په هیواد کی دولتی قدرت دزیارایستونکو پهلاس کیدی نوتاسو ښوونکو او روزو نکو تهدازمینه ډیره ښه برابره ده چی ځوانان دکارگرودطبقی په علمی لړی لید باندی مجهز کړی ترڅوچی دوی دفرد له خوا دفردلهاستثمار څخه دپاکی ټولنی په جوړولو اوپر مخ بیولو کی فعاله برخه واخیستی شی اودا باید له کوچنیوالی څخه په غوږکی ونیسی اوتاسی بایدپه دغی روحیی باندی دکوچنیانو دسمبالـولـو د پاره منظم تـرتیبات ونیســی کنفرانسونه ، بحثونه ،خبری او ترانی ورته تهیه کړی زمونږ دگونداو خلقیدولت دپالیسی په اساس ټول هیواد وال پهدی پوهیږی اوپه دی باور لری چی دښوونکو او روزونکو وظیفه ډیره ستره اودرنده دی، ددوی تاریخیرسالت دافغانستان ټولنی ته ډیر اهمیت لری، نـوزه تـا ســو تـه تبــر یــك و ا یم چه تاســو دومره لوی رسالت په غاړه لری ، زه یقیـن لرم چی ددی رسالت په ترسره کولوکی حتما بریالی کیږی ځکـه چی دافغـانستان زیار ـ ایستونکی خلك ، دافغانستان زړور خلقــی وسله وال پوځ، دافغانستاندولت اودافغانستان دخلکو دموکراتیك گوند داټول ستاسو ترشا ولاړدی، تاسوهیڅ چیری پرشاراتلی نشی اوته راځــی ولی چی اوس دهیوادټول سترقوتونه ستاسی تر څنگ ولاړدی ، نوزه یقین لــرم چی تاسو دخپلو وظایفو اوخپل تاریخی رسالت پهسرته رسولوکی بریالی یاست •

دافغانی ټولنی ځوان نسل دکارگرو دطبقی په علمی ایډیالوژی سمبال کړیاودگونداودولت

دچارو دېر مخبیبولو دپاره داسی زېور، باجراته اوپه علمی ایډیالوژی سمبال شی اودلوړی مفکوری اولوړو اخلاقو لرونکی خلقی ځوانان ټولنی ته وړاندی کړی، په ربښتیاسره چــی پیاوړی ، بااخلاقه اودلوړی مفکوری سترخلقیان به دهغی ټولنی په جوړولو کی چی مونږ یی غواړو ډیر ٥ مرسته وکړی او هغه ټولنه بــه ډیره رهبری کړی .

ددی کار دښه تنظیم کولو اوپه ښه توګــه پرمخبیولو دپاره زمونږ ګوندیوپراخ او ټو ل اړخیز پروګرام په نظرکی لــری اوستا سو ښوونکو او روزونکو ستره وظیفه په دی کی ده چی هځه وکړی په ځپلو لوړو انسانی صفاتو سره دځپلو زده کوونکو اعتماد وګټی اوپه ځپل رفتار او کردار کی دټولودپاره دغسی نمونــه واوسی چی ټول شاګردان تاسوته داحترام او درناوی زوره عقیده پیداکړی اوداپه امرنه کیږی بلکه تاسوباید په ربښتیاسره هم داسی نمونه او مثال واوسی چی هرهغه څــه تاسو ځپلــو شاګردانو ته وایی دزړه له کومی یــی ومنــی اوپه تاسو باندی پوره اعتماد اوباور ولری .

تاسی ښوونکی او روزونکی باید په ډیره جدیت سره لوړی‌خلقی مفکوری عملی کــړی اوځپلوزده کوونکوته یی هم‌وروښیی، خومونږ اوسنی نسل هم په هیڅ صورت نشو هیرولی ولی چی اوسنی نسل‌هــم ډیر مهم‌دی اواوسنی طبقاتی مبارزه اودهغی ټولنی دا اساساتو پــه ښودلو کی چی مونږپری پیل کړی دی ډیرمهم نقش لری نــوپه دی اساس اوسنی نسل تــه ډیره توجه پکار ده ، بیسوادی زمونږ پــــه هیواد کی دامپریالیزم میراث دی هغو کسانو چی ځانونه یی دافغانستان مشران بلل خود امپریالیزم ګوډاګیان وو او دافغانستان له خلکو سره یی هیڅ تعلق نه‌درلود، دغه بیسوادی په هیواد کی ساتلی ده اواوس زمونږ دخلکوپــه سلوکی ۹۷ بیسواده دی او بیسواد خوډروند په شان وی او دازمونږدخلکومتل هم دی چی هغه څوک چی‌په لیك‌او لوست‌نه پوهیږی‌وایی هغه ړوندی .

دادډیری نیکمرغی ځای دی چی زمونږ‌خلکو په ځپله هم دادرك کړی‌ده اوپدی ښه پوهیږی چی بیسوادی نیمګړتیاده، اوس زمونږ ګــوند او خلقی دولت په دی هځه‌کی دی چی پــــه هیوادکی دبیسوادی دمرض جرړی وباسی او ترهغی پوری چی موبیسوادی نه وی ورکه‌کړی به‌آرام نه‌کښینو، شایدیوبل‌داسی‌فرمان صادر کــړوچــی دبیسوادی مــرض دافغــانستان لــه ټولنی ځخه بیخی محوکړی .

ستاسو له خواپه خلقی مفکوری سره د راتلونکی نسل روزنه دتاسو لپاره ویاړدی اودزیاراېستونکولپاره به دهغی ټولنی په‌جوړولو کی مبارزه کوی چی مونږ اوتاسو دهغی پــه لور روان یوا وهیڅ قدرت او قوت زمونږ مخه نشی نیولی ځکه دافغانستان خلك‌اوس راویښ۔ شوی اود پردیو ګوډ اګیان یی له منځه وړی‌او

دخپلو اقتصادي او اجتماعي ګټوله پاره په
خپلواکه لارروان شويدي .

مونږ په پوره ډول خپل استقلال، ناپييلتوب،
خپل وطن او هيواد ساتو او هيڅوك مونږ له
خپلي دي مفکوري څخه نه اړولي شي اونه يي
اړولي يوهمدا پرون ديوه امپرياليستي هيواد
ديوي مجلي کتنګ راوړل شواودهغه هيواد
دانرژي دچاورئيس لەدي امله چي افغانستان-
يي له لاسه وتلي دخپل حکومت بهرنيو چارو
وزارت ته پيغور ورکړی دی اوزه درتــه وايم
چي افغانستان واقعا ددوی لـــه لاسه لاړ ،
افغانستان اوس خپله داسي مستقله لارەچي،
دټولو زيارايستونکو ګټي پکي دي غوره کړيده.

افغانستان چي پخوابه داستثمار ګرانـــو
او استعمار چيانو، ګله په يوه جيب اوګله
په بل جيب کي وو نوربه ددوی په جيبو نو کي
نه وي اودوی په رښتيا سره ژاړي چي نـــور
افغانستان ددوی په جيب کي نشته .

مونږ په نړي کي واقعاروغه جوړه غواړواودي
دپاره هلي ځـــلي کوواو هر چيرته ټول بايد
دورونو په خيردسوله ايزګډژوند پەمفکوره ژوند
وکړي چـــي دروغي جوړي مفکوره پياوړي اوقوي
شي ، ترڅو سرمـــايه داري او سوسياليستي
دواړه نړي سوله ايزګډژوند ولري، مونږددي
مفکوري په اساس اعلامەو اوپه کلکه غواړو
چه نظامي تړ ونونه دي له منځه لاړشي اودنورو
په هيوادو کي دي پوځي اډي نەوي . نظامـــي
ډلي ټپلي دي نەوي ، او ددېتانت پرنسيپونه
دي واقعا نه يوازي په اروپا کي بلکي پەآسيا
او نورو لويووچوکي هم عملي اوټينګ شي .
اوس افغانستان آزاد ، مستقل او خلقـــي
قضاوت لري ښه ته ښه وايي ، بدته بد، پخوا
داسي نه وو، او يوازي دخپلي بقاليپاره به يي
امپرياليستانو ، استثمار ګرانو ، او همدارنګه
هريوه ته ويـــل ته هم ښه يي اوته هم ښه يي
اوس زمونږ قضاوت دادی چي نظامي تړونونه
له منځه يووړل شي، اوله هغو څخه دپاټـــي
پيسوپه سلوکي پنځه دي نيستمنو اووروسته
پاتي هيواد و ته دمرستي په ډول ورکړی شي
چي پەدي مرستي سره داټول همدېوډي،کوراو
کالو څښتنان کيږي چي زمونږ داغوښتنه دبشر
دحقوقو پراصل ولاړه ده .

دنوروهيوادوپه کورنيو چاروکي لاس وهنـــه
او دهغوی پرضد توطئي دي له منځه ولاړي-
شي، دقهرمان ويتنام وياړلي خلك دي پرينښودل
شي، هغه ټولي خرابي ،چـــي دامپرياليزم دستړو
الوتکودبمبارۍوله امله ورته رسيدلي لەمنځــه
يوسي له ټولو او دمنطقي له خلکو څخه زمونږ
خواهش دادی په ټينګه وايو، چي دويتنام په
چاروکي دي مداخله نه کوي، هغەدي پريږدي چي
خپل کورودای کړي اوبيرته يودخوښي ژوندآغاز
کړي .

داچي دامريکا اوچين روابطتاسيس شويدي
پەدي برخه کي مونږکوم اعتراض نلرو، زمونږ
يواز ني هيله داده چي داسي روابط باداسي
دوستي هرچيري چي وي بايدسولي دتحکيم
دپاره وي، اود نورو هيواد ودروغي غوښتونکو
هيواد مخصوصا ، دکارګرانواوبزګرانوهيوادو
پرضد استعمال نه شي، دکوريا په برخه کي
زمونږ هيله داده، چي لەهغه ځای څخه دي
ټول بهرني عسکر ووزي، اوپري دي پردي چي

دکوریا زیارکښ خلك خپل سرنوشت پەخپله وټاکی اوبیرته سره متحد شی .

افغانستان اوس دیو مستقل دولت پــه حیث دنړی لەهرگوټ سره علاقمندی، لەهیڅ ډول جریانونو سره ، بی علاقی نشی پــاتــی کیدای ځکه هلته زیارایستونکی کارگران او بزرگران دی، اودوی زمونږ ورونه دی مونږ نشوکولی چی ځادرپرځان‌راکش‌کړو اوداوایو چی دهیڅا سره موکار نه دی ، اوس زمونږ له هرچاسره کاردی له هرچاسره نژدی یوله هغوخلکوسره له هغوطبقاتوسره له هغوهیوادو سره ، چی هغه واقعازیارایستونکی دی جهان جوړ وی ، بشریت جوړوی ، ځرنگه چی‌دوی جهان اوبشریت جوړوی، نومونږجوړوی مونــږ علاقمند یو، په همدی اساس باندی مونږ په منځنی ختیځ کی هم له روغی جوړی سرەډیر علاقمندیو اوداغوارو‌چی ژرهلته روغه جــوړه وشی او اسرائیل دی ملگرو ملتوپریکړی‌ومنی، دفلسطینیانو ددولت دجوړولو حــق ته دی غاړه کیږدی اوهغەدی په رسمیت وپیژنی او هـــم دی ټولی عربی خاوری خوشی‌کړی، مونږباور لروچی ددی مفکوری پرضدارتجاعی قوتونویا داسرائیلو مبارزه چی دزیارایستونکی بشریت پرضد مبارزه ده هیڅ ځای تەنه رسیږی.

په جنوبی افریقاکی‌هم‌باید اپارتایداو نژادی توپیرله مینځەلاړشی هلته په تیره بیاداانگولا، حبشی اوموزمبیق پەکورنیوچاروکی نورهیڅوك باید گوتی ونه وهی او دنورو افریقایی هیوادو زیارایستونکوته اجازه ورکړه شی چی دخپلو هیلواوگټوسره سم خپل اجتماعی نظم اوتنظیم جوړ کړی . دنړی له ټول مترقی بشریت‌څخه زمونږهیله داده چی ددغسی مفکوری ډیره‌پلوی وکړای اوټول‌ارتجاعی‌اوامپریالیستی قوتونەدی‌ته متوجه‌کړی چی دهیچاپه ضدباندی، دهیچاپه کورنیو چاروکی مداخله ونه کړی ، خوبیاهـم مونږ پوهیږو چی ارتجاعی‌او امپریالستی‌قوتونه لدی لاری څخه نه اوړی .

ستاسی دښوونی او روزنی دکارگرانو مهمه اوله ویاړه ډکه مشخصه وظیفه داده، چی‌زمونږ اوسنی نسل دبیسوادی له ناروغی نه خلاص اوپه دی برخه کی دانقلابی دولت پروگرامونه پەبنه توگەعملی‌کړی، ځکەچی‌دنړی‌دکارگرانو دستربنوونکی له ویناسره سم له بی‌سوادانو څخه څه نه جوړ یږی اوډیر کارنشی کولی خومونږ وایوچی دخپل هیواد له بی سوادانــو څخه به داسی باسواد جوړ کړو چی دخپلــی ټولنی په جوړولو کی بەډیر ستر کار سرته ورسووااوستره اغیزه به ولری .

او ستاسی بله وظیفه دراتلونکی نسل‌داسی روزل دی چی دخپلی ټــولنی په سمسورتیا ، ودانولو اورهبری کی ډیر اساس رول ولوبوی پەدی ټولوبرخوکی خلقی گوند ، خلقی‌دولت، خلقی وسله وال پوځ اوټول زیارایستونکی ستاسی ترشاولاړ دی‌او هرراز‌وسایل اوامکانات تاسو ته چمتوکوی .

یوځـــل بیا ستاسو بریالیتوب غواړم او آرزو لرم چی تاسوخپل تاریخی رسالت، خپلی تاریخی وظیفی اومسوولیتونەداسی‌سرته ورسوی چی راتلونکی نسلونه او مونږ ټول یی انتظار لرو، زه یقین لرم تاسو به په خپلو وظیفوکی بریالی اوسی اوتاسوتەمخکی ترمخکی ستاسو دبریالیتوب مبارکی وایـم .

# دافغانستان خلقي دولت دكاركرانو، بزگرانو اوزيارايستونكو دولت دى

زمونږ گران او انقلابی مشر دافغانستاندخلكڼددموكراتيك گوند دمركزي كميټى عمومي منشى دانقلابى شورا رئيس او صدراعظم نورمحمد تره‌كى دريشخور داووم لمبر قوا د قوماندانى منصبدارانو دخلكو په كوركى دكتنى‌لپاره حضور ته ومنل او هغوى ته يى په خطاب كى وويل :

۵ر۱۰ر۱۳۵۷

پرما گرانو ملگرو، خلقى افسرانو، ښه راغلاست ښه‌شوچى دلته په دى رڼاورځ يوله بل سره گڼرو اوپه دى ځكه خوشحاله يم ولى چى ډيرموپه تياروكى سره كتلى مگراوس په دى رڼاورځ سره گورو، دثور انقلاب چى دخلكو دموكراتيك گوند برياليتوب ته‌ورسا‌وه داسى يوخلقى انقلاب‌دى‌چى‌واقعاپه‌نړى‌كى سارى نلرى زمونږ گوند دخپلو اعضاوپه واسطه‌يعنى د خپل خلقى وسله وال پوځ

په واسطه داسى ريكارد قايم كړ چى پخوانه وو موجوداوزه يقين لرم چى په آينده كى به هم ډيرژر داريكارډ هم دوخت له‌لحاظ اوهم دلږوتلفاتوله لحاظ مات نشى .

زمونږ دا انقلاب‌نه يوازى ددى‌لپاره ستر دى چى دوخت اولږو تلفاتوله پلوه‌يى نوى ريكارد جوړ كړ بلكه ددى لپاره هم يوستر انقلاب دى ولى چى دافغانستان ټولنى ته يى دهيواد دخلكو په گټه دزيارايستونكو په گټه بدلون وركړ .

دثور ستر انقلاب سياسى قدرت زمونږ دگوند لاس ته راوست او گوند ستر قوت دى خواوس بله دوره پيل شوى چى هغه تردى هم مهمه اوډير ارزښتناكه ده او دادوره دافغانستان نوى ټولنى ودانول او جوړول‌دى.

داهم بايد زمونږ خلقى وسله وال پوځ‌يعنى دگوند اعضا اونور وطن پرستان په نظركى ونيسى چى دا انقلاب دوام لرى . انقلاب به



زمونږ گران او انقلابی لارښود د افغانستان د انقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی د ریشخور د قوا له منصبدارانو سره د خبرو په وخت کی .

ترهغه دوام لری تر څوچی مونږ دلته داسی جامعه جوړه کړ وچی هلته دسړی څخه دسړی استثمار وجود ونلری .

ځینی خلك به دا تصور کوی چی اوس هغه دی سیاسی قدرت لاس ته راغی اوس نو باید سړی خادرپه سرکش کړی کرار ورته وغزیږی مگر زه وایـــم او تاسو زمـــا ملگری ځوانان په دی پوهیږی چی واقعا دنوی جامعی دجوړولو او ودانولو دپاره زمونږ په مخ کی ستونزی شته محرو میتونه شته خوله بنه مرغــــــه دامشکلات مونږ او تاسو په خپلو اوږواخلو او راتلونکو نسلونو ته مشکلات نه پریږدو اوږد راتلونکو نسلونود پاره به داسی ټولنه جوړه کړوچی په هغه کی هر څوك مطابق دخپل کار مزد واخلی دداسی جامعی دجوړولو دپاره که مونږ او تاسو هر څومره مشکلات وگالو اوهر څږ ستونزی په ځان ومنو بیاهم لږدی مونږ په دی باندی ویاړو اودافغانستان خلك چی زمونږ ډیر اوږ پلاردی هغه به ویاړی چی داسی زامن یی درلودل چی هغوی ددوی دنیکمنی دپاره ددوی دهوساینی دپاره داسی ستونزی او مشکلات گاللی دی مونږ په دی باندی هیـــڅ غمجن نه یوکه مونږ په دی لږ کی مشکلات یا محرو میتونه گالو اوزه تاسو ته تبریك وایم چی تاسو هغه پیشاهنگان یاست چی پـــــه افغانستان کی یی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند تررهبری لانـــــدی هغه کارونه وکړل چی دهغوی په اساس یوه نوی له استثماره پاکـــه ټولنه جوړ یږی .

گوند دخپلو سر تیرو افسرانو دخپل خلقی وسله وال پوځ په واسطه انقلاب وکړ، خودوی ته یی هیڅ رشوت نه وورکړی اونه به یی ورکوی مگـــر یـــو ستـــر ر شـــو ت و ر کـــو ی هغه داچی دگوند او دولت ټول هـــدف به داوی چی دخلکو دسعادت دپاره ، دخلکو دهوساینی دپاره ټول خپل قوت او قدرت په کارواچوی او دا، داسی مکافات دی چی تاسو لویـــو افسرانو ته ، کوچنیو افسرانو ته او خپلو ټولو حزبی اعضا وته دولت او گوند داوړاندی کوی تردی بل ستر مکافات قطعا نشته اونه وجود لری .

تاسو ته څرگنده ده تاسو ته می ویلی هم دی چی داگوند دکار گرو، دبزگرو او زیارا ایستونکو دی مگر تراوسه لازمونږ کـــارگره طبقه ډیره ځـــوانه ده او تعداد او شمیری ځکه ودد نه ده کړی چی فیوډالانو، امپریالیستانو ددوی دودی مخه نیوله نو څرنگه چی دوی ژروده کوونکی دی نوډیریږی پوهیږم نورهم طبقاتی او سیاسی شعور اخلی دابه په لږه موده کی واخلی مگر تر هغو پوری زمونږ کارگران ،زمونږ پرولتاریا تاسو دپوځ ځوانان وی اوزمونږ دگوند هغه مبارزین وی چی په گوند کی مومبارزه کړی اوکوی یی دغه دی زمونږ تحلیل بلله داچی مونږ باید خپل خلقی یعنی دخلکوگوند اودولت ددی مقصد دتامین دپاره لاپسی پیاوړی اوخپل وسله وال پوځ لههره پلوه ډیر غښتلی کړو هم ښه تجهیزات ورته بـــرابـــر کـــړو او هم یی ښه وروزواوهم دوی ته مفکوره ورکړو او داهغه مفکوره ده چی مونږ اوتاسو ټول یی په یوه زنځیرسره تړلی یو .

داخلقی مفکوره ده چې ټولو دهغی دپـاره له کلوکلو را هیسی مبارزه کړیده او اوس به دکلوکلو دپاره هـــم دی مبارزی ته دوام ورکړی مونږ او تاسی دهمدی مفکوری پـــه اساس باندی مبارزه کوونودذی مفکوری‌دعملی کولو او ددامی ټولنی دجوړولو دپاره چې مـا ړومبی وویل یوقوی اوغښتلی خلقی وسله‌وال پوځ لازم دی او مونږددی بنسټ لاپخوا ایښی وو یعنی داسی خلقی وسله وال پوځ بنسټ ممکن اته یالس کاله پخوا لاایښودل شوی وی مگر ډیره ښـه وده یـی وکړه چـی نن ورځ دادی ترهغه ډیر متکامل شواو راتلونکی وخت کی به نوره وده هـــم وکړی نومونږ غواړو چې دخپلی دغی مفکوری دعملی کولو دپاره چـی دافغانستان دخلکو دسعادت دپاره یی لروخپل

وسله‌وال پوځ نور هم له هره نظر، دمورال له نظره او هم له مـادی نظـره نـــور هـم پسی غښتلی کړواو ددوی تجهیزاتو اوهـــم حزبی استعداد او لیاقـت ته نوره هـــم وده ورکړو او خلقی دولــت تــل په‌دی بوخــت

دی چې له کومولارو څخه‌خپل دامقصد تامین کړی چې دخپل خلقی وسله وال پوځ اودخپل گونـد دتوری ترسیوری لاندی ددامی جامعی جوړ ولو ته دوام ورکړو چې پـــه هغی کی‌بـه هیڅ ډول ظلــم نه وی نه طبقاتی اونه ملی ظلـــم •

دتور انقلاب دهمدی اتو میاشتو پـه موده کی داسی گلونه وسپړل چې‌تاسو‌یی په‌خپله گوری اوداسی کارونه یی‌وکړل‌چې دافغانستان په تاریخ‌کی ساری‌نلری اوددی‌ټولنی دجوړولو

سمسورولو او ودانولو لپاره یی بالکـــل لاره آواره کړی ده مثلا زمونږ ټولواتوواړ وفرمانونو دافغانستان دخلکو په اقتصادی او اجتماعـی سرنوشت کی ډیر ژورتاثیر کړی اووبه یی کړی ، نو په وسله وال پـوځ کـی زمونږ دگوند دغړ یواونورو هیواد پالو کوښښونـــه او داچـی سرونه یی پـه لاس کی دانقلاب لپاره راوتلی ووبی ځایـه نه‌وو •

هغه دیوه شخص یادیوی کورنی دپاره نه بلکه دټول افغانستان دخلکو دښیگنو دپاره وو •

تاسو دگوند غړی یاداچې دگوند تررهبری لاندی چې کار کوی ټول خلقی افسران اوس پدی ښه پوهیږی اوو یاړی چې زمونږ‌په هیواد کی قدرت‌دخلکولاس ته‌ورغلی اوزمونږ‌دهیواد په‌سلوکی اته‌نوی‌هغه‌خلك‌دی‌چه زیاریی‌ایستلی دی یازیار باسی زیار ایستونکی دی تولیدکوی او دافغانستان پـــه جامعه کی ستر اوقطعی نقش لری نومونږ دهغوی دیکتاتوری په هغو غلو باندی چې ددوی وینی یـــی څښلی دی‌منځ ته‌راولواوداعین دموکراسی او ددموکراسی عالی شکل دی کله چې داود کودتاوکړه نوتر هغی پنځلس شل ورځی او یا یوه میاشت وروسته په اردوکی زمونږ ملگروویل چې ډیره ستره اشتباه وشوه •

مگر مونږ پوهیږ وچــــی تر سلطنت ړنگولو وروسته به دی هم‌چـی یوازی نوم یی بـــدل دی دخلکو دپیچیانو له خواله پښوو غور ځول شی اولکه څنگه چـــی له مینځه یوړل‌شو• دادخلکودښمنان‌ټول له‌منځه‌لاړل اوداگوندووچی

داکاریی وکړ اوبی له ګوندڅخه دغه کارامکان نه درلود •

نوزه وایم چی دافغانستان خلقی دولت کارګرانو بزګرانو او دنورو زیار ایستونکودی اوپه ډیره خوشحالی سره به دخپل لاس دتهاکو محصول په خپله واخلی او ددوی په خوشحالی کی دافغانستان دټولوخلکو اوزمونږ خوشحالی نغښتی ده • او هلته وایی چی په افغانستان کی زمونږ پرښځو ، زمونږ پرننګ اوناموس باندی تجاوزکیږی، مګر مونږ وایو او تاسو ګوانانو ته معلومه ده چی دانقلاب نه وروسته یوازی یوه واقعه شوی ده چی یوه کورته غله ورلویدلی وو هلته یی دهغه په ناموس تجاوز کړی وو او اوس مونږ په دی نه سره جوړ یو وچی دغه غله ته څومره درنده جزاور کړو •

نو زما خواهش له دوی څخه هم دادی چی دوی په تولیداتو کی ښه سهم واخلی او داخپل ماشین آلات چی ددوی په ګټه دی ښه وساتی جاروکشان هم باید دا احساس ولری چی پدی کو څو او باز ارونوکی اوس دخلکو خدمتګاران تیریږی، راتیریږی نه هغه مستبدین اوظالمان چی دزیار ایستونکو خلکو وینی یی څښلی زه بالکل یقین لرم چی په جاروکشانوکی به هم دغه احساس پیدا کړو •

په افغانستان کی دثور ستر انقلاب په سلوکی داته نوی زیار ایستونکو خلکو په ګټه دی خو په سلوکی دنورو دوو په ګټه به نه وی اونه یواځی په داخل کی دوی بلکه ددوی بین المللی پلویان هم چی امپریالیستان او توره ارتجاع ده

هغه هم نارامه شوه اودثور انقلاب دځان لپاره وژونکی زهر بولی •

که څه هم مونږ انقلاب نه صاد روو خو زمونږ دانقلاب مشعل بلیږی اورنایی ددغه شان هیواد وپر خلکو اغیزه کوی اودغه اغیزه هغوی دی ته هڅوی چی په خپلو هیواد وکی هم دغه شان مشعلونه بل کړی نو ځکه دا دافغانستان دخلکو دښمنان چی دامپریالیزم پیری یی په غاړه کړی هر چیرته زمونږ په ضد تهمتونه لګوی دادخلکو دښمنان زمونږ په فرمانو باندی هیڅ اعتراض نشی کولی حتی نوم یی هم نشی اخیستی چی دانوم یی واخلی دافغانستان خلك دوی ته بدوایی او دوی له منځه وړی دوی ته یوازی ددروغو تهمت او دسیسی جوړولو لاره پاتی ده اووایی چی دین ، جوماتونه او ملایان په خطر کی دی •

مونږ وایو چی دابیخی دروغ ده مونږ دین ته احترام لروهغه ملایان چی دخلقی پرضدنوی هغوی ته احترام لرواو هغه روحانیون چی دخلقی دولت پرضدنونه دریږی محترم ګڼو هغوی په افغانستان کی ځای اوهر ډول مصئونیت لری

مګر البته هغه څوك چی دامپریالیستانو او نورو بین المللی ارتجاع دلاس آله شی هغه واقعاً دلته ځای نلری او واقعا له دی ځایه وتښتی اګه تښتدلی چی دی •

زمونږ یو شمیر دښمنان تښتیدلی دی او امپریالیستانو او نورو بین المللی ارتجاع امپریالیستانو اوتوری ارتجاع دوی ته دبیزو په څیرپری په غاړه کی وراچولی په کوڅه اوبازار باندی اوکلی کی یی زمونږ پرخلاف استعمالوی

اوزموږ پرضد بې ځایه تهمتونه اودروغ وایی. په‌دی کی هیڅ شك نشته چـی موږ ټـول په دی خوشحاله یو، اوس به زموږ بزګران په شعوره اوآګـاهانه احساس خپلی ځمکی ودانی کړی ولی چـی پخوا به‌یی فکر کاوه چی چاته یی ودانوم اوښیګنه یی چاته رسیږی خواوس چی هر څه په دوی پوری اړه لـری نودخپل هیوادپه ودانولو کی به ډیـره مؤثره برخه واخلی زموږ کارګران چی ټول ګونـد دولت اوهرڅه ددوی دی .

اوس په‌افغانستان‌کی نارینه اوښځی دواړه دیوه مرغه دوزرپـه شـان الـوتلی دی اود افغانسان نوی ټولنه جوړوی پدی کی هیڅ‌شك نشته چی دښځو حقوق له نارینه‌ووسره برابر شویدی یعنی په‌دوی‌اوس دمینځوپه څیر خرید اوفروش نه کیږی ځـوانان او پیغلی د شرعی او مدنی قوانینوسره سم باید په خپله خوښه واده سره وکړی دی کارته که زموږ دښمنان بدوایی نوویلی یی نه‌شی دافغانستان خلك یی په خپلو سترګو وینی چی دلتـه هر ځـوك په تمامه معنی مصئون دی اودخپل افغانستان په ودانولوکی ډیره ښـه مؤثره برخه اخلی.

موږ بیاوایوچی داد زیار ایستونکو دولت دی داد‌کارګرواوبزګرودولت دی هغه‌ظالمان او مستبدین‌چی دخلکوپه‌وینواوغوښوپی ژوندکاوه په ریښتیاسره چی اوس دلته ژاړی ولی چـی نور پردوی باندی دغلالاری په ریښتیا سره‌بندی شویدی دغلولاری په خپله نوری وتړلی شولی پخوابه ویل کیدل هیڅ امکان نلری چی په افغانستان کی دی رشوت ورك شی‌نوزه اوس تاسوملګرو ته زیری درکوم‌په‌مسوولیت داوایم چی فقط ډیرلږ که چیری څوك رشوت واخلی نورنو رشوت‌په افغانستان کی‌واقعا محوشویدی او بیخی محوکیږی ځکه چی رشوت خواره‌هـم دغلو په څیر وپوهیدل چی موږ نودا څه کوو چیری یی‌یو سوځه پری وکړولار او فضاداسی راغله چوکات داسی دخلقی دولت له خواورته جوړ شوچی کارو کړی وی خوری •

هرڅومره چی ستاسودکار ثمرډیروی هغومره تاسی ډیر مصئـون هـم یـاست تاسی بـه ډیرآرامه او آسوده یاست مګر غلانوره دلته نه‌چلیږی ستاسودخلقی دولت له‌لوړوافتخاراتو څخه یوداهم دی چی رشوت اوغلایی ورکـه کړی ده .

نویو ځـل بیاپه تکرار سره وایـم چـی ټول خلك به آرام او مصئون ژوند ولری‌موږ هیچاته ، هیڅ مـلا ته، هیڅ روحانی تـــه، هیڅ یوه بل داسی سړی ته‌چی هغه غواړی‌چی دافغانستان له نوی جامعی سره ځـان متناسب کړی څـه نه وایو او محترم یی ګڼو •

حتی فیوډالان چـی دافغانستان دنوی جامعی سره ځان وړوګرځوی‌اودخلکو له‌غوښواووینو-خوړلو څخه لاس واخلی موږ ته محتـرم دی او هغه دلته دی هغه بالکل لکه زموږ دورونو په څیردی اما څـوك چی ستاسو دانقلاب په ضد ودر یږی هیر چیرته اوله هری خواچی وی دخلکو دښمنان دی موږ دانه وایو چـی دوی دریږی دوی ټولنه دریږی‌فقط په سلوکی ډیره کوچنی برخه‌یی دامپریالیستانواو ارتجاع په لمسون‌کارکوی هغه نوکه‌پګړی وتړی اویا

هربل رازنقاب په مخ وغوړوی مونږ یې‌پیژنو اودوی دلته ځـای نلری اوهغه به‌لـه منځـه ځی ، زمونږ انقلاب دخپلو زیار ایستونکـو مسلمانانو خدمتگاردی ، دولت دخپلو زیـار ایستونکو مسلمانانو خدمت گار دی دهغوی دښمنانو اوسعادت دپاره کارکوی هر څـوك چی پرمونږ باندی تور او تهمت لگوی هغه به په‌خپـله شر میږی مخ‌تـوری کیـږ ی او ورك کیږی.

زمونږ دثور انقلاب په نتیجه کی ددوی‌د طبقاتی‌سیستم دورنما ډیره ضعیفه شوه اوورځ په ورځ ضعیفه کیږی او طبقاتی ستم پـه افغانستان له منځه ځـی په همدی ډول چـی طبقاتی ستم له منځه ځی په‌رنا کی یی ملی ستم هم له‌مینځه تللی اوله‌منځه ځی . مونږ دافغانستان ټولوملیتونو ته حـق ورکړیدی چی دوی خپل حقوق په هرشی کی واخلی دوی خپلی ژبی ، خپل هنر، خپل کلتور، خپل‌دود، دستوراو ټولوته په آزاد ډول وده ورکړی او حتی‌مونږتردی هم‌نورډیرگامونه اوچتوونکی یو چـی ستمگری طبقی بیخی‌محوشی دمحوکیـدو معنی دانده‌چی هغوی‌به مری‌بلکی دستم گالونکو طبقو ترځنگ بـه دریږی‌چی داکار وشی‌نوبیا دکارگرودطبقی دمفکوری په‌اساس دوی ته‌هم ټول حقوق ورکول کیږی •

مونږ په دی باور لرو چی دافغانستان‌ټول خلك به خپل تحصیلات په خپلو مورنیو ژبو باندی وکړی مونږ ددی‌لپاره‌پراخ ترتیبات‌نیولی دی •

داد خلقی دولت یوه بله ښگینه ده چـی هیچاته استثنانه قایلیږی اوټولوملیتونو ته به دهغوی پوره پوره حقوق ورکړی خو که‌څوك بیاهم دژبی یامذهب اوداسی نور و په پلمه دنفاق‌اچول‌غواړی‌نودا دخارجیانواوامپریالیستانو لمسونه ده او دامونږ نشو تحمل کولی له‌هغه سره به‌وړسلوك وشی، هرچاته‌معلومه ده چی اوس دډیر وملیتو په ژبو باندی هم اخبارونه نشریږ ی اوهم په راډیوکی پروگرامونه لری مـو نـږ هیچا تـه د شکایـت ځـای ندی پریښی او که بیاهم پدی باره کی څوك اخوا دیخوا خبری کوی او هڅه کوی دخلکو ترمنځ نفاق وا چوی هغه دانقلاب دښمن دی.

هیڅوك حق نلری چی بل څوك مجبـور کړی چه ته به په دغه یا هغه ژبه خبری کوی داد انقلاب له قوانینو څخه دی بیا هـم تکراراً ځکه داوایم چی دټولو په ذهن کـی کښینی چی مونږ هر چا ته حق ور کوو چـی په هره ژبه چی غږ یږی په آزاد ډول دی وغږ یږی مگر دا ټوله غږ یدا، دا ټو لـی ژبی ، دا ټول هنر اوکلتور ، دا هر څـه چی مو نږ وو یل باید یو جهت ولری هغـه جهت دا چی دافغانستان دزیار ایستو نکـو دښمنانو دپاره دی وی ، دهغو ی دهوسایـی دپاره دی وی او دهغی طبقی دپاره دی وی‌چی هغه کار کوی او هر څه تو لید وی نـه دهغو دتضعیف دپاره چی دازمونږ ځـر گنده او ښکاره لاره ده .

ټو لو ته معلو مه ده زمونږ گوند چـی انقلاب یی منځ ته راوستی یوه در سـی

ښو ونځی ته ورته دی چی هر رنګه شاګردان
یکی وی دښوونځی په شاګردانو کی ځوك
اعلی وی ، ځوك عالی وی ، ځوك ځر نګــه
وی ،او ځوك ځر نګه خو هر ځوك دخپــل
استعداد مطا بق کار کوی نو زمو نږ په ګوند
که هم دغه شا ګردان چی مونږ روز لـــی
واقعا دوی ټو لو په خپل وار سره دخپـــل
استعداد سره سم له مونږ او دخپل ګو ند
سره یی همکاری کړ یده دا همکاری دوی له
خپلو خلکو سره کړ یده مونږ دهغو مننه
کوو مګر بیا هم په دوی که هغه شا ګردان
چی نمره اول دی او په خلاقه تو ګه یـــی
زمونږ نقشه ، زمونږ دیزاین عملی کـړیـدی
واقعا هغه ملګری پر مونږ ډیر ګران دی
زمو نږ ملګری حفیظالله امین زمو نږ پدی
ښو ونځی کی له هغو شا ګر دانو څخه دی
چی واقعا په عا لی الاعلی درجه یی په هرشی
کی بر خه اخیستی ده .

پدی کی شك نشته چی زمونږ نو رو ملګرو
هم برخی اخیستی دی خــو دامی په ښه ډول
وو یل . چی هغه څه چی ما نقشه ور کړی
ملګری حفیظ الله امین په ډیره ښه او خلاقه
تو ګه عملی او تطبیق کړ یده چی له هغه
نه‌زه خپله هم راضی یم او ګو ند هم تری
راضی دی .

نور نو دا وایم چی دامی څکه یا ده کړه
چی نو رو ملګر وته هم مو نږ تشو یقوورکړو
ور ته ووایو چی دوی هم ملتفت شی چـــی
نور هم دمکتب دشا ګردانو په شان کوښښ
وکړی خپل ابتکا رونه دګو ند دښکیلی دپاره
ددولت دښیګڼی دپاره ، اود افغانستان‌دخلکو
دښیګڼی دپاره پکار واچو ی او همدا ســـی
ستر کا رونه وکړی .

بل نو په خارجی سیا ست کی خو ما تل
خبری کړ یدی زه داوایم چی مونږ بیا هم‌له
ټولو ګاونډ یانو سره روغه او سو له غواړو
او ددوی په کورنیو چا روکی مداخله کول
نه غواړو همدا ډول له دوی نه هیله‌لروچـــی
دوی زمو نږ په کورنیو چارو کی مداخله ونه
کړی مونږ له پا کستان ایران اوچین سره
دو ستی لرو او دشوروی اتحاد سره بیخی ښه
دو ستی لرو ښه دوستی پدی معنی چی تاسوته
په خپله معلومه ده چی تاریخ دا ثابته کړیده
چی دهغو خلکو دو ستی له افغا نستان سره
واقعا بی غرضه ده تل یی دافغانستان سره‌هغه
مرستی کړی او داسی مر ستی یی کړ یدی
چی دافغانستان خلك به یی هیڅکله هیری
نکړی ځکه ددوی سره زمو نږ دو ستی نوره
هم‌توده شوه اونــــوره هم دوروګلـــوی پـه
اساس باندی ټینګه ودر یدله زه هیله لرم
چی زمونږ روابط او زمونږ هغه دو ستی لـــه
نو رو هیواد و سره هم په دغه اساس باندی
منځ‌ته را شی او دغسی وده وکړی لکــــه
ددوی سره یی چی کړیده .

په‌نړی کی زمونږ بل ستر هدف دادی چی
په ټو له نړی کی دی سوله ټینګه وی ولی
چی‌که په نړی کی سو له نه وی نو مو نږ
ښه ژوند نشو کولی ولی چی اوس داســـی
وخت دی چی‌افغانستان دپخوا غــوندی مجـرد

نشی پاتی کیدای که هرچیرته اوربل -
شی نو دااور راتلی شی موږ هم سوزوی
او موږ ددی دپاره چی هیچیری اور بل
نشی ددی ټینگ، طرفدار یو، اوله ټولو
څخه غواړو چی دو سلو په کمو لو کیجدی
اقدامات وشی نور همغسی وسایل اختراع نکړی
او یایی منځ ته رانه ولی چی خلك مړه کړی
او ددوی کو رونه ، جا یداد ونه دوی ته په
میراث ور پا تی شی لکه دنیو ترون بم چی
دوی یی اوس جو ړوی دایوامپر یالیستی
ذهنیت دی چی خلك یی ندی پکار،خلك وژنی
خو کو رو نه او ما لو نه یی له مینځه نه
وړی چی بیا دو ی ته ور پا تی شی.

مو ږ دانسا نا نو دوژلو دداسی وسا یلو
سخت مخا لف یو ا ودا غو ښتنه کوو چی
دغسی خطر ناك وسایل منځ ته راشی چی
انسا نان ووژنی مگر ددوی ما لو نه پریږدی
مو ږ وایو چی انسا نان ډیر مهم دی انسانان
باید ژوندی وی دانسانانو مالونه دی هم
وسا تل شی اوپه نړی کی دی سو له او
آرامی او دنړی دخلکو ترمنځ ورو ری ټینگه
وی .

داروش بیخی عملی دی ولی چی دسوله -
ایز گډ ژوند سیاست اوس بری موندلی
اوزه یقین لرم چی دی سیاست ته دوام ورکول
ټولی نړی ته خدمت دی .

زمو نږ غو ښتنه داده چی هر چیر ته اوپه
هرځای کی باید دسولی او روغی دپاره مبارزه
وشی او موږ هم چی نوی افغانستان او خپله
نوی ټو لنه جو ړوو دسو لی غو ښتو نکی
یو او د سو لی دپاره مبارزه کوو او چی
خپله نوی ټو لنه مو جو ړه کړه بیا هم
دسو لی دپا ره کار کوونه دچا وژل غوا ړو
او نه دچا میراث ته په تمه یو.

مو نږ غو اړو چی خپل کور ودان کړواو
آرام او هو سا ژوند پکښی وکړ و.

یو ځل بیا تا سو خلقی افسرا نو تاسو
ځوانانوته وایم چی تاسو تل ملاتړلی
او سی .تا سو ته دافغانستان خلك هغه
مکافات نشی درکولی چی واقعا تاسو دهغه
وړ یاست ستاسو ستر مکافات دادی چی
تاسو دخپلو مینډ و او پلرو نو یعنی دافغانستان
دخلکو په خد مت کی یاست دهغوی ساتنه
کوی لکه ځوان زوی یا ځوان زامن چی
دخپل کور سا تنه کوی دخپل مور او پلار
سا تنه کوی په همدی ډول ستا سو دغه

ساتنه ستا سو دپاره لوی مکافات دی تاسو پدی قناعت وکړی او پدی باندی افتخـــار ولری .

تا سو دهیواد دغسی زامن یا ست چـــی دافغانستان خلك ډیر وسایل نلری او تا سو ښه نشی ساتلی او ستا سو دژوند سو یه ډیره نشی لـــوړولـی نو نه یــوازی دا چــی تاسو پدی نه خپه کیږی بلکی افتخار پری کوی .

زه خوښ نه یم چی زمو نږ لید نه ختمه کړم خو څر نګه چی مونږ او تاسو خپلـــو وظایفو ته لاړشو نو خپلی خبری په پای ته و رسوم تا سو زما سلا مونه ، زما احترامونه زمونږ سر تیرو ته هم چی هلته دی ورسوی اوستاسو لویــه وظیفه بــهداوی ز مو نـــږ سر تیر وته چی پچه یی وتلی او راغلی‌دی عسکری کړی یو څه شعور ورکړی لیـــك او لوست ورزده کړی او داسی‌یی وروزی‌چی دزړه له کو می ستا سو سره همکا ران وی په تا سو پوره اعماد او باور ولری او هـــم دزړه له کومی تا سو ته احترام ولری .

داد خلقی فوځ او خلقی دولت هدف دی‌زه یقین لرم چی تاسو ځوانان بــهددی هـــدف دپاره نوری ښی هلی ځلی وکړی .

# دثوردانقلاب پہ بری سرہ دگوند او خلقو دښمنان سرېولاس شول

داافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دلوی‌ی کانگری دڅوارلسمی کالیزی پــــه مناسبت دانقلابی شـــورا رئیس اوصدراعظـــم دراډیوتلویزیونی وینامتن .

۱۱ر۱۰ر۵۷

دسنگر ملگرو !

دافغانستان زړورو او شریفـو خلکـو !

زمو نږ دگران هیواد او دکار گرو دطبقی مخکښ داافغانستان دخلق دمو کراتیك گوند سږ کال خپل څوار لسم تلین پداسی شرایطو کی نما نځی چی دهیواد په تاریخ کی لومړی ځل دهغه په مشر تا به دگران افغا نستان خلقی انقلاب بر یالی شو یدی او سیا سی قدرت له ستمگرو طبقو څخه دکار گرو طبقی او دهغی دانقلا بی متحدینو یعنی دبز گـرو او نو رو زیار ایستو نکی لاس ته ور غــی اودثور ستر انقلاب چه‌زمونږ د ځنځیر مـاـ توونکی گوند په‌لارښوونــه دخلقی وسلهـ والو قو او دانقلابی پا څون په وسیله او دهیواد دزیار ایستو نکو په پراخه ملا تـــر بریالی شـــو زمـــونږ دلـرغـونی هیـواد په پنځه زره کلن تاریخ کی یی نوی پا ڼــــه راواړولـــه او زمونـــږ دویاړلی هیواد دزیار- ایستو نکی انسان په گټه یی ددغی خا وری دسمسور تیا او آبادی له پاره لاره خلا صه کړه .

زمونږ کار گران ،بز گران او نور زیار ایستونکی لدی وروسته دخپل‌هیوادخاونـدان دی او هغه څه چی دخپل تندی په خو لواو دشرا فتمندانه گټور کار په وسیله منځتـــه راوړی په‌دوی پوری اړه‌لری.



زمونږ گران انقلابی لارښود، د ا خ د، گ ک د مرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شو را رئیس اوصد راعظم نورمحمد تره‌کی کله‌چی‌دخلکو دده‌وکراتیک گوند دلمړنی کنگری د۱٤ کالیزی په‌مناسبت دافغانستان دخلکو دراډیوتلویزیون له‌لاری خپله وینا اوروی.

پد غه څه دپا سه اتو میا شتو کی چه دثور دستر انقلاب څخه تیر یږی دافغانستان دخلکو په گټه داسی ستر کا رونه شوی‌دی چی دهیواد په‌تیر تاریخ کی‌دسل گونو کلونو په جر یان کی‌هم دهغوی دا جرا کیدو حتی تصور هم نه کیده دانقلا بی شو را فر مانونو او نورو په لس گو نو گټور و اقدا ما تـو زمو نږ خلك دفیو ډالی څو پیړ یوله مر ئیتوب او ډول ډول ظلمو نو څخه وژغورل اوس‌دخلکو دخپلواك اونیکمرغه ژوندپه لارکی‌زیات خندونه له مینځه تللی دی باید وویل شی چـی یوازی دشپږم ، اووم ، اتم لمبر فر ما نونو په‌ذریعه له‌یوسلو پنځوس زره ملیو نـو څخه دزیاتو افغانیو گټه دافغانستان زیـار - ایستو نکو ته رسید لی ده .

ددغو سترو پیښو دپیل ټکی چی زمونـږ دهیواد تاریخ پری ویاړی دافغا نستان دخلق ددمو کراتیك گو ند بنسټ ایښودل اودهغه دلو مړی کنگری غو نډه وه . دگو نـد دلومړی کنگره څخه دهیواد دتاریخ دستری پیښی یعنی دثور دستر انقلاب ترو خته پوری زمونږ گو ند دتکا مل سختی لاری وو هلی چی زمو نږ دگو ند دلو مړی کنگری دغونډی دورځی څو ار لسمه کلیزه نن له غر مـی وروسته په دوو بجو دگـوندی سـازمانـونو په وسیله پیل کیږی .

زمو نږ ویاړ لی گو ند دخپل تا سیس دلومړ یو مبا رزو په ړ اوو نو کی بیل بیل سازمانونه اوجلا جلاخلقی جوړی او هغـو ته یی ارتباط سره ور کړ .

يو شمير كسانو پدغه مرحله كي هم دكارگري طبقي په دوران جوړ ونكي ايډيالوژي بانـدي دطبقـاتـي مبارزي دادامي جرات او توان په ځان كي نه ليده نو پـه يوه يا بله پلمه يي خپل ځان دخلكودمبارزينو له كتار څخه گوښه كړ .

خو مبارز اود خلكو له آرمانو سره وفادار ملگري كه څه هم دگوند دجوړيدو په پيل كي له هيواد څخه ليري و دكارگري طبقي له هيلو او دكار گري طبقي له گوند سره يي دخپل پيوستون څخه مونږ تـــه خبر را كړ .پدغه مرحله كي هم دسلطنت دظالم دربار واكوالانو زيار وايستـه چـــي ددغه كارگري نهضت مشر توپ دخپوناژوليو دنفوذ په وسيله تـــرلاسه كـړي او هغـه په خپل ځان پوري وتړي خود دافغا نستان‌د خلق د مو كر ا تيك گـو نـد د كـــار ـ يگرو دطبقي دعلمي ايډيالوژي په رڼا ســـره دغه ټولي حيلي او دسيسي شنډي كړي او خپلي ودي او تكامل ته يي ادامه وركړه.

دطبقاتي آگاهانه مبارزي دسختيد و په جريان كي دافغا نستان دخلق دمو كراتيـك گوند لومړي كنگره جوړه شوه بيخي څرگنده وه چي دفيوډالي اشرا فيت پوري تړليـــو كسانو كو ښښ كاوه چي بدغه كنگره كي هم دخپلو باداراتو په طبقا تي گټه هلي‌ځلي وكړي او دگو ند دمشر تابه تر لاسه كولو لاره ځان ته آواره كړي .

چي دگو ند دمبارزو ورا تلو نكو جريانونو په ډيره ښه توگه دغه حقيقتو نه دهند اريږه څير وښوول له هغه ورو سته چي دافغا نستان دخلق د دمو كراتيك گو ند لومړي كنگره په بري سره پاي ته ور سيده او په كارگري انقلابي نړي كي يو بل ورور گو ند ســـر را پورته كړ دگو ند وده ډيره گړندۍوه اودنفوذ لمن يي ډيره زياته خوريده پـه اشرافيت پوري تړليو او دسلطنتي دربارليري اونږدي تالي څتو اودطبقاتي مبارزي او دټول هيواددخلكوترمنځ دطبقاتي پيوستون دشمنانو دول دول خندونه رامنځ ته‌كول اودگوندد مرام او اساسنامي دزيار ايستونكوخلكوپه منځ‌كي دگونددكاردطرزاودگونددمركزي كميتي‌دپراختيا دمسا لو په سر يي گوند له زيا تو ستونزو سره مخا مخ كړ سره لدي هم گو نـــد لد غو كشا لو څخه په بري او سر لو ړي سره ووت اوله هغه څه څخه چي دافغانستان دخلق دمو كراتيك گوند دفاع كوله په‌عمل كي يي هم ريښتيني مصد اق پيدا كړ .

دافغانستان دخلق‌دموكراتيك‌گوندپه ټينگيدواو غښتلي‌كيدو اودهيوادپه زيار ايستونكو خلكو كي دهغه په غو ړ يدو سره حا كمي ټو لني دد غه گو ند دټوټه كيدو په لټه كي شوي او غو ښتل يي چي دهغه په مشر انــــو او صفونوكي گډوډي راولي دخپلو معلـــومـ الحا لو ايجنټانو په مشري يي څو ځلــــه دگوند څينی غړي تيرايستل اوله هغه څخه يي بيل كړل او دټول ټول امتيا زو نـــواو نا مطلو بو اړ يكو په لر لو سره يي‌دهيواد دكار گري طبقي ددغه مخكښ دافغانستان‌دخلق دمو كراتيك گو ند په ضد ډير كلو نـــه

مبا رزه وکړه اود ګو ند دمشر تا به پـــــه ویا ړ لو غړ و باندی یی دخپلو با دارا نو په دستور دخپلو پرو با ګند و سخت ګوزارونه وکړل خود ګو ند دمشر تا به اود هغه دمبارزو غړ و اصو لیت اور ښنینو الی دخلکـــــو دد ښمنا نو دغه ټولی هلی ځلی له خاورو سره برابری کړی .او (دکار ګری طبقی مخکښی) دافغا نستان دخلق ددمو کراتیك ګوندمبارزی په ډګر کی بریا لی شو .

دداود دقدرت پهوخت کی دتاریخ ددغـــــه مستبد ټو لو تا لی ځټو هلی ځلی کو لــــی چی دا فغا نستان دخلقو دمو کراتیك ګوند داسی کمزوری کړی چی ژرلــه منځه پسی لاړشی خود خلکو ددغو دښمنا نو ټو لـــــی مذبو حا نه هلی ځلی دنا کامی سره مخا مخ شوی .ځکه چیزموږ ګوند دسا زمانیسیاسی او ایډ یالوژیکی مبارزو دویاړلی تاریـــــخ پداسی ټینګ بنسټ ولاړ ووچی ورا نول یـــی دظالما نو د ګوډ اګیو له لاسه وتلی کارو.

دداود دا پا لیسی چی دامپریالیـــزم او ارتجاع په پښو کی سر کیښ دی او ځـــان ورو سپاری زموږ ګوند دی تـــه اړ کـــړ چی په هیواد کی دخلقی انقلاب دبر یالیتوب په خاطر دښی تیا ری نیو لو له پاره نـــوی تاکتیکو نه غوره کړی . ددغه اصو لــــــی تاکتیك په برکت ګوند وکړای شول چـــی دخلکو دګټو ددفاع لهپاره بشپړ تیـــــاری ونیسی .

پداسی حال کی چی پدغه فر صت کی هم دګوند دښمنا نو دډ یرو دسیسو او حیلــــــو څخه کار واخیست مګروی نکړ ای شول چی زمونږ دویاړلی خلقی انقلاب « دثـور دستر انقلاب» دبر یالیتوب مخه نیسی دغه انقـــلاب دافغانستان دخلقو ددموکراتیـك ګــــو نــــد پهواسطه اوزماپه هـدایت اولار ښوو نـــه زمادپوه، فعال اوفدا کارشاګــــرد ملګـــر ی حفیظالله امین پهقوماندہ اوپه اردو کــــــی دخلقی قوماندانانو او منصبدارانو پهزړور توب او ویاړلو ســـــر ښنـدنـــــو بریالی شــــــوه

دثور دانقلاب په بری سره هم دګو نـــــد او خلقو په ضد دسیسی بندی نه شوی او د ګوند بهرنی او داخلی ټول دښمنان سره یو لاس شول او زمو نږ دګو ند اړ زمو نـــــبر دخلقی دولت په ضد یی په توطئو لاس پوری کړ چی دکا ر ګرو دوران جو ړونکی طبقـی او دنوی ډول ګو ند اصو لو ته دګو نـــــد دمشر تابه په وفاداری او رښتینوالی ســــره دغه ټو لی دسیسی را بر سیره او شنـډی شوی .زمونږ ګوند دخپل موجود یت پـــــه وخت کی دکا رګرد طبقی داصو لی مبا رزی ټولی بنی او ډولو نه په نظر کی نیو لی وی اودخپل هیواد دټولنی دشرایطـو سره سم یی لههغو څخه کار اخسته اولـه سازمانـــــی او ایډ یا لو ژیکی هر ډول انحرا فو نو سره یی کلکه مبا رزه وکړ ه په ټو لو اوضا عو او حا لاتو کی یی دنړی والی خپلو اکـــــی بخښو نکو جنبشو له تجر بو څخه استفادهاو د خپلی طبقا تی جګړی په لار کی یــــی دکار ګری طبقی دوران جوړ ونکی ایډ یالوژی دخپل کار اوعمل لار ښو و نکی کړه .

دهمد غه اصولی او پر له پسی از موییل شوی چلند دلاری په تعقیبو لو سره گو ند په نسبتا لنډ وخت کی وکړای شول چی دټول هیواد او دزیار ایستو نکو دگټو دربښتینی دفاع کوو نکی گوند په تو گه وا وړی او ستری مسألی او دهغو په لړ کی دسیاسی قدرت دتر لاسه کولو مسا له چی دهرانقلاب اسا سی مسا له ده په خپل خلاق اوابتکاری شکل حل کړی .او هغه انقلاب یی پخپل هیواد کی بر یا لیتو ب ته ور ساوه چی په خپله نو ع په نړی کی بی ساری او دافغانستان خاص څر گندوی دی .

په اوسنیو شرایطو کی دافغانستان دخلق دموکراتیك گوند دگران هیواد کار گرا نو بزگرانو او نو رو زیار ایستو نکو په نما یند گی سیا سی قدرت لاس ته وروړی دی اود فیو ډالی له شر مه ډك پا تی شوی میراث په ضد مبارزه کوی او دلوږی، نا روغی ، ناپوهی اود ټو لنیزو غیر عا دلانه اړ یکو په ضد پا خه کار ونه کوی اود کورنی ارنجاع او دامپریالیزم ددسیسو په ضد دافغا نستان دخلکو دهر اړ خیز ی جگړی لار ښو ونه کوی . دگو ند بنسټ با ید ددا سی جوړ ونکی رغو ونکی قوت په تو گه تکامل وکړی چی خپلی دغه درندی وظیفی دا فغا نستان دزړ ورو خلکو اود تر قی غو ښتونکی بشریت په وړاندی پهسرلوړی اوویاړ سره پای تهورسوی.

ملگرو !

په اوسنیو شرایطو کی هر چیری چی یا ست ستا سو دهر یوه وظیفی ډیری درندی اوسختی دی او دهغو سرته رسول له ویاړه ډك دی پهداسی حال کی چی دافغانستان دخلق دمو کراتیك گو ند دلو مړی کنگری دخوارـ لسمی کلمیزی له امله تا سو اود هیواد زړورو خلکو ته خپلی ښی مبا رکی وړا ندی کوم هیله مند یم دغه راتلو نکی لار ښو ونی دخپل انقلابی کار او مبا رزی سر مشق وگرزوی :

په هر ځای او هر دریځ کی چی یا ست پهعمل کیپه خپلو لوړو او عالی اخلا قو سره دافغا نستان دخلکو در ښتینو خدمتگارو په توگه ځا نونه ثابت کړی په انقلابی تواضع او کمینی له خلکو سره را شه در شه ولری اوله هغو څخه یی زده کړی او ددوی دسیا سی پو هی سطح لوړه کړی دوی دانقلابی شو را په فر مانو نو پوه کړی او دشخصی کور نیو او نورو ملحو ظا تو څخه پر ته دهغوی په عملی کولو کی په انقلا بی خلا قیت سره زیار وبا سی .

دسر ښندنی اوقربانی پهو خت کی په لومړی کتار او دامتیا زو نو دتر لاسه کولو پهوخت کی ورو ستی کتار کی او سی .

دخلکو او دهیواد والو رښتینی او تکړه زامن دخپل گوند صفونو را ننه باسی .

اودگوند صفوف له فاسدو، استفادهـ طلبو او دو خت له زامنو اوله هغو خا ینو عناصرو څخه چه خپلی خبری یی په مترقی پردوکی نغښتی دی پاك اوستره وساتی .

دگو ند یووالی ته ، دافغا نستان دخلکو یووالی نهاودهیواد دزیار ایستونکی دحقوقو

برابری ته دستر گو دکسیوپه شان په
در ناوی گوری . دهیواد دټو لو ملیتو نو د
زیار ایستو نکو تر مینځه که لوی وی که
واړه وی دبرابری او باور په پیدا کو لو
کی له هیڅ ډول سر ښند نی ځخه ځان ونه
ژغوری .

په لوړ ه او دهیواد پا لنی په روحیه اود
کا رگری انتر نا سیو نا لیزم اصو لو ته
په وفاداری سره دنړی والی سولی ، دکړ -
کیچو نو دکمو لو ، دنړی دهیواد ونو ټولو
خلکو سره ددوستی په لاره کی مبارزه وکړی.

په انقلابی ټینگار دکار گری طبقی ددوران
جوړ و نکی ایډ یالوژی په زده کړه کی
کوښښ وکړی او نور وته دهغی په ورښوولو
او خپرولو کی نه ستړی کیدونکی مبلغین
او سی . ځکه چی دغه اید یا لوژی دهغی
رڼا په څیر ده چی بر یالیتو ب ته در سیدو
سخته لاردانقلابی لارخلاصوونکی دپاره روښانوی
او په انسان کی دو روستی بری او دانقلابی
نیکمر غی ټینگه هیله پیدا کوی .

دثور ستر اوژغورند انقلاب زمو نږ
دهیواد دنجیبو خلکو هیلی او غو ښتنی زیاتی
کړی زمو نږ دټو لنی دتکا مل داو سنی
مرحلی دامکاناتو په چوکات کی دزیار -
ایستونکو د هیلو پوره کول غو ښتنه
کوی چی دتولیدی موسسو دتولید سطح
لوړه کړو او دپلان سره سم نوی تولیدی
قوی اوی په کار ودر وو . په هیواد کی
دتولید له تکامل څخه پرته دزیار ایستو-
نکو اقتصادی هیلی ترسره کیدی نشی دلوږی
ناپو هی او نارو غی ددیو له منگلو څخه
دا فغا نستا ن دپیا وړ و خلکو ژ غو رل یوازی
او یوازی دافغا نستان دخلق ددمو کرا تیک
گو ند په لار ښو ونه دتو لید پر له پسی
کار په ذریعه امکان لر لی شی .

گو ندی ملگری دکار گرا نو او کارمندانو
دزلمیا نو او ښځو دخلقی ساز ما نو نو غړی
او لنډه داچی دهیواد ټول شریف زیارایستو-
نکی خلك په انقلا بی نوی روحیه او په
علمی کړو ورسره کار وکړی چی هم
دصنعت او هم دکر نی په هره برخه کی له
ټو لو امکا نا تو څخه په کار اخستلو سره
دتولیدسطح لوړه کړی اودنوی پنځه کلن پلان
په تطبیق کی جدی او فعا له برخه واخلی.

دهیواد دنورو زیار ایستونکو په ملاتړ
دکارگری طبقی ددغه سیاسی قدرت دټینگولو
په لاره کی چی دافغانستان ددموکرتیك
جمهوری دولت په وجود کی یی تجسم کړیدی
دگران هیوادد ځمکی دتما میت څخه ددفاع
په لاره کی به هرډول شرایطو کی سرښندنی

او قر با نی ته تیار اوسی . اود لزوم پـــه وخت کی ددغه سپیڅلی وظیفی دپوره کولو په لاره کی حتیدخپلو وینو له تو یو لـــو څخه باك مه لری .

څکه چی دیو انقلا بی او په هیودا میـــن لپاره ستر ویاړ او شرف دادی چی دخلکـو دسیا سی قدرت دسا تلو او ددوی دلو یو ار ما نو نو دپوره کو لو په لاره کی ځان قر بان کړی زمو نږ دګو ند ویا ړ لـــو شـهیدانو دوطن پا لنی په همد غه عا لـــی احسا س سره ځا نو نه قربان کړل او خپل نه هیریدونکی اونه مړه کیدونکی نومونه یی دهیواد دخلقی ویاړلی مبارزی په تـاریـخ کی ثبت کړل .

ژوندی اوتلدیوی دافغانستانزړور خلـك!

تل دیوی دخلکو دژغورنی اونیکمرغیدلاری ددغو قهرمانانو یاد!

بریالی ، پیاوړی اومتحددی وی دافغانستان دخلق دموکراتیك ګوند !

رپاند دی و ی دافغانسان ددمو کراتیـك جمهوریت سور بیرغ!

# دګران افغانستان خلکو دانګر يز د استعمار پر ضد دوه اتيا کاله جګړه کړيده

دافغانستان دخلکو ددموکراتيك ګوند دلو مړی کا نګری غونډه دګو ند دمرکزی کميټی دعمومی منشی دانقلابی شورا رئيس اوصدراعظم نورمحمدتره کی وينا .

**دلو مړی کا نګری ګرانو اعضا و :**

دګران افغانستان خلکو دخپلی خپلواکی دپاره دا نګر يز داستعمار او امپر يا ليزم پر ضد خورا خو نړی او اوږدی جګړی کړيده ځکه چی افغا نستان خو را ښه طبيعی تو ليدی منا بع لری اوهم دهند وستان دخوندی ساتلو د پاره يو ښه وربلل کيده نواستعمار ګرانو لدی هيواد څخه لاس نه اخيست او تل به يی دا هيواد داسی سا تـه چی **خارجی او داخلی سياست به يی خپله** کنترو لاوه .

**دا** با يد ووايم چی **دګران افغا نستان** خلکو په حقيقت کی دا نګر يز دا ستعمار پر ضد پشپړه دوه اتيا کا له کلـه تـوده او کله سړی جګړه کړی ده که به يـی **فرنګيان دافغانستان لـه خاوری وايستل** نوهغوی به خپـل سياسی او ځينی مذهبی ګو ډاګيان ورته را دمخه کړل او دهغو په ذريعه به يی دا خلك دخپلی ګټی په خا طر اداره کول او دهغو په ذريعه به يی هغه رښتينی او صادق وطن پر سته افغا نانو له مينځه وړل چی دا نګر يزی استعمار پر ضد به يی خلك سره را ټو لول .

**په افغانستان کی دفرنګی استعمار دهلو ځلولوی غرض داؤچی له يوی خوا دا هيواد** دخپل تجا رتی مار کټ په توګه وسا تی او له بلی خوا خپله هندی مستعمره دهغه و خت دتزار و داحتما لی تجا وزا تو څخه وژ غوری په نو لس سوه او لسم کال کی داکتو بـر ستر **انقلاب بريالی شواو دهغه دبريالی توب** پلوشـی هـر لـوری تـه خپـر ی شو ی او بشر په تاريخ کی دلو مړی ځل دپا ره

دسر مایه داری له جهان څخه رو سیه بیله شوه او سوسیالیستی لاره یـی غوره کـړه دا ستره تاریخی پیښه پر سر مایه داری نظام بـاندی یوکلك گوزارؤ چی ټوله نـړی یـی وښووروله دانښوریده نه یـوازی کرار نه شو بلکـه دسرمایـه داری نظام څـه د یـو شمیر نو رو هیواد و جلاکید ل اودسوسیالیستی جهان تر څنگ دریدل نور هم پسی زیـات شو او اوس دا نظام «سوسیالستی» د بشـر په ژوندانه کـی داسـی فکتـور دی چی په جهانی رو غه کیږه زیږه پوری رولـوبـوی او دجها نی کار گری او ملی نجات بخښونکی جنبش دپاره یوه ټینگه او دبا ور وړ تکیه گا ه ده .

باید وویـل شی چـی د اکتوبر لـه انقلاب اودسوسیالیستی کمـپ له جو ړ یدو را ایسته دټول جهان کـارگرانو ، تراستعمار لاندی هیوادو داستقلال غو ښتنی هڅی دومره پیا وړی شوی‌چی سر مایه داری جهان یـی خو را ضعیفه کړ .

زمو نږ گران افغانستان چی د فر نگیا نو او تزار له خواد دوی تر مینځ دیوی دا سی پو لی په توگه سا تل شوی ووچی دهـغـه خلك یی نه پر یښودل چی خپل هیواد و دان کړی له دی ستر و بین المللی وا قعا تـو څخـه الهـام واخیست اوداخلی نسبتاښو، مادی او معنوی شرایط په استفاده سره یـــی په نولس سوه نولسم کال‌کی خپله خپلواکی اعلان کړه او داستعمار لاندی نـړی ته یو- داسی مثال شوچـی وروسته بیـا د یـــرو هیوادو له استعمار څخانو اوامپریالیستانـــو څخه دخپلو خپلواکیو داخیستلـــو دپاره لـه افغانستان څخه الهام اخیست .

لږه موده ورو سته دا نگریزی امپر یالیزم په دسیسه او د مسلمان نما فر نگیا نو پـــه مـــلا تـــړ او پـه هـــغـه و خت کـی د ا فغا نستا ن د لا ر ښوونکو دضعف په وجه پر نگیانو و کـړای شول چـی ددی هـیواد په چا رو کی دغیر مستقیم لاس په در لو دلو زمو نږ دهیواد اقتصادی او اجتما عـــی وده ځنډه کړی .

وروسته لدی چی دو همه نړیواله جگـړه د جر من دفا شیزم په ابتکار او هڅو نـــو شروع شو ه او په هغه کی پنځوس ملیونه انسـانـان له پښو وغـورځیـدل نـړ ی پـر دوو ټا کلو بر خوا ویا پر دوو څر گنـــدو کمپو نو وو یشله شوه ٠

یو کمـــپ دسیالیستـی هیـوادو دشوروی اتحاد په مشری او بل دپا نگوالی هیـــوادو دامر یکی په مشری یو دبل په مخ ودر یدل. دغه حا لت دامپر یالیزم دزوال او ضعـف پر وسه نوره گړ ندی کړه او تر او ســـه پوری تقر یبا اته څلو یښت تر استعمار لاندی هیوادو ځا نو نه له سیا سی لحا ظـــــــه دامپر یالیزم له منگو لو څخه خلاص کـړیدی او خپلو اکه لاریی غوره کړ یده خو ځکـه چی ددوی اقتصاد لږ وډیر لاهما غه شا نتـه دامپریالیستانو ترنفوذ لانـــدی دی نو ځکـه

دوی خپل ټول ملی قوتونه دخپلو هیوادو دنوری ودی په‌ښه توګه په‌کارنشی‌اچولای په بله ژبه دوی خو سیا سی خپلو اکسی لاس ته راوړه خود اقتصادی خپلوا کسی دتر لاسه کولو دپاره هم ښی هلی ځلسی کوی . که څه هم دسوسیالستی کمپ اوپانګوالی کمپ ترمنځ سره جګړه روانه ده خو ددی هیله شته چی دا سره جګړه‌پای ته ور سیږی او دواړه کمپو نه په روغه سره د ګډ ژوند لاره غوره کړی . البته ددوی داقتصادی او اجتما عی نظا مو ترمینځ به په سو له ایز ه توګه تر هغه وخته رقا بت دوام وکړی چی هر یو خپل ښه وا لی انسا نی ټو لنو ته وښی .

وروسته له دو همی نړ یوالی جګړی‌زمونږ په ګران هیواد کی هم داسی مادی اومعنوی تغییرات را غلل چی ددی هیواد پر اقتصادی او اجتما عی وضعی با ندی یی ښه اغیزه وکړه دفیو ډالیزم او دسر مایه داری دودی‌په مینځ کی طبقا تی مبارزه نسبتا شد یده شوه اوهم دزیار ایستونکو طبقو مبارزه ددی دواړو طبقو په مقابل کی دوام لری .

سو سیا لیستی کمپ دشو روی اتحاد په مشری زمو نږ هیواد ته دما لی او تخنیکی مر ستو بی غر ضه لاس راو غزو ه .

که څه هم ځینی کسان پدی مر ستو خپ شما له نه وه خو هغه مر ستی ددی ملت دزیار ایستو نکو په ګټه دو مره څر ګندی وی چی هیڅ‌ار دو لای نشو دامرستی نه یوازی دفیو ډا لی طبقی او دسر ما یه داری طبقی په ګټه نه وی بلکی دزیار ایستو نکو په نفع وی له بلی خوا په تیره له دیارلس سو ه پنځلسم کال را ایسته په افغا نستان کی اقتصادی وضع مخ په خرا بیدو وه .ددی یوعلت داؤ چی داسی هڅی کیدی چی افغا نستان دپا نګی والی دودی پر لاره روان کړی ملی پا نګه دتجا رتی شر کتو له لاری سره را غو نډ یده خوپه صنعتی برخه کی دهغه دو مره نه لګوله کیده پدی وخت کی یو شمیر قیا مونه ددولت پر ضد هم وشول لکه دزمینداور ، کټواز ، صافی اوددی خپلو سره لدی هم تولیدی قو تو نسبی وده کوله او له دی ودی سره خارجی مر ستو په تیره دشو روی اتحاد مر ستو ښه مر سته کو له .

دا تو لیدی قو تونه دتو لید له طر زسره په نسبی تضادکی راغلل اودهغه دتغییر دپاره داجتما عی تحول په لوری نسبی هلی ځلسی کید لی .

ددیارلس سوه پنځه ویشتم نه تردیارلس سوه اووه ویشتم کال پوری دملی‌حقوقوو په نا مه نهضت روان وو .

په دیار لس سوه اووه ویشتم کال کسی په مشخصه توګه دو ینی زلمیا نو حـزب تشکیل شو، همدا ډول څونور حـز بونه هم منځته راغلل پدی وخت کی دولت مجبور شو چی دخلکو دغو لو لو او آرا مو لـو دپاره نسبی آزادی ګا نی ومنی خو چی دی آزادی ګا نو ددوی طبقا تی منا فعو تـه

ځر ګند خطر شو نو هغه يې له مينځــــــه
يو ويل .

لکه چې وويل شول په تيره دشو روي‌اتحاد
اقتصادي او تخنيکي مرستودافغانستان‌دتوليدي
قوتونو په وده کې ښه اغيزه کوله اودفيوډالي
او پانګه والي طبقو په ګټه نه تما ميدی.

له دې‌پارلس سوه اووه ويشتم کال څخـــه
وروسته په سياسي او ادبي مقا لو او آثاروکي
د کار ګر و او بز ګرو طبقا تې ګټې‌منعکس
شوې او ددوی دسيا سي او اقتصادي قــدرت
دپاره دطبقا تي ګټو په اساس مبارزه پيـــل
شوه . دا مبا رزه دزيار ايستو نکو دطبقاتي
شعور په راو يښو لو کې ښه اغيزه وکـــړه
او ګړندي پرمخ تلله ځکه چې اقتصادي‌زيربنا
ورځ په ورځ وده کوله .

دولت مجبور شو چه ځنې داسې اصلا حات
رامنځته کـــړي چې دبورژوا طبقه دفيـوډالي
طبقې په حساب وده وکړي اوپدې تو ګـــه
ځان نسبتا دپوي متر قي طبقې په ازو متکـــې
کړي او خپلې ګټې وسا تي او دخلکو نـــا
آرامي کراره کړي .

دابايد ووايم چې پدې تيرو پنځلسو کلونو
کې تو ليدي قو تونو نوره وده کړه يـــــده
اوداوده دبورژوا طبقې په‌ګټـه نده او نــــه
دې طبقې دومره ډيره وده کړ يده چـــــې
اوس وکړ اې شي زمو نږ دهيواد مخکښــــه
طبقه شي .

اوس چې سلطنت له حکو مت څخه بيـــل
شو او نوې اسا سي قا نون خپور شو پدې
دې ته زمينه بشپړه ه مسا عده ده چې زمونږ
دهيوا دزيار ايستو نکي سره يو شـــــي‌او
استثمار ګر و طبقو ته اجازه ور نکړي چې
زمونږ خوږ هيواد دفيو ډالي استثمار لـــــه
کندې څخه دبور ژ وازي استثمار و کندې‌ته
ورغورزوي.

پدې تيرو دووکلونو کې زمونږ اوستاسې
حزبي مبارزو وکړای شوچې داستثمار ګرو
طبقو د حزبي تشکـــل مخـه ونيسي او اوس
پوازې زمونږ او ستا سې دکا رګرانو اوبزـ
ګرانو حزب دی چې په افغانستان کې پــــه
پوازنۍ تو ګه مبا رزه کوي .

خو بزو ملګرو !

پدې تيرو تقر يبا دوو کلو کې مو نـــږ
او تا سې ديو دبل په مفکورو ښه پوهيد لي
يو او خپله لاره په ځر ګند ډول را تـــــه
ښکاره ده . پدې پو هيږو چې دګو مو طبقو
دپاره دګو مو طبقو پر ضد مبارزه کـــــوو
او په افغا نستان کې داجتما عی اصا لت په
اسا س با ندې داسې ټو لنه جو ړ وو چــه
دزيار ايستو نکو په ګټه وي او فـــــردی
استثمار په کښې نه‌وي .

زمونږ ملګرو او تاسې ټو لو ته ځر ګنده
ده چې زمو نږ حزب دکار ګرانو دطبقې حزب
دی دا حزب به دکارګـرانو دلوړې او دوران
جو ړوونکی ايډيو يالوژی په اسا س مبا رزه
وکړي او په هغه کې به دزيار ايستو نکو
خـورا پوه اوغښتلي زامن اولونې را ټـــول
کړي .

زمونږ حزب به د جهاني کارګري احزابو
له ډلې څخه وي او خپله بين المللي وروري
به‌له هغو سره په‌ټينګه ساتو.

ـمونږ او تاسې پدې بشپړ باور لــروچې

**دافغانستان زیار ایستونکي خلکو په** ګټه پراخه ګامونه او چت کړي په افغا نستان کې دکار ګرانو حزب چې دټولو زیار ایستو نکو مادي او معنوي حقوق ته مدافعه کړي یوه ستره نه هیریدونکې حادثه ده، **کارګران اونور زیار ایستونکي** به ژر پد غه ټکي پوه شي چې ددوی دنجات او ژغورنې د پاره بله هیڅ لار **نشته بې له** دې چې یو غښتلی او با دسپلینه حزب جوړ کړي او دهغه په وسیله خپلو هر اړخیزو دښمنانو ته ماتې ورکړي .

خوږو ملګرو !

زموږ دګوند بنسټ دټولو لنې پر هغو **طبقو ایښودل شویدی چې هغه په افغانستان** **کې ټول مادي اومعنوي شتمنې تولیدوي خودا** ټوله شتمني مفت خواره او استثمار ګرطبقات زبیښي که زموږ ګوند وکړای شي چې **زیار ایستونکي اودهغو منورین پر ځان** را ټول کړي او هغوی ته دکا ر ګري طبقې مفکوره ورز ده کړي او دهمد ې مفکو رې په اسا س یې سره یو مو ټی کړي نو یقین دی چې زموږ ګران افغانستا ن به له هر ډول خوار یو او عذابو **څخه** وژغورل شي .

په تیرو تقر یبا دوو کلو کې مو نږ ډیر **څه زده کړه اوپه راتلو نکي وخت کې به** نور هم زده کړو زمونږ **دزده کړې دالهام** منبع په خپله خلك او **دهغو اقتصادي اواجتماعي** ستونزې دي مونږ ته **دخپلو خلکو بې ویني** **مخونه، وږي نسونه، پړانګي ګالۍ** بې‌کورې، **ناروغي، چاودي پښې تر هر** جانبه در س را کوي چې ددوی دپاره **څه** وکړو او څر نګه یې وکړو او **ددوی غوښتنې** **څه دي ؟**

زه ښه پوره یقین لرم چې یوه ورځ **نه** یوه ورځ به **داګو** ند دافغانستان خلکو ته خورا **ستر په زړه پوري کارونه وکړي، اوس زه** تا سو در نو ملګرو وته **دګو** ند لنډ مرام، لنډه اسا سنا مه او ددغه ګو ند نوم « **دافغانستان دخلکو دموکراتیك ګوند** » وړاندې کوم .

**هیله ده چې کانګره به دغه مطلب په‌ښه** توګه وڅیړي . او لازم تصمیمو نه ونیسي.

**په پای کې وایم ددې ګوند رونې څراغ** دخلکو **له خوا** ولګو ل شو هر **څوك چې** **دهغه** دڅلو له پاره ور پو کړي **دهغه** ږیره به وسوزول شي اودتل **له‌پاره بهمختوري وي.**

# دبشریت اود نړی دماشوما نود ټولو بدبختیواصلی مسئول اورښتینی علتونه امپریالیزم او جګړه ماروخواکونه دی

**دماشوم دنړیوال کال په مناسبت د ګران‌مشر دانقلابی شورا رئیس او صد راعظم نور محمد تره‌کی پیغام. ۵۷/۱۰/۲۱**

دبشری ټو لنی او سنی نسل په یو داسی انقلا بی ، علمی او تخنیکی عصر کی ژوند کوی چی دبشر یت دفر د ، فرد له پاره د هو سا او نیکمر غه ژوند دمنځته راتلو له پاره ټول عینی شرایط برابر دی خو له بده مرغه بیو زلی ، ناروغی ، دخو راك نشتوالی او د فرهنګی ژوندانه د منلو نه وړ سطحه او په لسګونو نوری ګډوډی په ټولی نړی او په تیره بیا په آسیا ، افریقااو لاتینی امر یکا کی دملیو نو نو انسا نا نوپه برخه شوی دی که چیری دبی ګناه کوچنیانوپه ژو ندانه کی چی دانسا نی ټو لنی سبانی نسل دی دد غو ټو لو ربړ ونو او بیر ته پا تی والی انعکا س ته کتنه وشی مو نږ ته ډیره غم لړلی او لړزوونکی صحنه تر ستر ګو کوی . یو نیسف درسمی خپرونو له مخی دیا رلس ملیو نه کو چنیا ن او شیدی خو ړونکی ما شو مان پنځه کلنی‌ته له رسید و څخه دمخه په نړی کی له منځه ځی . په خوا شینی سره باید ووایو چی له دوی‌څخه یوولس ملیو نه‌یی دآسیا ، افریقا، او لاتینی امریکا په بی وزلو هیواد و پوری‌اړه لری یوازی زمو ږ په رنځید لی هیواد کی‌په سلو کی پنځو س ما شو مان پنځه کلنی ته له رسید و څخه دمخه دداسی علتو نو له مخی له منځه ځی چی دمخنیوی وړ دی.

دبشر ی ټولنی ددغه خوا شینی کوو نکی حا لت رښتیا نی مسول څوك دی ؟ او کوم دښمن ځواکونه ددی خنډ کیږی چی دنړی دتننی او سبا نی نسل دژوندانه دښه والی با لقو ه امکان په کارو اچول شی.

هغه کسان چی دځوورو ستیو لسیز وتاریخی

ستری پیښی او جر یا نونه یی لید لی دی‌او قضاوت یی دعینی واقعیتو نو له مخی دی‌نشی کړ لی له دغه رو ښنا نه حقیقت څخه انکار وکړی چی په اصل کی رښتینی مســــوول امپر یا لیزم او جګړه مار څوا کونه دی چی دهغوی حر صنا کی ګټی دنړی دزیار کښنانو دمادی او معنوی شتمنیو ډ لو ټولو او پـــه ننني تبا ه کوونکی وسلی سره دجګړی‌او وژلو له لاری تامینیږی نو لس سوه نهه ـ او یا وم کال چی په نړی کی دملګرو ملتو دسازمان په ابتکار دما شوم دنړ یوال کال‌په تو ګه نما نځل کیږی ستر مقصد یی دنړی دمعصو مو ما شو مانو در دوونکی حا لـــت ته دبشر ی ټولنی دپام را ګر زول دی .

دغه نما نځل په بی محتوی وی . کـــه چیری دنړی دعامه افکار وپام دنړی دماشوـ مانو دخواشینی کوونکی ژوند اصلی علتونـو ته وانه ړول شی دنړی دبیوزلو ماشـومانـو ددردونکی ژوند ، دستونـزو حل ، دنړیوالی سولی په لارکـی لـــه مبـارزی، د و سلـی دزور ازمایلو له کمښت ، ددیتانـت دپـرا ـ ختیا او دامپر یالیزم او هغو جګړه مـــارو څـواکونو په خـلاف لـه مبـارزی څخه پرتـه چی دور انکاری اولو تـــماری تخم شنـدی امکان‌نه لری مونږ په خپل هیواد کی تـــل رنځید لی میندی لید لی دی چی له زیا تـــو ستونزو سره سره چی زغملی یی‌دی اوزیات ما شو مان یی زیږ ولی له دوو ما شوما نو څخه زیات ژوندی ندی پاتی شوی زمونږ یـو زیات شمیر ماشومان دنـــیکمړ ی او غـیر صحی خوراك له امله له خپلی سا لمی ودی څخه پاتی شوی دی او دډول ډول ناروغیو له مخی معیوب او دټو لنی په اوږو بار شوی. یاد کو رنی دنا سم چا پیریال په واسطه پـــه اخلا قی بی لار یو سیخ شوی دی پـــــه نړی کی به ډیر لږ هیواد ونه چی دهغو ی ما شو مان زمونږ د ما شو مانو په شـــــان په بیو زلی ، نارو غی او دژوند په پا تـــی شـرا یطو کی محکوم وی زمو نږ د هیوادپه زر ګو نو زیار کښی کور نی ، داقتصادی بیو زلی له‌امله ښو ونځی ته دخپلو ما شومانو دلیږلو توان نه لری او په زرګونوری کورنی دو خوره اومه مره ژوند دتا مین په مقصـد دخپلو ما شو مانو له کار څخه دیوه ناڅیز عا ید تر لاسه کولو له پاره خپل داستعداد لرو نکی ما شو مان په نیما یی لاره‌کـــــی له زده کړی او ښو ونځی څخه بی بر خـی کړی دی، دفیوډالی واکمنی ظالمانـه اړیکـو د نادر داود مستبد ورژیمو نو بی پروا یـــی زمونږ په هیواد کی میند ی او ماشو مان‌پدغه رنځید لی اوکړ ید لی ژوند محکوم کړی‌وو دا فغا نستان دمو کراتیك جمهوریت چی دثور دستر او ژغور نده انقلاب دلو ړ و هدفو نو په رڼا کی یی زمو نږ دګران هیوادافغانستان دخلکو دپاره دیوه پتمن ژوند برابرول یـــی خپل ورځنـی دستور ګرزولی، نه‌شی کو لای چی دهیواد دزرونو زرونو تنو محرو مو ماشوـ ما نو له ګړ ود ژوند سره بی علا قی پا تی شی زمونږ په مخکی دغه انسا نی او پاك هدف پروت دی چی یومداسی غوړیدلی‌ټولـنه

جوړه کړو ۰ چي په هغې کې له فرد نه دفرد
استثمار له منځه لاړ شي او زمونږ دټو لنی
ټول افراد وروګلوی سره پــه خپـل ګـډه
کو رکې په نيکمر غی سره ژوند وکړي باور
دی چي زمو نږ ننني ما شو مان به ديوی
داسی ټو لنی راتلو نکی نارينه او ښځې وی
نو د هغو سما لمی روز نی ته پا ملر نــه
دهيواد راتلو نکی ټو لنی انسان روزنی تـــه
ارز ښت ورکول دی يوه داسی ټولنه چي په
هغې کې به يواز نی ټو لنيز قشر زمو نــږ
دما شو مانو دامتيا ز خا وندوی پوره باورلرو
چي زمو نږ خلقی ګو ند او دولت بـــــه
د هيواد د شريفو خلکو او دمترقي بشريـــت
په همکاری دنادر ـداود د فا سد ورژيمو نو
دشرم» ډك ميــراث زمونـږ دهيواد دزيـــار ـ
کښو دما شو مانو له در ديدلی ژوند څخـــه
به‌هکـــنه چټکـــتيا سره لـری کـــړی او
ماشومان به بيا دروغتيـــا او خـــوشحالـــی
خا وندان کړی او دابه زمونږ ماشو ما نوته
دژور دستر انقلاب ډير ښه سو غات وی په
دا سی حال کی چي دما شوم نړ يوال کال
پرانيزم دپر مختګ غو ښتو نکی بشر يت،
دټو لو مرسته ور کو ونکو نړ يوالی موسو
پرمختيايی هيـــوادونو دمحرو مو ماشومانـــو
حـــالت تـــه پـــه تيـــره بـــيادخپل ګـــران‌هيواد
دمظلومو مـــاشومانو حالت ته‌چي دفـــيوډالـــی
بير ته پا تيوالی ميراث دی او ددوی پـــه
ژوند کی سيوری اچو لی کلکله پا ملر نـــه
غواړم له ټولو ګو ندی او خلقی سماز مانونو،
دو لتی مسو ولو مقا ما تو او دافغانستان لــه
قهر مانو خلکو څخه زما هيله داده چي پـــه
هيواد کی دما شو مانو پرابلم دهيواد دټولنيز
ژوند ديوی مهمی مسا لی په تو ګه وګڼـــی
او دما شو مانو درو غتيا او سلا متيا اوسالمی
رو زنی دتا مين په برخه کی له هيڅ ډول
زيار او هڅه ډډه ونه کړی .

# زموږ په نوي جوړ شوي ټولنه کي به یوه کوچنۍ لږکۍ له ډېره ډېر بېرته او بېسواده اکثریت به د لوږې له زوره نه مري

زموږ گران او قهرمان مشر دافغانستان دخلکو دد موکراتیك گوند دمرکزي کمیټې عمومي منشي دانقلابي شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره کي د بگرام دگارنیزیون دقوماندانۍ یو شمیر افسران او سرباز ان دخلکو په کور کي حضور ته ومنل اودهغوی سره یې په یوه ډېره تودې اود صمیمیت نه ډکې فضا کی خبری وکړې او دوی ته په خطاب کی وي ویل .

۲۵ر۱۰ر۵۷

ډېر ما گرانو خلقي افسرانو !

ستړی مه شی ، ښه را غلاست !

رښتیا درته وایم په دی باندی من ، من غوښه اخلم چی زه له خپلو افسرانو سره په هغه ما نۍ کی گورم چی یو وخت دظلم او استبداد ما نۍ وه . او اوس دخلکو کور دی .

دظلم او استبداد مرکز دخلکو په کور باندی اوړول څه ساده اوآسانه کارنه ؤاودا رښتیا خبره ده چی دافغانستان خلکو په زرها و کلو مبارزه وکړه چی دا داستبداد مانۍ دخلکو په کور باندی واړوی . مگر دازموږ او تا سو او زموږ دگو ند خو شبختي او دافغانستان داوسنۍ نسل خو شبختي ده چی داوظیفه او دارسالت دوی تر سره کړ البته دا ستر کار دگو ند په رهبری اودافغانستان دخلکو په بالقوه غو ښتنه باندی سر ته ور سید .

موږ ددی پیاوړی گو ند څوار لسمه کالیزه څو ورځی مخکی ونمانځله او دافغا نستان خلك او تا سی خلقي افسران او دگو ند نور غړی په دی باندی باید وویاړی چی ددی گو ند څو ار لسمه کالیز ه یې و نما نځله ځکه چی همدی گو ند دافغانستان په تاریخ کی ډېر ستر رول لو بو لی دی مگر گو ند هم داسی په آسا نه منځ ته نه دی را غلی دا داسی نه و چی دافغانستان خلك په یوه شپه یا په یوه ورځ له خو به را



دافغانستان دخلکوستر ښوونکی ، دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمدتره‌کی هغه‌وخت چی د افغانستان دمسلحو قواؤ یوشمیرخلقی افسران یی حضـــورته منلی او خبری ورسره کوی .

پا ځیدل او ویل یې چې دا سې ګو نــــد
په جوړ کړو، بلکې حقیقت دادی چې دی
مفکوری تکامل وکړله کانګری نه مخکـې
حتی له کا نګری نه پنځلس کاله ړ ومبــې
دکا نګری دجو ړ ولو دپاره دافغانستاندخلکو
صاد قو زامنو هلی ځلی کولی چې دغســـې
کانګره او دغسی ګـوند جوړ کـړی زمـا
مقصد دادی چې دا وړیا په لاس نه دیراغلی
داد یوی ورځی کارنه و ، داد کلو کلــو
کار و او حتی دزر ګو نو کلو را هیسیدا
مبا رزه روانه ده .

دا ګو ند تقر یبا دوه کاله تر کا نګری
ړومبی منځ تهراغی او خپله لـو مړیځیرهیی
دافغـانستان پـه ټـولنـه کی ښکـاره کـړه
او داسی هلی ځلی یې وکړی چې ګو نــد
وا قعا یو متشکل او یوه مشخصه بڼـــه
ځانته غوره کړی خو په دی لار کی هــــم
ډیر خنډ ونه وو . ارتجا ع ، امپر یالیستانو،
استثمار ګرو طبقا تو ، ددی ګو ند دجوړیدو
په لار کی هر اړ خیز خنډ ونه اچول او نه
یې پر ینبودل چې دا حزب منځ ته را شــی
مګر دافغا نستان دزیار ایستو نکو زا منوپه
دی باندی اصرار وکړ چې باید دا ګو نــد
جو ړ شی . دوی ددی ګوند دنا کا مو لو
دپاره نور ګو ندو نه رامنځ ته کړل دمثال
په ډول سمتی ګوند و نه یې را منځ تهکړل
او په همدی ډول یې غوښتل چې دنــور و
استثمار ګرو طبقو ګو ندو نه را منځ تـــه
کړی اما دخلقی ګو ند دمبا رزی په اثــر
دټو لو له ځیرو ځخه نقا بو به او چت شول

او هغه ځیری یې ځر ګند ی شوی چــــی
دافغا نستان دخلکو به تری کر که کیده
ځکه هر څوك چې به مخکی شول دهغه خوله
به دافغا نستان دخلکو په وینو لړ لی وهاو
دهغو غوښی بهیې پهخوله کی و ی ، دوی
داسی څوك نه ووچی دافغانستان خلك هغوی
ته هر کلی ووایی او په هغه اعتما دو کړی
نو ځکه زمو نږ ګو ند بریا لی شو .

او زمو ږ دغه دګو ند داعضا وو در هبری
ځیره چې خلکو ولید له واقعا چې موږ نــه
د چا غو ښی خوړ لی وی نه وینی . نو موږ
ته به یې په ښه سترګه کتل او زمـــوږ
ګو ند وکړی شو ل چې نور ټول ګو ندونه
افشا ،رسوا او ناکام کړی او دشا هـــی
رژیم هغه ټو لی دسیسی چې دزیار ایستونکو
خلکو دګو ند دجو ړ ولو په لاره کی به یې
جـوړولی له منځـه یوسی اودایـــوازینی
ګو ند شو چې په افغا نستان کی یې واقعا
یوازنی توګه مبـارزه کوله ورو ستـه له هغـه
دګو ند غړو چې موږ په مختلفو ملیتو کـی
تنظیم کړی وو داسی فکر وکړ چې هغـــه
با ید دیو مشخص حزب په مسو ولیت او
رهبر ی سره منځ ته راشی او هغه باید دیوی
متشکلی منظمی اصولی کــا نګـری پــه
نتیجه کی وی نو موږ د ۱۹۶۵ کال دجنوری
په لو مړی نیټه دا کا نګره جوړه کړهددی
کا نګری دایجا د پاره هم لږ تر لږه بشپړ
دوه کاله مبارزه وشوهچی بایدداکانګره منځ
ته راشی داکا نګره له ښه مرغه منځ تــــه
راغله او هغی په ډیـر بریالیتـوب ســره

دا سی لاری او لیکی وایستلی او دخلکو لپاره یی گوند جوړ کړ، تشکل یی ورکړ چی هغه دافغا نستان په سر نو شت کی دا سی رول ولو باوه لکه چی زه اوس په خپلو ستر گو دلته تا سو افسران وینم اوله تاسو سره ناست یم او په دی باره کی خبری کو ونو تا سو دگو ند غړی نو ر وطنپرستان او دافغانستان ټول خلك حق لری چی دداسی گو ند څو ار لسمه کا لیزه په داسی برم ونما نځی لکه چی ونما نځله شوه اوموږ یقین لرو چی ددی گوند په رهبری به دافغا نستان خلك نور هغه ښیگنی تر لاسه کړی چه په قطعی ډول دافغا نستان په تاریخ کی ساری نلر ی‌او نه یی در لود.

مو ږ یو ځل بیا ټولو خلکو ته اعلان کو وچی گو ند دلته دخلکودښیگڼودتامینولو دپاره یوازی یوه وسیله اویو آگاه ارگان دی یو داسی مغز دی چی دخلکو ټول‌عملیات او ددوی غوښتنی هم آهنگ او یوځای کوی او رهبری کوی یی چی داهم دخلکو په گټه دی . او دا یو غا یی مقصد نه و چی موږ تر لاسه کړ بلکی زموږ داو سیله ؤ یره‌موثره ده لکه چی په یوه مر حله کی ثا بته شوه چی انقلاب یی را ووست په بله مر حله کی له استثمار نه خا لی ټو لنه جو ړوی پدی مر حله کی به لاخپل بر یا لیتو ب اوموثریت وښیی لکه زموږ څینو نور و ملگرو چی ویلی دی دگو ند خلا قیت او دگو ند ښه تدبیرپه دی کی وو چه څرنگه سمه لار پیدا کړی او هغه اوږده لار چی کلو نه یی غو ښتل هغه را لنډه کړی او دوی اجتماعی دوری یعنی سیاسی دوری شا ته پریږدی یعنی فیو ډالیزم او حتی سر مایه داری‌دوری شا ته وغور ځوی او مستقیما دزیار ایستونکو خلکو په گټو باندی داسی جامعه جوړه کړی چی هغه زموږ او تاسو آرزو ده په هغی کی به نه یوازی دفرد له خوا دفرد استثمار نه وی بلکی جامعه به هراړ خیزه وده هم وکړی .

گو ند دیره ښه لاره ومو ندله چی چاته مرا جعه وکړی ؟

دافغا نستان خلك تر ډیر سخت فشاراو ستم لاندی وو. دوی نه یوازی استثماریدل بلکی دوی تحقیر یدل ، دوی ته په سپکه سترگه کتل کیدل ، دوی دامپریالیستانو او نورو خارجی ممالکو تر مصالحو قربانیدل او دوی واقعا ډیر خوار او زهیر وو‌دوی مخونه ریښتیا هم بی وینو وو پښی یی چا ودی وی .

او هیڅ وسیله یی نه درلوده چی ځانونوته نجات‌ور کړی خو زموږ گو ند دافغا نستان دخلکو دهغه قشر هغو زا منو ته مراجعه وکړه او هغه یی تر بیه کړل چی واقعا هغوی هم دزیار ایستو نکو زامن ووا‌وهم یی دطبقا تی مبارزی مفکوره ښه اخیستله او هم توره ورسره وه، زموږ دافغانستان خلکو ته‌سمه لارورو ښو دله کلا سیکه لاره داوه چی موږ به اول دافغا نستان په خلکو کی کار گران

ډیروول، بیا بەموهغوی تەچی ډیرشوی وو توره په لاس ور کوله ، موږدلته لنډه دخلکو زامن پیدا کړل چی تیاره توره ورسره وه نو زموږ ګو ند دوی تر روز نی لاندی ونیول دوی ته یی مفکوره ورکړه دوی ته یی وویل چی نور ار دو باید خلقی وی، اردو با ید هغه ارتجا عی ار دونه وی چی خپل مور اوپلار دظالمانو د رضایت دپاره دیوی رتبی یاد یوه منصب دپاره ووژ نی او دهغو پر ګیده باندی پښی کیږ دی مو ږ نور داسی اردو نه شو منلی .

له دی امله زمو ږ ګو ند ، اردو خلقی کړ په هغه کی خلقی عنا صر پیدا شول بیا هغوی نور پیدا کړل نو داسی ار دو منځ ته راغی چی هغه خلقی وو ،نه یوازی دظالما نو دمصا لحو دپاره استعما ل نشو ، بلکی له ګوند سره یی دیوه مغــز،لاس او پښو په تو ګه کار وکړ او دافغانستان خلکو ته موږ ددغه تور یالی پرو لتاریا په وسیله نجات ور کړ .

البته لکه چی څو څو ځله دمخه هم ویلی دی زموږ انقلاب دثور په اوومه ختم نه شو بلکی دثور په اوومه نیته دبل انقلاب دپاره زموږ هلی ځلی شروع شو ی او باید پیل شوی وای موږ بله ډیره ستره او له سر ګردانی نه ډکه مرحله په مخکی لرو چی هغه دجا معی اقتصادی وده او دلته له فردی استثمار ځخه خالی ټو لنی جوړول دی‌او انقلاب لکه چی ومی ویل لادوام لری او تر هغه به دوام ولری چی موږ دخلکو په ګټه خپل عا لی مقا صد تر لاسه کړو و اوزه یقین لرم چی موږ دغو مقصد ونو ته رسید لی‌شو.

داد او سنی زیار ایستو نکی نسل ستره وظیفه ده چی خپل انقلاب چی ددوی زامنو په توره ددوی دزامنو په تد بیر ، ددوی‌دزامنو په هلو ځلو بریالی شویدی وساتی دانسل وظیفه او تاریخی رسا لت لری چی له خپل انقلاب نه هم دفاع وکړی اوهم یی خو ندی کړی زه پەدی باندی یقین لرم چی دوی همداسی کوی ځکه چی زمو ږدګو نداوزموږ دخلکو ګټی اوس بالکل مشتر کی دی موږ ټول دیوه هدف دپاره حرکت کوو . نو ځکه زه یقین لرم چی اوسنی نسل ددی انقلاب دفاع کوی البته دوی‌به هم دفاع کوی مګر ددوی په مخ کــی به زموږ او تاسو ګوند روان وی او خپل وسله وال پوځ به یی په لاس کی نیو لی وی او ددی ټو لنی دجوړولو دپاره پەمخ پەوړاندی ځی.

نو موږ ددغو وظیفو دسر ته رسو لو دپاره هراړ خیز کو ښښو نه کوو خپل پو ځ چی توره یی په لاس کی ده له هر اړخ ځخه سمبا لو و موږ دخپل پوځ اقتدار او محاربوی قوت ته وده ور کوو ځکه چی پوځ دانقلاب اوله در جه سا تند وی دی .البته او لەدرجه سا تندوی په خپله خلك دی مګر پوځ چی دخلکو زامن دی زموږ دګو ند یوه نه بیلیدونکی برخه ده ګوند ددوی‌دی،دوی دګوند دی ځکه په دی مرحله کی دانقلاب د ساتلو دپاره زموږ وظیفی ډیری درنی دی .

زه یقین لرم چی تا سی ځوانان دی ته ملتفت یا ست او داپه ښه تو ګه احسا سوی چی څومره درنی وظیفی او سر ښند نــی

په مخ کی لری او داسر بشند نی هـــم دافغا نستان دخلکو دنیکمر غی دپاره دی او یو ځل بیا وایم چی دافراد و یا فرد یاد څو کورنیو ، دهغوی داستراحت او دهغوی دبهـ ای توب او دهغوی دمز و چړ چو د پاره نـه دی نو ځکه زه تا سو ته مبا رکی وا یم چی تا سو واقعا دانقلاب یوه مر حله او یــوه لاره ووهله ا و اوس په دو همه مر حلــه کی هم تا سو گام اخلی او گو ندیی اخلی. گو ند مخ په وړا ندی ځی خلك او زیـار ایستونکی ورپسی دی تاسو هم دهغـو پـه اړخ کی روان یا ست چی خپل انقلاب وساتی دټولنی دجوړولو دپاره لاری آواری کـړی نو ستاسی هغو سر بشندنو او زمونـږ هغـه زیار یا زموږ دټولو زیار او گډ وسر بشندنو دخلکو په گټه نتیجه ورکړه چی اوس یـی مو ږ او تا سو دسرپه ستر گو گورو هغه داچی دادی شپږم لمبر ، اووم لمبر او اتـم لمبر فر مانو نه صادر شول او هر فرمان په خپل وخت اوپه‌خپله مرحله‌کی په‌خپل‌وارسره دخلکو دنیکمر غی دپاره بنه گټور ثا بت شو دادی او س داتم لمبر فرمان په نتیجه کـی دری ځلور ورځی کیږی چی دځمکوویش‌شروع شو یدی .

ستا سو حزب تقر یبا څوار لس کالـه مخکی خلکو ته وعده ور کړی وه چی کلـه قدرت ونیسو ځمکی به سره ویشو هغوکسانو ته به ډیر حق ور کوو چی هغوی په ځمکـه باندی کار کوی یعنی موږ باید دځمکـــو دمو کراتیك ویش ددوی په گټو سر تـــه ور سـوو او زمو نږ او ستا سو گو نـــد او نور ټول وطنپرستان پدی خو شحا لـــه دی چی مو ږ خپل دی مقصد ته ور سیدواو نه یوازی خپل دی مقصد ته ورسیدو بلکی دافغا نستان خلك مو پدی قانع کړل چـی واقعا هغه خلقی گوند دی .

هر څه چی خلکو ته وایی هغسی کوی‌او دخلکو په گټه باندی څر خیږی نوموږ ځکه په‌دی باندی ویاړوچی زموږ دځمکوویش دادی شرو ع شو . اوس په خپله په بز گرانـو پوری اړه لری چی څر نگه سم ویش وشی ځکه چی ددوی په گټو مو ږ یوازی داسی نه‌دی کړی ،چی هلته زمو ږ ما مور ور شی او ووایی چی دایی ستا ، او دایی ستا ، او دا یی ستا ، مو ږ وایو څر نگه یی وویشو، دا چا ته ور کړ و، کوم مستحق دی ،څرنگه دی ، دوی راسره‌دی هر څه چی دوی وایی په مشوره سره مځکی هغه چا ته ورکوو. چـــی هغه واقعا مستحق دی او پـــه هغـی با ندی کار کوی .

دافغانستان په تولیداتو کی دا ډیر ستـــر او بیساری گام دی که څه هم بنایی موږ په لو مړی سر کی له مشکلا تو سره مخا مخ شو یوڅـه کانی اوخـلی به څـو ك مـات کړی اویابه یوڅـه ضرروویـنو خـو لـــه څوکا لو وروسته به تاسو ووینی چـــــی افغا نستان دغذائی مواد وله لحا ظ بالکل په پښوودر یږی او بیا به دلته لوږه ، قحطـی، احتکار او نور شیان بیخی نه وی او کمبلـه به یی ټو له شی نور به خلك له دی پلوه

هیڅ ډول ربړ ونه ګالي.

البته زموږ دځمکو ویش داسې ساده کار هم ندی ځمکې چې وویشل شي بزګر کم بغله دي ښه وسایل نلري چې دا ځمکه ښه ودانه کړي او پدې کې ښه کار وکړي نو موږ دوی ته مشوره ور کوو او دا مشوره مو ور کړ یده چې دوی دې په کوپراتیفونو کې سره راټول شي او کوپراتیفونه دې جوړ کړي، کوپراتیف یوازنۍ لاره ده چې بزګران قدرت پیدا کوي . چې دوی خپلې ځمکې ښې وکري اوښه ډیر حاصل ځینې واخلي ځکه دولت یو لړ پلانونه لري چې خپلو بزګرانو ته تراکتورونه او نور وسایل ورکړي . سره ، اوبه، تخمونه ور کړي نوتر هغو پورې چې کوپراتیفونه نه وي جوړ- شوي دوی دچا لپاره‌او چا ته یې ور کړي هر یوه بزګر ته یې جلاجلا نشي ور کولی بایددوی په کوپراتیف کې له همدې امله سره را ټول شي او خپلې ځمکې په کوپراتیفي تو ګه وکري او موږ په خپله پروژه کې کامیاب کړي .

موږ کوپراتیف ددې دپاره غواړو چې موږ له خپلو بزګرانو سره ښې مرستې وکړ ای شو دافغانستان دولت او زموږ او ستاسې آینده ټولنه نور غوېږي، خر، اس، او ښ په زراعت کې نشي منلی ځکه چې ددوی تولیدي قوت ډیر کم دی داد تولیداتو یوه ضعیفه وسیله ده موږ غواړو چې ددې په ځای تراکتور و نه ، کمپاینونه اوښه نور زراعتي وسایل راولو داچې موږ روا لونو باید کوپراتیفونه حتما منځ ته را شي چې موږ د هغو په ذریعه ده خلکو ، له بزګرانو سره مرسته وکړو نو ځکه دوی ته زما اصرار دادی چې باید دکوپراتیفونو په جوړولو کې هلې ځلې وکړي زه یقین لرم چې دوی به ورورو په دې وپوهیږي چې‌دولت ټول وسایل ددوی دښیګڼې اوددوی دژوندسویې دلوړولو لپاره ځای پر ځای کوي ( دوی به دکار اصلی ځای ونیسي اودوی ) دنیکمرغۍ دپاره په کار اچوي دوی په خپله قانع شي او کوپراتیفونه به هم جوړ کړي اوهم به‌یې بر یالی کړي .

داخو زراعتي اړخ ؤ موږ پرصنعتي پروژو باندې هم ډیر اصرار کوو صنا عتي پروژې اوس تر لاس لاندې دي موږ دپنځه کلن پلان په اسا س دډ یر وصنعتي پروژو ودانول او را منځته کول غواړو او ددغو پروژو په نتیجه کې به دخلکو دژوند معیار ډیر اوچت شي .

دمثال په ډول ستا سو ددولت ډیر اصرار پرتیلو، مسو، سرې اودبندونو اوو یالو په جوړولو او دشاړو ځمکو پرودانو - لودې اوتردې ټولو مهم دافغانستان په برقي کولو باندې اصرار لرو چې باید افغا نستان نور لکه د پخوا په شان په توره تیاره کې ژوندونه کړي بلکې موږ یې باید په بر ښنا رڼا کړو .

موږ داپروژې دخپل پنځه‌کلن پلان له‌مخې جوړوو ځکه خوک چې دغسې ټولنه جوړوي له استثمار نه خالي ټو لنه جوړوي هغه باید دپلا نیزه شوې اقتصاد له مخې

حر کت وکړی نو زمونږ حرکت هم پدیاساس
ولاړدی او زمونږ هیله له ټول خلکو ، لـه
کار ګرانو ، له نور و زیار ایستو نکو څخه
داده چی په دی پروژو کی ښه بر خه واخلی
او له دولت سره په دی باره کی ډیره مرسته
وکړی زه یقین لرم چی دوی یی کوی ځکـه
مو ږ کو ښښ کوو چی نوی ټو لنه با یـد
داسی جوړه شی چیپه هغی کی یوډیرکوچنی
اقلیت له ډیر مړښت ونه چوی او ډیر ستر
اکثریت د لوږی ، بر بنډو والی او خواری
ربړونه ګالی زمونږ دولت نور داسی دو لت
دی چی هغه واقعا دزیار ایستو نکو دولت دی
په سر کی یی کار ګران دی دا دولت چاته
اجازه نه ورکوی چی دنورو جیبو نه خا لـی
کړی دنو رووینی او غوښی وخوری او پـری
وپـرسیږی او بیاووایی چی دامی له دی او
هغی لاری پیدا کړی وو .

دا خبری اوس له منځه تللی دی نـوی
ټولنه واقعا دخوار یکښانو ټو لنه ده هرڅوک
چی زیار با سی ، هر څوك چی کار کـوی
دافغا نستان په دی ټو لنه کی به ډیر نیکمرغه
او خو شبخته وی له هر ډول حقو قو څخـه
به بر خورد اره وی مګر هغه کسان چـی
استثمار کوی دنورو جیبو او مټو ته یـی
ستر ګی نیو لی وی او په خپله کارنه کوی
هغه واقعا دلته نه ځای لری اونه دوی بـه
دلته ژوند کولی شی په مخه یی ښه نـورو
ځا یو ته دی ولاړ شی .

مو ږ او تاسو پهاووم لمبر فرما نکـی
اعلان وکړ چی دلته دښځو او دنار ینه وو
حقوق سره مساوی دی ، واقعا دوی مساویدی،
واقعا ښځه اونر دواړه دیوه مرغه وزرونـه
دی چی دافغانستان جامعه په دی وزرو نـو
باندی الو تی شی او وابه لوزی مګر موږ پـه
اووم لمبر فر مان کی دښځو دپلو ر لی او
پیرودلو پخوانی دودله منځه یو وړ او داډیر
اصو لی کارو چی دخلکو له خوایی خورا ښه
هر کلی وشو .

مو ږ چی حساب کړ یدی زموږ په ټولنه
کی همیشه دری نیم ملیو نه زلمیان شتـه
چی باید کوزنی جوړی کړی باید ودونهوکړی
ځکه داډیر طبیعی کاردی او دودونو مـلاماتو-
و نکی لګښتو نه واقعا پر دوی باندي لـوی
جبروو اوزمونږ پیغلیهملهدی در کـه ډیـری
ځور یدلی او دوی پهلکه مینځی خر ځیدلی.
دولت دانقلا بی فر مانو له لاری هغه لـه
منځه یو وړل مګر ځینی کسان ښا یی پـه
واده کی نه ساز ر اولی نه یو کتو نـی
راولی ،نه څه لګښت کوی وایی چی دولتله
دی بدوړی ،زه ددوی طر فداریم ، چـی
دوی به موږ بهانه کړی وو مګر موږ وایوچی
ساز ، آواز، یا کتو نی یا خوښی ، چـی
ورته وایی یوپسه مسه چـی حـلا لـو ی
د زوم په خو ښه وی هغه بالکل روا کاردی.

دولت په کی هیڅ مداخله نلری وادهباید
تل په ټنګ او ټکور سره وی موږ یوازی په
یوشیاصرار کوو هغه داچی باید پر زومباد
هغه پر کاله باندی په زور یا مثلا په شر ط
یو شی تحمیل نه شی که په خپله رضا هلته
ښځی اټنونه وکړی ، نارینـه د و لـو نـه
ووهی یا یو بل ته سهار یا غرمه یا ماښام

ډوډی ور کوی ، څوك ددوی مخه نه نیسی او نه څوك په دی لاره کی خنډ کیږی دا پـه ټول جهان کی قا عده ده موږ هم له دیقاعدی څخه مستثنی نه یو زموږ مقصد دادی، چـی په افغا نستان کی دنجو نو پلو رل او پیر ودل بیخی منع دی .

زموږ ګوند خلکو ته داشعار ور کړ یدی چی دوی ته باید ډوډی ، کالی او کور برابر کړی البته یوازی زموږ ګو ند دانه شـی کولی ،چی اوولسو ملیو نو ته دا کار پـه خپله سر ته ور سوی ، ګو ند یی په څـه ډول کو لی شی فقط دا کار باید په خپلـه خلك وکړی .

زموږ ګوند وظیفه لری ، چی خلك داسی رهبری کړی چی زموږ شعار ونه ددریلـه پاره تامین شیددی دپاره چی موږدز یارا یستو-نکو خلکو دپاره دکالیو ، کـور او ډوډی دبرابرولو پـلانونو ښه و سنجوو.

مو ږ ته لازم دی ، چی راته معلو مه وی چی څوك دی ، څومره لرو ،د چا دپاره یـی وکړو ، دمثال په ډول دیوه کاله مشر یـا دکاله غـړی چی خپـل کهول ته ډوډی، کالی یاکور برابر وی هغه خو شمیر ی چی دیوه، دوه ، دری یا پنځو کسو دپاره یی برابروم موږ هم په افغانستان کی دخپلو خلکو دپاره چی ددوی دوسایلو د تهیه کـولـو د پـاره هلی ځلی کوو ددوی ملاتړ او ددوی پـه ذریعه یی کوو . موږ ته دالازمه ده چی پوه شو څو مره کسان یو، دڅومره دپاره مـوږ ډوډی ، کالی ، کور تهیه کړو ، دسـر شمیر نی هیا تو نه په دی برخه کی ددولت دپلان دپاره ډیرلازم دی چـی خلـك ورسره مرسته وکړی البته دا سر شمیر نه یوازی ددی دپاره ده چی دولت ددوی دښیګڼو دپاره ښه پلانونه وسنجوی داد چی ایستلو دپـاره نه دی هغه نور ترتیبات لری او څا نتـه جلا احصا ئیه اوخپل جلا قوانین اواصول لری نو له خلکو څخه زموږ هیله داده چی پـه سر شمیر نه کی زموږ له دولت سره ښـه همکاری وکړی تر څو موږ وکړای شو چـی په خپلو نفو سو پوه شو ، چی څومـره نفوس لرو او ددوی لپاره کوم کارونه وکـړو سر شمیر نه د پلان په سرته رسـولـو کی خو را ستر اهمیت لری ، او موږ غواړو چی په دی برخه کی بل هیڅډول تعبیر ونه شی او هیڅ ډول بله معنی تری وانخیستلـه شی ، غیر له دی چی موږ ددوی سر شمیرنه ددوی دسعادت لپاره کو و او بس .

زمو ږ دثور انقلاب په افغانستان او سیمه کی په ډیرو استثمار ګرانو ربښتیا بد لګیدلی دی اوپه موږ باندی رقم رقم تورونه لګوی بل هیڅ نور نه شی راباندی لګولی بی له دی چی داسی درواغ ووایی چی هغه هیڅ سند نه لـری مثلا مسلمان ډو له پر نګیان پر موږ بانـدی تورونه لګوی چی ګواکی افغانستان دشوروی اتحاد مستعمره شو ، دشو روی اتحاد ترتاثیر لاندی راغی یاداسی اوهغسی تبلیغات اوپرو-پا ګند کوی مګر زه دافغانستان ټولومسلمانو زیار ایستو نکو ته په کلکه اعلان کوم چـی افغا نستان په ټوله معنی خپل استقلال او خپل تما میت خوندی کړی او خو ندی به یـی

کړی، مسلمان دوله پر نگیا ن تـل د غـــه ډول درواغ وایی او تو رونه لګوی ، مګــــر زه ورته وایم چی له شوروی اتحاد سره زموږ دو ستی خوږه اوپه زړه پوری ده دا سمه‌ده خو نه هغوی هیڅکله دا په زړه کی تیره کړی ده چی زموږ په کور نیو چارو کــــی لاس‌وو هی ، او نه موږ هیڅجا ته اجازه‌ور کوو چی زموږ په کور نیو چارو کی لاس ووهی.

**تـاسی خلقی ځـوانان اودګوند غړی تـول**

خبر دی او ښه پوهیږی چی زموږپه انقـلاب باندی چا یوه کلـداره ، یا یو ډالر ، یایو روبل اویا یو پو ند او یا یوه افغا نی نــه دی لګو لی څه چی مو لګولی دی په خپلــه مو کړ یدی نه مو پیسی در لودی او نه‌بل څه یوازی موږ یوشی درلود چی هغه لـــه خلکو نه دځان قر با نول وواوبس .

دلته دا پوښتنه پیدا کیږی چی دوی ولی دا تورونه پر موږ باندی لګوی ؟ دا ځـکـه چی په کابل کی به تل زما مداران دامپریا-لیستا نو ساز ته نڅید ل ، خلکو بــــــه دامپر یا لیستا نو پرضد مبا رز ی‌کولــــی اوس چی په کابل کی داسی ګو ند منځ ته راغی چی په افغانستان کی یی ټول بهر نی خلی ړنګ کړل اودی ته به بیخی اجازه‌ورنه کړی چی بیادی بهرنی کو ډاګیان ، امپریا-لیستی ګوډا ګیان او نور ګو ډاګیان دلتــه زموږ پر ضد او یا دافغا نستان دخلکو دګټو پرضدپه‌دی یاهغه جامه‌کی مبارزه وکړی موږ داخلی ړنګ کړل او دتل دپاره به یی ړنګ کړو ، موږ چی دخپلو زیار ایستو نکــــوپه ګټه دا اقدامات وکړل نو موږ دمسلمان دوله پرنګیا نو په نزد هم کا فران اوهم دخلکو دښمنان شو ،او هر شی شوو ، دوی ټــوله ورځ تبلیغ کوی چی دا کفار دی ، چـــــی ددوی سا زته ونه نڅیدو نو داسی تو رونه‌را باندی لګوی البته دلته په افغا نستان کـــــی چی څوك ددوی سازته نڅیدل، ددوی فرمانو-نه یی منل ، هغه مسلمان وو ټول پر کاروو، او ډیر په زړه پوری وو مګر موږ وایو چــــی افغانستان مستقل د ی ، افغانستان به خپل استقلال ساتی ، هیڅ بهر نی لاس او هیـڅ بهر نی قوت ته به اجازه ورنه کړی چــــــی زموږ په کور نیو چارو کی لاس ووهی نوځکه دوی پر موږ باندی رقم رقم تو رونه لګـــوی هر چیری تبلیغات کوی، پرو پا ګند کـــوی او تا سو په خپله په دی وختو نوکی دهغـو پرو پا ګند ونه اوری مثلا پر نګیان یـــــا پر نګی منا بع څر نګه هغه مسلمان ډولـــه پر نګیان ریکلا موی ، هغوی ته وده ورکوی شخصیت ور کوی ، روحیه ور کوی ،چـــــی ګواکی په افغا نستان کی داخلقــــی انقلاب کمزوری او سست کړی او پرمخ ولاړ نشی مګر زه ورته وایم چی داد شګو بند ونـــه زموږ دانقلاب څپو ته هیڅ شی نه دی .

په افغانستان کی چی پخوا نیو واکدا رنو ددوی فر ما نونه منل ، دهغوی شخصی‌ګټی هم له امپر یا لستا نوسره یو ځای وی ،ځکه چی‌دوی په دافغانستان کی دخلکو جیبو نـــه ووهل ، ددوی غو ښی او وینی به یی چــــی

وخوړلی وربه غلل ددوی په بانکو نو کـــی بەیی ذخیره کړی که دلته به دوی دهغوی یو فرمان ونه مانه او یا به یی دهغوی‌سازته نڅه پڼه وا نه خیسته دستی هغه پیسی په خطر کی وی ، اوس زموږ څه په خطر کی دی ؟

هیڅ شـــی نلرو . اوس مـوږ پـرنګیانـو او ټـولـو امپریالیستانو ته چلنـج ورکــوو ، چی دوی دی په خپلو با نکو نوکی زمـــوږ دګډند دیوه غړی یو پنځه غیر انه راوښیـی موږ دا ځکه وایو چی موږ دافغانستان خلکوته ځا نو نه وقف کړی دی ، سرو نه مووقـف کړی دی، زمو ږ ګو ند ورته وقف دی، موږ ددوی زامن یو ، موږ ددوی اولاد یو ، موږ ددوی خد مت کوو ، نورنه دوی خر څو و، نه دوی لو ټو و او نه ددوی پر سر بانـــدی کوم تجا رت کوو ځکه چی دا زموږ پــــه مسلك ، زمو ږ په ایډ یالوژی ، زموږ پـــه مفکوره کی نشته چی موږ دی څوك لو ټ‌کړو یادی هغه استثمار کړو ، یادی دهغه پـــه وینو باندی ځانونه ماړه کړو .

زموږ دوستی هم‌له هغو هیواد وسره ده‌چی په‌هغو هیواد وکی داستثمار فکر بیخی نشته په هغو هیوادو کی داستثمار فکر بیخی نشته داستثمار جرړی یی ایستلی دی ، نو زمـوږ دو ستان به زمو ږ دمنا بعو داستثمار ولـــو دپاره لکه چی ددی تور لګوی ولی هلی ځلی کوی ځکه چی ددوی په مسلك کی دانــــه شته چی دوی دی نور زیار ایستو نکــــی دخپلو زیار ایستو نکو اودخپل ځان د پاره استثمار کړی نو موږ هم په خپلو دوستانو ویاړو، او هم له خپلو دښمنانو کـــر کـــه کو و . نوزه یو ځل بیا اعلا نوم چی زموږ ددولـت په‌باره کـی، دمسلمان ټولـه پـرـ نګیا نو تو رونه بالکل نا روا دی ، بــــی ځایه دی ، موږهغه غندواو هغو ته په کرکه ګورو .

بله ډیره مهمه موضوع زموږ دګـاونـډـ یانـو موضوع ده. دایران حالات واقعا دیـر ښه‌نه‌دی اوهلته اړدوړدی، هلتـه یـــوبـــل سره وژنی اوپه دی باندی موږ خورا تا سف کو و مګر زمو ږ په عقیده په ایران کـــی دا ټول اړ دو ړ او دا ټوله نا آرامی بهر نیو سنر ولاسو نو را منځته کړ یده .

اوس امپر یا لستان غواړی چی دثور انقلاب بدنام او دسیمی له خلکو څخه یی تجریـد کړی او په موږ پوری دروغ او تو متو نـــه وتړی او موږ وایو چی افغا نستان دهیڅا په کو رنیو چا روکی لاس نه دی وهلی او نـــه یی وهی ، دمثال په ډول څه موده مخکــــی مطبو عا تو یو خبر نشر کړ چی هلته یو نیم سل یا دوسوه تنه افغا نان شته مګر زه دا په کلکه ردوم چی دافغا نستان دموکرا تیك جمهوری دولت داسی وسله وال خلك هلته نه دی لیږلی اونه یی لیږی اونه داپلان لری دا زمو ږ په عقیده یوازی ددی دپاره دی‌چی دایران په چا روکی هغه ستر پیا وړی بهرنی لاس څر ګند نشی یا دهغه د پټو لو دپاره ښایی دانری لنډه پرده وی ، چی یونیم ـ سل تنه راغلی دی دلته یی اړدوړ جوړکړـ

یدی دا پرده واقعا څیری ده،او دبهر نیو
امپریالستانو قوی لاس ښه څر گند یږی
البته‌زموږ مز دوران په تش لاس دداود په
وخت کی دځیره گا نو غو ندی هلته تللی
دی او هلته به کار کوی ، له خپلو گاونډ
یو سره به ددوی دوطن په آبادو لو کی
مر ستنه ور سره کوی ، مگر هیڅ وخت
دوی ته چا هدایت نه دی ورکړی چی دهغو
دامنیت پر ضد دی کوم اقدام وکړی موږ
دا ردوو او یوازی دا غواړو چی له هغوی
څخه دی خارجیان لاس واخلی او دهغوی په
کو رنیو چا روکی دی هیڅ لاس ونه وهی.
موږ نه یوازی ایران ته خرابکاران نه دی
لیږلی ،بلکی موږ په سیمه کی هیڅ چیری
په هیڅ ډول دچا په کو رنیو چارو کی لاس
نه دی وهلی زمو ږ دوستی له ټو لو سره
خو ږه ده او نوره به هم خوږه شی .

موږ غوا ړو چی زمو ږ دوستی داسی درجی
ته ور سیږی چی داټول ابهاما ت چی اوس
شته له منځه لاړ شی موږ له پا کستان سره
هم کو مه خا صه دښمنی نه لرو ، دپاکستان
سفیر چی دخدای پا مانی دپاره دلته ر اغلی
وو، ما ورته په خبرو کی وویل :

چی زما له خوا ضیاء الحق ته سلام ووایه
ور ته ووایه چی هیڅ وخت به زموږ له خاوری
دپا کستان خوا ته دیو مردك ډزه هم ونه
شی .

داده زموږ پا لیسی او تاسو زموږ له
خوا بیغمه اوسی .

نو موږ غواړو چی له دوی یعنی پا کستان،
ایران او چین سره ښه روابط اوښه گاونډ
یتوب ولرو ، او موږ غوا ړو چی هغو ته نوره
وده هم ورکړ وپه دی اساس له دوی نه هم
هیله لرو چی دوی زموږ په کور نیو چاروکی
لاس ونه وهی او دنورو لاسو نو ،دنو رود
دسیسو په اثر زموږ په خلکو باندی ،زموږ
په دولت باندی بی ځایه تورونه لگوی ، دغه
ده دلته زموږ پالیسی .

دثور انقلاب بیا هم ددی دپاره یوه وسیله
ده چی په افغا نستان کی یوه نوی هو ساله
سیری نه دسیری له استثمار نه پرته یوه
ټو لنه جوړه کړو او په‌دی ټو لنه کی هرڅوك
دخپل کار په اندازه خپل مزد واخلی او نور
څوك دبل چا جیبو ته او دبل چاو ینو ته
هیله ونه لری او موږ واقعا ددغسی ټو لنی
جو ړ وونکی یو او ددی په جوړ ولو کی
زموږ ټول زیار ایستو نکی خلك او زمو ږ
گو ند لاس په لاس سره روان دی، زه‌یقین
لرم چی موږ په دی لاره کی بشپړ بریا لی
کیدو نکی یو په نړی کی هیڅ قوت نشته
چی زموږ ددی پرو سی مخه ونیسی نور نوزه
له تاسو خلقی افسرا نو او نور وطنپا لونکو
څخه دا په کلکه غواړم او غو ښتنه کوم
چی خپل مغز او سرپه مترقی ایډیالوژی
ښه سمبال کړی دکار گرانو او زیارایستونکو
په گټو باندی ښه پوه شی چی تاسو ددی
اجتما عی انقلاب پر خوابا ندی ډیر بی غمه،
په ډیر آرام زړه ، ښو اعصا بو په ویاړ سره
مخ په وړا ندی‌لاړ شی ،له امپر یالیستا نو
سره زموږ لانجی روانی دی ، ځکه چی دوی
هیچاته ددی حق نه ورکوی چی خپل سر ـ
نوشت‌په خپله وټا کی مثلاً مو ږخو و لیدل او

دافغا نستان خلکو هم احسا س کړه چــــی له امپر یالیستانو سره‌ددوی دو ستی خو را اوږده وه کی یی دو ستی وبو لی دو ستی، وه ،خو دافغا نستان خلکو دوه اتیا کا لـــه دانګر یز داستعمار پر ضد سره او توده جګړه وکړه مګر ددی ځای وا کدا ران‌به‌تل له ډیلی یاله لندن څخه تعینیـــدل او دوی دهغو دو ستا ن وو ، اوس زه تاســـو او دا فغا نستان ټولو خلکو ته وایم چی دلتــه دا (۸۲) کاله او دنادر دکو رنی دپا چا هی پنځوس کاله دا یو سلو څو کاله وشول‌په‌دی یو سلو ځی کا له کی دوی دافغا نستان په ودا نو لو کی کومه مرسته له موږ سره کړیده هغه مرسته چی اوس یی موږ ګورو څه ده یو سړك یی هم حتی موږ ته نــــه دی جوړ کړی ، یواز ی‌دامیر حبیب الله‌خان په وخت کی په ۱۹۱٦ کــی یا پــه ۱۹۱۵ کی دوی یو لږزانك پل‌په در ونټه بانــدی جوړ کړی وو .

په دی لږ زید ونکی پله به دامیر حبیب‌الله یوه ګا ډی ، یو مو ټر دلغمان قلعه تــك ته تیر یدل دایی ټوله مر سته وه چــــی امپر یا لیستا نو دافغا نستان له خلکو سره په دی ۱۳۰ کا له کی کړ یده نو مو نږ

په ددوی څه ښه را په یاد کړ و څه شـــی ته به یی ګو ته ونیسو چی آفر ین، یا دی ځوك موږ ملامت کړی چی تاسو ولی له دوی سره دو مره نژدی نه یا ست .

مونږ ورته وایو چی ای استعمار ګرا نـــو مو نږ خو په دی ۱۳۰ کا له کی له تاسونه هیڅ ښېګڼه و نــه لیــدله، حتــی زموږ پــه ملیو نو ورو نه شهیدان کړل بس دی ،اوس موږ پر یږدی دافغا نستان خلك په خپلـــه پو هیږی چی څر نګه ځان آباد کړی اوس پوه شو اوس یی طبقا تی شعور راو ینس‌شو، اوس دخپلی ښیګڼی دپـاره داسی سیخ پــه لاره ځی چی دامپریا لیستا نو دسیسو تــه هیڅ غوږ نه ږدی او نه موږ نور دوی ښکاره کولی شی . هغه څه چی ما دجنوری په‌لومړی نیټه په پیغام کی ویلی دی تا سی زلمـــی افسران به‌یی په ټینګه په نظر کی ونیســـی او پرهغو به‌عمل وکړی او دخپـل ګـو نـــد په غښتل والی کی به ډیره ستره بر خـــه واخلی او دخپل انقلاب په دفاع کی بــــه هغسی برخه واخلی چی واقعا موثر اوسه‌پوری اخیستی ده او نور به هم دافغانستان دزیار ایستو نکو خلکو دویاړ وړوګرځی‌اوګرځیدلی هم یاست .بیا هم تا سو ټو لو ته تبر یك وایم یو ځل بیادر ته ښه راغلی وایم .

# تاسي ته زیري درکوم چي په هیواد کي مو دارتجاع او امپریالیزم ټول سنګرونه دړي وړي کړیدي

زموږ ګران او انقلابي مشر دافغانستان دخلکو دموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټي عمومي منشي دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کي ددلوي په لسمه نیټه دافغانستان دخلکو دوسله وال پوځ داتمي فرقي له منصبدارانو سره دخبرو په ترڅ کي وویل :

ګرانو خلقي افسرانو ! ویاړم چي له تاسو سره نن په دي ماڼۍ کي ګورم. دا هغه ماڼۍ ده چي دثور دانقلاب نه مخکي داستبداد ، ظلم او ناروا مرکز ووخو اوس داد خلکو دعدالت او انصاف مرکز دی. واقعیت دادی چي په دي ماڼۍ کي به تل داسي پلانو نه سنجیدل چي هغه به دیوی ډلي دګټو دپاره او دخلکو دچور او چپاول او لوټولو دپاره وو او داسي قومانده به ورکول کیده چي خلك ؤځپي، ترټي او خاموش یي کړي مګر اوس لدي ځایه تل دخلکو دګټي نیکمرغۍ او هوسایي دپاره قومانده ورکوله کیږی .

په ټول افغانستان کي له یوه ګوټ څخه تر بل ګوټ پوري تام او بشپړ امنیت دی موږ له هیچا سره هیڅ ډول شخړه نلرو او ټول خلك په دي خوشحالي کیدی چي ځړ نګه دخپل دولت زیات ملاتړ وکړي چي هغه نورهم دخلکو په ګټه ستر ګامونه اوچت کړي او زموږ او ستاسو په ډله او څنګ کي داټول زیارایستونکي بزګران، کارګران، مترقي منو رین ولاړ دي او دخپل هیواد په ودانولو کي هر اړخیزي برخي اخلي .

موږ دثور دانقلاب له لومړی ورځي نه تر دا اوسه پوري هغسي کارو نه کړیدي چي واقعا بي ساري دي ، یعني دانقلاب تر بریالیتوب وروسته موږ هیڅ دي ته ونه کتل چي څو ورځي تیري شي څو ساعته



زمونږ گران لارښود دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم دخلکو په کور کی داتمـــی فرقی له افسرانو سره دخبرو په وخت کی.

مو هم خنډ ونکړ او سمدلاسه مو دخلکو دښمیگنهو دپاره په کارو پیل وکړ .

کله چی موږدثور دانقلاب په نتیجه کی سیاسی واك تر لاسه کړ نو داپړاو په ډیر جرئت او ډیره میړانه وو هل شو اوپه بل پړ او مولاس پوری کړ هغه داؤ چی څر نګه دبی استثماره ټو لنی دجوړ ولو دپاره هلی ځلی او کارو شی موږ دا کار فوری شروع کړ او دی ته مونه وکتل‌چی ودریږه نور به څه کیږی نو ستا سو ګو ند اوستاسو دولت په دی لړ کی هغسی کا رونه وکړل چی په واقعی توګه یی په ډیر ښه شان دبی استثمار ه ټو لنی دجو ړولو دپاره لاره آواره کړه .

تا سو ته معلو مه ده چی دداسی ټو لنی جوړو ل کوم آسان کارنه دی موږ دثور دانقلاب په واسطه سیاسی عمل سر ته ورساوه ، او وروسته له دی زموږ بل پړ - اوپه اقتصادی او اجتما عی برخه کی دی،چی داډیر کار، ډیری هڅی او ډیر کوښښونه غواړی او هم وخت ته ضرورت لری ، دد ی دپاره باید دمثال په‌ډول کرنه تخنیکی‌شی ښه وده وکړی او ټول کارګران ، بزګران په خپلو کاروکی نور هم فعال شی او صنایع هم باید ښه وده وکړی ولی چی په دی‌سهکو او درنو صنا یعو سره بی‌له یوه ښه میکانیزی زراعت څخه دافغا نستان دغه بی استثمار ه ټولنه چی موږ یی غواړو نه شی جوړ یدای .

نوزموږ اقتصاد ی بنسټ باید ډیر ټینګ شی اودادزراعت اوصنعت‌په‌وده باندی‌ټینګیږی ستا سو دولت وا قعا په دی لاره کی یعنی دهغی ټو لنی دجو ړولو په‌لور چی هلته له فرد څخه دفرد استثمار وجود ونه لری ډیرا غیږ ناك ګا مونه او چټ کړ یدی او زه یقین لرم چی په‌پای کی زموږ هلی ځلی مو ږ دغسی ټولنی ته ورسوی .

موږ اوس دزراعت او دصنایعو دودی د پاره پنځه کلن پلان جوړ کړ یدی چی ممکن دحمل په لومړی نیټه دهغه په عملی کولو لاس پوری کړ و اوبی له دغه پلان څخه موږ هیڅ نشو کولی ،او په دی پلان کی باید زموږ ټول زیار ایستو نکی له موږسره مرسته وکړی چی البته دامرسته له خپل ځان سره کوی ، دغه پنځه کلن‌پلان واقعا ددوی دښیګڼو دپاره دی او د چا دغولو لو او تیرا یستلو دپاره ندی ، اولکه څنګه چی زمو ږنورکا رونه خلکو وکتل دا پلان به هم و ګوری چی واقعا ددوی په ګټه دی‌او عملی کوویی هم . دغه پلان چی زموږ په صنا یعو ،زراعت او زمو ږ په ټو لنیز بدلون کی په رښتیا سره ستر رول لری ، خو امپر یالیزم ،بین المللی او داخلی ار تجا ع ور ته په ښه نظر نه ګوری او دوی با ید ورته ونه ګوری ځکه چی دا ټول ددوی دګټو پر ضد دی موږ وایو چی موږ دافغا نستان‌خلك فقط بایددی ته پریښودل شو چی موږ خپله ټولنه، خپل‌اقتصاد، خپل‌کارونه په‌خپله دخپلو خلکو دګټو سره سم سرته ورسو و. خودوی دانه شی منلی ځکه دامپر یالیزم ما هیت داسی دی چی اجتما عی او سیا سی تغییرات

په منطقو کې نشي زغملی ، مگر موږ داسې سياسي او اجتما عي بد لون په افغانستان کې راوست چې دارتجاع او امپرياليـــزم سنگر مودلته دړې وړې کړ .

امپر ياليستان يو شي غواړي هغه ډ يـــر څر گند دی چې بايد ددوی په صف کـــې څر گند ودر يږو ،لکه دثور د انقلا ب نـــه مخکې چې ددې ځای زمامداران ولاړ وو کــه داسې وکړ ونو بياد دوی په نزد ښه خلك يو او ښه خد متگا ران هم يو خو که مو دځپلو خلکو دښيگڼو دپاره کار وکړ يا مثلا دلته مو دفيوډاليزم پر ضد اقـدامـات وکـړ ل ، داستثمار پر ضد موگامونه اوچت کـړل نو بيا موږ کافران هم بولي ،او ښه خلك هـــم بولي ، او ښه خلك هم راتـه وايـي مگـر موږ داورته وايو چـې دافغـانستان خلك به‌دی او تو بوتو ته هيڅ غوږ ونه نيسي او مستقيما به پر هغه لار روان وي ، لکه دا تراوســـه چې راغلی دی او دافغا نستان دخلکـــــــو دنيکمر غی دپاره به وړ گا مونه او چـــت

موږ وايو چې موږ ځپل نا پييلتوب او ځپل استقلال ته په ټو له معنی دوام ور کوو او هيڅوك زموږ پدې لاره کې خنډ کيدای نشي، او پر موږ باندې چې هر تور او تهمتووايي هيڅ ځای نشي نيو لی تا سو په ځپله وينی چې دځمکو ويش اوس خو راپه درب اوخوند- روان دی او داد ځمکو ويش زموږ بز گرا نو، زموږ زراعتی کا رگرانو ته د اسې مرستـــه رسوی چې دوی به په ځپلو نسو ماړه اودکالو او کور خاو ندان به شي او دهو سا ټو لنی په جوړ ولو کې به دوی له دولت ،له ځـــان او ټو لنی سره هر اړخيزی مر ستی وکړی.

تا سو پوهيږی چې دولت همدا اوس ښه مو ټر وسا يل نلری که‌نه موږ داد ځمکـــی ويش په ډيره لنډه موده کې هم پای‌تـــه رسو لی شو ،دمثال په ډول په پوره اندازه مو ټرونه او نو روسا يل نلرو نو ځکه دا شايد يو څو مياشتی وخت ونيسی که نـــه موږ کولی شول چې په ډير ه‌لنډه مو ده‌کی زمو ږ دبز گرانو دا ستر ار مان سر تـــه ورسو و او اوس موږ ځپل بزگران په يوه‌دوو در يو او يا څلورو ميا شتو کی چی اوږده موده نده دځمکی څښتنان کړو .

موږ به پدی لنډه موده‌کی په مليونو جريبه ځمکه مليونو کسانو ته ور وويشو ، او داد افغا نستان په تاريخ کی واقعا يوبې ساری گام دی ،نه يوازی زموږ دهيواد په تاريخ‌کی بيساری دی ، بلکی په نړی کی هم په ډيرو هيواد وکی پدی ډول هيڅ نظير نلری دلومړی ځل دپاره آن پس له هغه لومړی کمون نـــه تر اوسه پوری بيا زمو ږ په هيواد کی داحالت چا ندی ليدلی مگر موږ وايو چی ځپلـــو بز گرانو ته توليدی وسايل په لاس کـــی ورکوو ، چی زموږ سره يوځای به پـــدی تو ليدی وسا يلو هغه پر مخ تللی زرا عت چی موږ او تاسی يی غواړو ډير ژر منځ‌تـــه راشی موږ بيا هم وايو او تا سو ته زيـــری در کوو دا خنډونه چی پيدا کيږی او ياڅوك غواړی چی پيدا يی کړی هيڅکله زموږ دکار مخه نشی نيولی . هيڅوك او هيچا پر موږ

باندی ددی اعتراض نه‌دی کړی اونه یی کولی شی ،چی تا سو ولی‌داځمکی ویشی ، ځکـه موږ دا ځمکی پر خپلو بزګرانو با نـدی ویشو او تا سو ته معلو مه ده چی‌پـه افغا نستان کی بزګران ډیر زیـات او فیو ډالان ډیر لږ شمیرو و، نو له دی املـه زموږ پلان زموږ پروژه ډیره بریالی ده،ځرنګه چه زموږ ټوله اتکاپربزګرانوباندی، کارګرانو ده نو همدا سبب دی چی زموږ پلا نونه ډیر موفق دی . موږ ترهغه وخت پوری ستر ګامونه او چټو لی نه شو چی دامپر یالیزم پر هغو مر کز ونو او سنګرونو باندی چی دهغـه په ګټه کار کوی ،او یایی کړ یدی سترګو ګذارونه ونه‌کړو تاسوته زیری در کـووچی موږپه افغانستان کی دامپر یا لیزم ټو لڅلی ګډو ډاوړنګ کړل او اوس دخپلـی ښیګڼـی په برخه کی دګا مونو دپورته کولو پـه لور هیڅوك دافغا نستان دخلکو مخه نشـی نیو لی .

دولت او دافغا نستان زیار ایستو نکـی خلك چی دخپلو ګټو دپاره ګا مونه او چټوی نو دخلکو دښمنا ن پر دوی باندی تو رو نه، لګوی ، دمثال په ډول دوی زموږ ملا یان، رو حا نیون او نورو طنپر ستان په دی باندی بیروی ، چی تا سی دلته ځای نه لری یا تا سو ته صدمه رسیږی ،مګر زه وایم چـی هغه ملا یان ،هغه روحا نیون او هغه کسان چی دافغا نستان د خلکو دګټو پر ضدونـه در یږی او داسلام مبین دین پرده نه کـړی، زموږپرضد، زموږ دانقلاب‌پرضدمبارزه ونه‌کړی هغه زموږورونه دی موږهغوته هیڅکله هم ځه نه دی ویلی اونه یی وایو ، موږ بیا هـم ټو لو ته ډاډ ور کو و څوك چی دپیسو په‌مقابل کی دپردو لاسونه دلته رانه وړی ، دپـردو پیسو په‌مقابل کی دلته زموږ پر ضد باندی ونه دریږی هغه دلته پوره مصئو نیت لری‌او هیڅوك به هیڅ غرض پری ونلری . خو کـه څوك وغواړی چی ددین تر پردی لاندی‌زموږ اوزموږدخلکو پرګټوباندی لوبی‌وکړی پرضد‌یی ودر یږی هغه واقعا دامپر یالیزم څلـی دی موږ هغه څلی لکه ړنګ چی مو کړل نور به یی هم ړنګ کړو .

موږ داسلام مبین دین ته زښت احترام‌لرو او خلکو ته هر ډول آسانتیاوی برابر وو چی خپل دینی منا سك په ښه تو ګه اجـرا کړی . مثلا دلته جو ماتو نه دی ،دلته آذانونه کیږی ،دلته لمو نځونه کیږی ،دلته خلـك روژی نیسی، دلته خلك خپل ټول دینی مناسك پر ځای کوی خو بیا هم امپر یالیستان‌یوشی غواړی او وایی چی زموږ پر خواشی کـه‌نـه وی نو تا سو دایو هم نه پر ځای کوی، نه دلته آذا نونه شته ، نه‌جوماتو نه‌شته ، نـه ملا یان شته ،ځکه چی تا سو دپر نګ‌داستعمار پر خوانه یا ست موږ یی‌په خوب کی وایو چی دافغا نستان زیا ر ایستو نکی مسلمانان به هیڅچا ته اجازه ورنه کړی چی زموږ پـه دا خلی چارو کی بیا لکه دپخوا غونـدی لاسو نه ووهی او ددی خلکو هر اړ خیزه وده وځنډوی او لکه پخوا غوندی موږ په‌خواریـو برباد یوکی وساتی .

موږ دامپریالیـزم دی تورونو یا ددوی د ګوډ اګیا نودی تهمتو نوته په عمل کی هـم

ځواب ورکړ یدی او په آینده کی به یې هم
ورته ورکړو .

سره له دی چی دلته شر یعت جاری دی
قاضیان شته ، د شریعت په پرنسیپونو
باندی ولاړی قضا ئی محکمی پر یکړی او فیصلی
کوی خو بیا هم پر موږ باندی ډول ډول تورونه
لګوی .

زه بیا بیا وایم چی ددوی داتورونه هیڅ
ځای نه نیسی ،زموږ رژیم دپخوا نی رژیم سره
دځمکی او آسمان فرق لری ،دثور ترانقلاب
دمخه رژ یمو نو به تل په داخل کی دوی پر
یو څو فیو ډالانو ، خونخو رواو یو ځواستثمار
ګروتکیه در لوده ،اوپه خارج کی دامپر-
یا لیستانو سا ز ته نڅیدل او ګډیدل ،چی
ددوی اقتدارو ساتی ، مګر زموږ خلقی دولت او
زموږ خلقی ګو لنه پر هغه چا تکیه لری چی
هغه زیار کښان دی پر هغو باندی ځنګ
لګوی چی زیار کښان، کار ګران ،بزګران
اودخلکو اکثریت دی . کوم چی دافغانستان
په سلو کی اته نوی نفو س دی پر دوی باندی
موږ ځنګ لګولی دی او موږ ددوی خدمتګاران
یو ،موږ ددوی زامن یو، موږ ددوی دپاره کار
کوو او کار موهم کړ یدی .

دتیرو رژیمو چی البته هغه دفیو ډالی
رژیمو سیا سی محافل وو وده او ټینګښت په
دی کی ؤ چی خلك وږی وی، برښډوی، خواروی،
په خپلو خوار یـواخته وی او سیاست ته
یی هیڅ پام هم نه وی او ګو لنیز و چا روته
هیڅ یا ملرنه ونه شی کړی .مګر ستا سی
دخلقی دولت دا ګولی هلی ځلی ددی دپاره
دی چی خلك ماړه شی ، پټ شی او روغ او
رمټ وی ،په سیا ست کی دخل وکړی اوله
موږ سره سیا سی مرسته وکړی .

مثلا کو پراتیفو نه جوړ کړی ، اتحاد یی
جوړی کړی ، د مرستو صندوقونه جوړ
کړی ،سا زما نونه جوړ کړی ، خپل مشکلات
په آزاده توګه وڅیړی او دخپلو مشکلاتو
په له منځه وړ لوکی له دولت اوله خپل ځان
سره همکاری وکړی . دادی زموږ اود دوی
فرق یعنی دوی پر لوږه او تنده ولاړ وو ،موږ
پر مړښت ، پر پوهه او پرباسوادی باندی
ولاړ یو .

خلقی دولت به هغه وخت ډیر بر یالی
وی چی په افغا نستان کی دسیاسی شعور
خاوندان لا ډیر شی او هر څوك طبقا تی
او سیا سی شعور پیدا کړی اوله موږ سره
واقعا په آزاده فضا کی همکاری وکړی ،
موږ او دوی یو شی یو . زموږ سیا ست
پر دی ولاړ دی چی موږ تل دوی ته سیا سی
شعورور کړی اوورکوویی، تاسوته معلومه ده چی
موږ پدی لاره کی هراړخیزی هلی ځلی کړ یدی،
را دیو ګانو ،په تلو یز یون کی پـه اخبارو
کی موږ دخلکو دراویښولو دپـاره خـورا
ډیر کو ښښو نه کړ یدی پخوا به بیخی
چا ته اجازه نه ورکول کیده هغه وخت
زموږ خلقی وسله وال پو ځ ته دا اجازه نه
وه چی اخبا رونه ولو لی یا په آزاد ډول راډیو
واوری . اوس تاسو ته معلو مه ده چی پـه
هره قطعه کی موږ تلو یز یونو نه اینښی دی
او کو ښښ کوو چی نو رهم کیږ دو چی
زمو ږ داسر تیری هم یو ه شی او زمو ږ

منصبداران ،زموږ خلقی افسران با لکل‌شعورانه او آگا هانه په خپله خو ښه یعنی پو هـــی سره دخپـل خلقـی دولت دفاع او مـــلاتـړ وکړی .

که په افغانستان کی شپږم او اتم لمبـر فر ما نو فیو ډالیزم وواهه یا یی وهی زموږ اووم لمبر فر مان هم دفیو ډالیزم په‌وهلـــــو او دهیواد دښځو په خپلواك کو لو کی ډیر ستر نقش ولو باوه اوس په افغا نستان کی دپخوا غوندی په نجو نو او پیغلو خریداو فروش نه کیږی او داپه جدی تو گه منع دی .

زموږ اووم لمبر فرمان حتی پر ادبیا تو چی دمحبو بی دبیلتون او هجران سندری یکـــی ویل کیدی او همدا رنگه پر غزلو او بد لو تا ثیر کړی دمثال په ډول پخوا به داسندری ویل کید ی چی نه دی وینم په هجران کی دی سو ځم یا داسی دی یا هغسی دی خـــو اووم لمبر فرمان ،شعر او شا عری ته لــــه بنسټ څخه بدلون ورکړ .

پخوا چی به مو هر ځلمی لیده ترو خته دمخه به زوړ ، تروخته دمخه به‌یی مخ‌گونجی گونجی ، ویښتان به یی سپین شوی وو چی پو ښتنه به‌دی ور ځینی وکړه چی ولـــــی داسی خوار اوزاریی ویـل به یـی چی پیغله می دپلار په کور کی زړه شوه ځکه زه یی ولور نشم پیدا کولی ،ولور نه شته چی زه‌یی ور کړم .زه دلته زوړ شوم هغه هلته زړه‌شوه له پیغلی څخه به‌چی پو ښتنه وشوه هغـــــی به هم عینا دغسی ویل .

مگر اوس خلقی دولت داووم لمبر فرمان په صادر ولو سره دا ټول شیان له منځه یووړل ما پخوا هم ویلی وو چی زمو ږ دری ځلور ملیو نه ځوا نان او پیغلی او س بالکل لـــه آزاد ی‌څخه بر خورداره دی . داد شر یعت مطا بق د ی .

اسلا می شر یعت وا یی چی دوی کولی شی چی په آزاد ډول یو له بل سره واده وکړی.

پخوا به هر چا زموږ خلك تیرا یستل ، دوی به یی غو لول مثلا ځو کاله مخکی دلتـــه ځینو تا جرانو انحصار ی‌تجارت کاوه هغــــه وخت د حکومت تر حمایت لاندی بـــه یـی داویل چی یو واری پانگه سره را ټو لـــه کړو بیا به دلته صنا یعو ته وده ورکوو، په دی به ماشینان راوړو ، دلته به سپکی اودرنی صنا یع‌راځی ،دغسی او هغسی به کیـــبږی انحصار ی تجارت په دی معنی چی پر تـــــه له‌دوی څخه بل څوك هغه شی‌نه شی را وړلی نو په‌هره بیه به چی ددوی زړه وغو ښتـــل په هغه لوړه بیه به یی خر څاوه دوی واقعا په دی پلمه ډیری پیسی سره را ټو لی کړلی او بیا به دهغه وخت حکو متو نو دظاهراوداود کو رنیو دهغو سره دا ټولی پیسی وویشلی.

هغه په خپله مخه لاړل دلته نه صنا یع راغلی اونه بل څه موږ او تا سو تــــــه دا ټول بد میراث را پاتی شو چی او س یی باید موږ جبـران کړو . دافغـانستان خلکو ته موږ واقعا دا وعده ور کوو چی نه یوازی داسی دسیسی به بیا دلته کامیا بی نه شی بلکـی موږ به پخـوانی خسارات هـم تلافـی کړو .

موږ دثور دستر انقلاب په نتیجه کـــې ملیتو نه هم آزاد کړل . تا سو ته بـــه معلو مه وی چې پخوا به قطعا لږ کیو ملیتونو هیڅ حق او حقوق نه‌لر ل او دنورو حقوق به هم تر پښو لاندې کیدل ، او س دخلقـــې دو لت دخلقی نظام لاندې زموږ ټو لو ملیتو نو ته پښتانه دي ، تاجك دي ، هزاره دي ،ازبك دي ، نور ستا نی یا بلو چ دی هر څو ك چې دی له خپلو ټولو حقوقو څخه بر خورد - داره دی موږ د دوی کلتور ، ددوی هنر او ادبیات او ټولو ته وده ورکوو اووده مو ور - کړی ده . دوی ته مونه یوازی اجازه ورکړی بلکی ټول تسهیلات مو ورته وړا ندی کړیدی چې دوی په‌خپلو ژبو باندی نشر یات وکړی او دخپلو خلکو د طبقاتی شعور په راویښولو کې هم خپله بر خه واخلی .

زموږ ګوند انقلاب وکړ ، په افغانستان کې زموږ ګوند خپلو زامنو خپلو اعضاوو تــــه په وسله وال پو ځ کی امر او هدایت ور کړ چې فیو ډالی سیا سی‌نظام دی ړنګ شـــی او خلقی سیا سی نظام دی ټینګ کړی شی چې دا کار په ډیره ښه توګه اجرا شــــو مګر ګوند تر انقلاب وروسته لږ څه متشتت غو ندی شو د اځکه چې دوی ته دولتی ستر مسئو لیتو نه ور په غاړه شول ټول اخــــوا او دیخواد کار دسر ته رسو لو له پاره‌لاړل او باید دا کا رونه یی کړی وی څو لڅوزیران شول څوك والیان او ولسوالان شول او څوك په نو رور تعلیما تی چا رو او داسی نورو کی بو خت شول او پدی چارو کې یی ستری برخی واخیستلی او په لومړیو وختو کی ګــــوندی حا لات لږ څه ضـ عیف شول . مګر موږ په‌دی دری څلور و میا شتو کی بیر ته ګوند هغسی منظم اوباد سپلینه کړ لکه څنګه چې‌ورڅخه آرزو کیږی .

دا ګو ند به وروسته له‌دی ددولت په اداره کی دخلکو دښمنګنی دپاره پخوا په شان نور هم رول ولو بوی . تر انقلاب وروسته په ګوند باندی دامسئولیت هم پر یووت چې با یـــد څر نګه دخپلو دښمنا نو په مقابل کــــــی مبارزه وکړی او انقلاب وژغوری په هره ساحه کی زموږګوندی اعضاو واقعا ډیر کــوښښونه وکړل او ډیر ی ښې‌مبارزې یی وکړی دوی دخپلو مبا رزو په نتیجه کی واقعا دښمنـــــان را وپرز ول او اوس خلقی ګوند ددموکراتیك سنتر الیزم پر پر نسیپو با ندی بیر تــــه تنظیم اوفعال شو او خپلو وظا یفو ته په‌ښه تو ګه متو جه دی موږ غوا ړو چې زمو ږ ګو ند یو ډیر متفکر مغزوی او داسی نه‌وی چې هر څه چې ورته څوك ووایی هغسی‌وکړی دګو ند غړی با ید خپلو ګو ندی حوزو ته مشـو ری ورکړی دکار دښه والی اود خپـــل ګو ند دغښتلی کو لو دپاره باید یو ډ یـــر متحرك ار ګان وی اوله هرهاړ خه باید داسی متفکر مغزوی چی په خپله دوی حتی دولت رهبری کړی او کو چنی حوزه هم داســـی نظر یات دولت او حزب ته وړاندی کړ ی‌چی هغه واقعا دخلکو او دحزب په ګټه وی موږ خپل اعضا داسی روز و چې هغه نه یوازی سیا سی شعور ولری . بلکی یو سیا ست

مدارهم وی او په گو ندکی ډیره ښه فعاله او ستره برخه ولری .

زموږ گوندی ملگرو تل قر بانی ور کړی اوله ځانه تیرشوی دی له خپلومادی او معنوی گټو څخه تیر شو یدی ددی لپاره چی خلکو ته گا رو کړی ،موږ تل لکه ما چی پخــوا ویلی وو دامتیاز په اخیستلو کی ځا نو نــه تر ټولو وروسته گنو اوپه خدمت کولو کــی مو ږ ځا نونه ترټو لو ړومبی گڼو .

مثلا په وسله وال پوځ کی زموږ ملگری‌هم ډیری پیری کوی او هم ډیر مسو ولیتو نه په غاړه اخلی ،تیره‌ی نو هیڅ امتیاز یی ندی اخیستی داز موږ دگو ند افتخار دی چــــی موږ هیچا ته هیڅ ډول امتیاز ندی ورکــړی او گوند په خپله هم امتیاز ندی اخیستی نو نورو ته‌به یی له کومه ورکړی په ملکـــــی بر خه کی هم ملگری دشپی تراتو ،لهـــو بجو پوری بیله دی چی اجرت واخلی ، بیله دی چی شبکاری واخلی ، خپل گا رو نه کوی او دگو ندی ساز مان په برخه کــــی هلی ځلی کوی او واقعا چی دخلقی ځوا نانو یاخلقی غړوپه څیر کار کوی نوزموږ گوند چا ته نه امتیاز ور کړ یدی اونه امتیاز ورکولی شی دادددی لپاره چی‌گوند دخلکو نماینده دی په خلکو باندی یی تکیه کړ یده زموږ خلك چی خواروی نو موږ ته به‌څه را کړی مـــوږ بیا هم وایوچی خلك به بډای کړو اودخلکو بډای کیدلو سره سم موږ هم بډای کیږو زموږ دخلقی وسله وال پو ځ یو افتخار دادی چی نه یوازی دوی دخپلو افسرا نو سیاسی او طبقاتی شعور لــوړوی مطالعه کـــوی او دکارگراوبزگرد‌طبقوپه باره‌کی خپل معلومات نور هم ډیر وی بلکی هغه نور سر تیرو یعنی دهغه چا ته چی پچه یی ختلی وی هم سیاسی شعور ورکوی باسوده کوی یـــی او بیر ته یو داسی انسان لیږی چی هغه واقعا په خپله ټو لنه کی دیو ښه قضاوت او ښه فکر څښتن او د افغا نستان په ټو لنه کـــی یو ښه رول ولو بوی چی البته دا زموږدپاره ویاړ دی .

پخـــو ا د ا ســـی و ه چی د هغـــه چا چی پچه یی ختلی وه او عسکری تـــه به راغلی ؤنو لکه څنگه چی نا پوه را غلی ؤه هما غسی ناپوه به بیرته رخصتیده ما په خپلــه هم دیوچا دترخیص په پاڼه کی لیدلی وو چی په کی لیکلی ؤ نا پوه را غلی ناپوه لاړ مگر دخلقی پوځ په دوران کی دا ســـی لیکل کیږی چی بیسواده راغی با سواده‌لاړ سیا سی شعور یی نه درلود ، اوس دسیاسی شعور څښتن لاړ .

موږ‌په خپل‌گونداودخپل‌گوندپه غړوباندی هر چیـــری او په هره ساحـــه کی چی کار کوی ویاړو اوهم دافغــانستان خلـك پری ویــاړی ځکه چی همدی گو ند داسی انقلاب‌پــــه افغا نستان کی بر یالی کړ چی واقعا په ټوله نړی کی هیڅ ساری ئلری دا نو هیڅ‌مبالغه هم نده دځان ستا ینه هم نده او د گو نــد ستا ینه هم نه ده بلکی یو ښکاره وا قعیت دی

موږ دخپل با ند نی سیا ست په باره کی ډیری خبری کړی او دلته یوازی دو مرووایم چی موږ په هغه خپل بهر نی سیا ست‌باندی

چی په اسا سی کر ښو کی موا علام کړی ټینګ ولاړ یو او غواړو چی ټول په سو له کی ګډ ژوند وکړو موږ په روغه دګډ ژوند سیاست چلوو او دهیچا په کورنیو چارو کی لاس نه وهو . هیچا ته ددی اجازه نه ورکوو چی زموږ په کور نیو چا رو کی لاس ووهی زموږ دبهرنی سیاست دملاتړ هم هغه دی چی موږ په خپلو ا سا سی کر ښو کی پخوا یعنی دثور په ۱۹ نیټه اعلان کړیوواو موږ یقین لروچی موږپه‌دی سیاست‌کی بریالی کیږو مګر که څوك موږته آزار راکړی یا مثلا زموږ په کور نیو چا رو کی لاس‌ووهی هغه به دافغا نستان خلك داسی وتر ټی‌لکه تا سو ته چی معلو مه ده چی په تاریخ‌کی‌یی تل تر ټلی دی .

په پای کی دا وایم چی موږ پر خپل وسلـه وال پوځ باندی بشپړ اعتماد لرو دافغانستان خلك په دوی باندی بیخی باور لری چی دوی به له خپل انقلاب نـه داسی دفاع وکړ ی‌لکه دانقلاب په راو ستو کـی چی‌یی خپل نقش لوبو لی دی .

زمو ږاو ستا سی دګو ند او تاسی ګوندی غړ یو او نورو وطنپر ستا نو دپاره ډیر ستر افتخار دادی چی هره شپـه تاسو اوری اوو ینی چی څه کیږی په افغا نستان‌کی نور هغه چو پتیا نشته او دزړی ټو لنی دبډ لون دفیو ډالیزم دما تو لو اوله منځـه وړلو او پر ځای یی دخلقی نظام دټینګو لوله پاره په رښتیا سره ډیر شور او ځوږ روان دی، بزګرانو او کارګرانو ته دلازیات کار او هلو ځلو لاره برابر یږی چی دا وا قعا دډیری خو شحا لی ځای دی او تردی زیاته خوشحا لی نشته کله چی سړی دا بزګران وینی چی په څومره خوښـی او ولولو سره دخپلو ځمکو په تسلیمو لو کی بر خه اخلی نو لاډیرو احساسا تونه سړی ته ژړا ورځی او دا زموږ او تا سو دګو ند زمو ږ اوستاسو دزیار ایستو نکو خلکو ډیر ستر بری دی‌ږه بیا هم تا سو ته‌په دی نسبت دزړه له کومی مبا رکی وایم .

زه یو ځل بیا له تا سونه هیله کوم چی دټولو نـورو زمـوږ ملګـرو ، وطنپـرستانـو هر څوك چی ستا سو سره په قطعه کـی دی او هر چیر ته چی کار کوی زما سلامونه ور سوی او فقط او فقط یو ستر هدف چی زموږ او ستا سو په وړا ندی دی هغه دادی چی څر نګه دسړی څخه دسړی‌استثمار ورك کړو او په افغا نستان کی دغسی یـوه نیکمر غه ټو لنه جوړ ه کړو .

- دهغی ټولنی په لورمخ په وړاندی !

# دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند غړي دخلکو ورونړ او خدمتگاران دي

دا فغانستاندخلکوپیا وړی مشر د افغا نستاندخلکو دد مو کراتیك گوند دمرکزی کمیتی عمومی منشی دا فغا نستان دد مو کرا تیك جمهور یت دانقلا بی شورا رئیس او صدراعظم نور محمد تره کی چه دد لوی په ۱۱ نیټــــه له غر می مخکی په نهو بجو دلو ړ وښوونــو دوزارت له منسو بینو سره په داسی حال کی چی دلو ړ وښوو نو وزیر پو هاند محمودسوما ورسره وو . دخلکو په کورکی وکتل اوهغوی ته یی دخبرو په ترڅ کی وویل .

گرانو استاد انو !

تر ټو لو دمخه تا سو ته ښه را غلا ست وایم او داوایم چی دښوو نی او رو زنی پــــه برخه کی ستا سو ،وظیفی فوق العاده درنی دی ، او کله چی دافغا نستان دخلکو دموکراتیك گو ند جوړ شو لومړی هسته یی دپو هنتون او نورو ښو ونځیو منسو بین وو ، چــــی موږ په هغه ځای کی هغوی ته دوران جوړونکی متر قی ایډ یالوژی ورکړه او هغوی وو ،چی په تعلیمی بر خه کی یی دغه کار گری مفکوره خپره کړه اویوشمیر ښوونکی یی په ښه توگه په دغی مفکوری با ندی سمبال کړل ، چــــی همد غو ښو ونکو هغه نور وکسا نو تــــه ور سو له او د گوند بنسټ په ریښتیا دهغو په واسطه ټینگ شو چی تاریخ د انـــــــه هیروی .

په افغا نستان کی موږ او تا سی ټول په دی ویا ړ وچی خپله ټو له پو هه او دما غی انر ژی ،دکار گری طبقی او دهیواد دټو لو زیار کښا نو دنیکمر غی دپاره په کار اچوو او دهغوی دو ینبو لو دپاره کار کوو. اولـــه فردنه دفرد استثمار څخــه دخلاصی ټولنی دجو ړید و دپاره هلی ځلی کوو چی پــــه ریښتیا دکار گرو دطبقی اودکا رگرو دطبقی دمنو رینو تاریخی وظیفه او رسا لت دی،د کار گری طبقی تا سی منو رین یا ذهنـــــی کـارگـران پـه دی ویـاړی چـی تــــا سو دافغا نستان دنوی نسل په روز نه کی ستر



زموږ ګران لارښود دانقلابي شورا رئيس او صدراعظم نورمحمد تره‌کي دلوړو ښوونو دوزارت له منسو بينو سره دخبرو په حال کي .

رول لو بوی او باید او سنی او را تلو نکی نسل داســـی وروزی ، چـــی تـولنـه لــه بیخه بد له اور هبر ی یی کړی . تا سو پو هیږی چی ستا سی وظیفه څو مره درنـه ده . او تاسی چه په تعلیمی بر خه کی دکار کو لو ویاړ لری او دافغا نی ټو لنی پــــه جو ړولو کی تعلیمی وسله وال پوځ یا ست، ددی ټولنی په ودانو لو کی ستره اغیزه لری .

دا ځکه وایم تر هغو چی موږ خپل نــوی او او سنی نسل ته دکار گری طبقی مفکوره او طبقاتی شعور ورنه کړ و نه شو کـولای خپله ټو لنه لکه څنگه چی لازمه ده،ودانه کړ ونو موږ غواړو چی په تیره بیا را تونکی او او سنی نسل دا سی وروزو چی هغـــه دکـارگری طبقی د ایـډیالـوژی مشعـل پـه لاس کی واخلی او خپله ټو لنه پر مـــخ بوزی .

دکار گری طبقی دایډیا لوژی خپر ول او نو روته دهغی ور کول خا صه لاره او روش لری زمونږ او تاسوڅ هنی کار گران کولی شی ، چی دا ایډ یالوژی نوی نسل تـــه ورورسوی او هغوی په دی پوه کړی چی پــه افغا نستان او حتی په جهان کی دا ستثمار دله‌منځه وړلو پرته ، بل هیڅ کار پر مـــخ تللی نه شی داستثمارکیدونکی او استثمارگر ترمنځ هیڅ سو له نشته بلکی تل مبا رزه او جگړه ده .

ټو لنه په تشو خبر و او یوازی ارزو گانو او هیلو باندی نه شی جوړ یدای او کوم ځای ته نه شی رسید ای او س زمو ږ خلك پـــه دی پو هید لی دی اوله استثمار نه دخلا صـــی ټو لنی دجو ړ یدو دپاره په چټکی سره‌کار کوی وایی چی (به تنگ آمد به جنگ آمد) دلته خلکو په ربښتیا سره لوږ ه ، بر بنډ تیا وګا لله او دغه ستو نزی او مشکلات دی اندازی ته ور سید ل ، چی نور په هیـــــخ صورت دز غملو وړ نه وو .

مو ږ دافغانستان خلکو ته دد غـــــه زړه در دوو نکی حالت مسوول وړیه ګو تـــه کړل او ورته مو وو یل .

هغوی موږوه کړل هغه کسان چی‌ستاسی جیبو نه وهی او تاسی دلو ږی ، بر بنډ تیا، نیستی او بد بختی په حالت کی سا تـــی هغوی استثمار گردی چی ستا سو دکـــار محصول لو ټوی او تاسو ته هیڅ هم نـــه پر یږدی .

دی خبرو واقعا پر خلکو ډ یر ښه تاثیر درلود او ډیر خوندیی ور کاوه ، کله چـــی گوند جوړ شو په کلیو کی هم زمو ږدگوندی ملگرو ډیر قدر کیده او داځکه چی مـــوږ حقیقت وایه او خلکو ته مو حقیقت ور پـــه گوته کاوه ، زموږ ملگرو به بز گرو تـه ویل چی لاړشی، یووی‌وکړی ویی‌کړی، شید- یاره وکړی لمردی ستا سی پو ستکی تـــك تور واړوی ، اوپه پښو مواغزی ولاړه شـــی ، او وږی تږی کار وکړی بیا نو چی رشـــه تیا ره شی نود خان یاد ملاك په کندو کـــی کی یی ورا چوی او ددی پر ځای چی دی یی په خپله کند وکی واچوی تا سی یی په شا وروړی او کندو کی یی ور ته اچوی کله چی زمو ږملگرو په دغو مسا لو خبری کولی

بزگرو ته به یې خورا خوند ورکاوه . او داسې به یې ویل چې څه وکړو وسه مو نه کیږي .

مو ږ غو ښتل چې دوی ته داخبره ثا بته کړو ، چې داو ضعه ابدی اونه بد لیدو نکې نه‌ده بلکې تا سې کو لی شئ، داستثمار جغ له خپلو اوږو څخه لیرې وغور زوئ ، اوکله به چې زمو ږ ملګرو دغه ټول شیان ښه ورته څرګندول او دوی به یې پرې پوهول نوخا نانو او بډایا نو به زموږ ملګري په یوه اویا بل نامه تورول او موږیې دبد - مر غې ټکه ګڼلو .خو بز ګران له موږ څخه خو ښې وو موږ یې تر خپل توان او اندازې حما یه کو لو او زموږ ملاتړ یې کاوه ،او موږ دهغوی حما یت هیڅ کله هم نه شو هیرولی . زموږ ایډیالوژي ا و مفکوره غو لوو نکې نه‌ده او دا پر داسې حقا یقو او پرنسیپونو با ندې ولاړه ده ،چې دلمر په شان رو ښا نه او څر ګند دې خو استثمار ګرو دزیار ایستو نکو په ستر ګو باندې پرده‌اچولې وه ،او هڅه یې کوله چې هغوی له دغو حقا یقو نه لیرې وسا تي ،د کار ګرې طبقې په ایډ یا لوژي کې یوازې فردي نیکمر غې امکان نلري ، بلکې فردي هو سایي‌اونیکمرغې په ټو لنیزه نیکمر غې او هو سا یې کې ده ،موږ په پوره ډاډ سره وایو او دخپلې مفکورې په بر یالیتوب پوره باورلرو ، اودعمل په ډګرکې موهم دهمدې مفکورې په اساس ګام پورته کړې او پور ته کوو یې تاسې ښو ونکې ددې ویاړ لرې چې دنو رو ښوونو تر څنګ دکار ګرې طبقې دایډیا لوژي ښوونه هم په غاړه لرې .

څکه‌تاسې نه‌یوازې‌زموږځوان ښوونکې یاست. بلکې‌زموږدهیواددنوې نسل‌تیوریسنان‌هم‌یاست.

با ور لرم چې زمو ږ دانقلاب مخه په هیڅ بر خه کې هیڅوك نشي نیو لی ځکه موږ دکا رګرې طبقې په ایډ یالوژي سمبال یواو دهیواد دزیار کښو خلکو دنیکمر غې اوسوکالې په لاره کې له‌هیڅ ډول انقلابي لاز مو هلو ځلو نه ډډه نه کوو .

دافغا نستان دخلکو په دمو کراتیك ګو ند کې غړ یتوب دا معنی نلري ، چې ځا نو نه له نو رونه لوړ وبولي ، دګو ند غړي دخلکو ورونه او خدمتګاران دي ، تاسې هیڅکله هیڅا ته په هر ځای کې چې وی ، په سپکه ستر ګه مه ګورئ ، که چیرې څوك له تا سو نه کومه بې ځایه پو ښتنه هم وکړي تاسې یې مه سپکوی او تر هغه تشر یح ور کړئ چې قانع شي.

د افغا نستان دخلکو دد مو کراتیك ګوند یوموټی اوپیاوړی ګونددی داویاړلی ګوند دوه وزرو نه لري ، چې یو وزر یې دافغا نستان دخلکو وسله وال پو ځ اوبل یې ملکي غړي دي چې په هیواد کې دکا ګرې طبقې ایډ یالوژي خپروي ،د ګوند دلوړ وهیلو دتر سره کیدو لپاره هلې ځلې کوی منو رین هم یو ډول وسله‌وال پو ځ دي چې دکار ګرې طبقې په ایډیالوژي سمبال دي، اودواړه قوا - وې یو له‌بل سره دنوې ټولنې دوړ اندې تګ، و دانو لواو ټینګښت په غرض اوږه په اوږه پرمخ ځي اویوله بله‌څخه نه بیلیدونکې دي .

# زه پوره داډلرم چې فیوډالیزم په افغانستان کې سقوط کړی او نور په افغانستان کې فیوډالیزم د وجود نښې د رلود ی

دخلکو ستر مشر دانقلا بی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره کی له غرمې ورو سته په دریو بجو دکیو با دراډیو تلو یز یون هیات په داسې حال کې چې د راډیو تلو یز یون معین خیال محمد کتوازی هم حا ضر ؤ دمطبو عاتی مرکی دپاره خپل حضورته وما نه .
۲۴ر۱۱ر۵۷

دکیوبا د جمهوریت تلویزیونی هیات دافغانستان دخلکو دستر مشر له مهربانیو څخه دمننی په تر څ کی خپلی پو ښتنی د اسی طر حه کړی :

لومړی پو ښتنه :

په افغا نستان کی کوم سیا سی اقتصادی او ټو لنیز شرایط موجود وو چی دهغه ورو سته دثور ستر انقلاب مینځ ته راغی؟

دوهمه پو ښتنه :

دا نقلاب نه مخکی دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیک گو ند کوم پلان په مخ کی دریمه پوښتنه :

دثور دستر انقلاب نه وروسته په افغانستان کی څه ډول بدلونونه او تحولات راغلی دی او په راتلونکی کی کوم پروگرامونه ترلاس لاندی لری ؟

بله پو ښتنه :

چی کوم فرمانو نه مو صادر کړیدی ؟ مثلا دځمکو دو یشلوپه باره کی داسارت له جغ نه دښځو دخلا صون اوآزادی اود بیسوادی په خلاف دپرله پسی مبارزی په باره کی فر ما ئوله .

ځوابونه :

۱ـ دثور ستر انقلاب ته نږدی ورځو کی په افغانستان کی سیا سی اختناق ډیر شد ت مو ندلی وه ، استبداد له وحشت څخه ډکه څیره نیوله وه . په وطنپالونکو ، مترقی قو تو نو او عنا صرو ، مخصو صا دافغانستان دخلکو دمو کراتیک گوند (دهیواد دکار گر طبقی مخکښ) په دولت په پراخه توطئو او دسیسو لاس پوری کړی ،ارتجا عی قو تو نه او عنا صر ،دامپر یالیزم گو ډاگیان اودداؤد درباریان په پراخه اندازه دمترقی مبارزانوپه ضد په فعالیت کی وه او دهیواد کار گری نهضت



زموږ د ګران او انقلابي لارښود د انقلابي شورا رئیس او صدراعظم **نورمحمد تره کی** کاله چې یې د کیو با د خلکو د راډیو تلویزیون هیئات د مطبوعاتي مرکې د پاره د خلکو **په** کور کې منلې دی .

دمحوه کولو په خاطر پلانونه روان وه.دامپر-
یا لیزم په گټه دافغا نستان او شوروی اتحاد
او دافغا نستان او نورو سو سیالستی هیوادونو
ددوستی په ضد منظم کار کیده، دولت په
صراحت سره دبین المللی توری غیرزی تـــه
ځان وراچولی وه او دامپریالیــزم د نفــو ذ
کندی ته ورننو ئید لوکی وه ، دغه وخت په
هیواد کی دبیکاری رنځو نه زښت ډیر شوی
وه، دتعلیم او تر بیی ورو نه تړ ل کیدل،
صحی مرستی چاته میسری نه وی، اداره له
فسادڅخه ډکـه وه ، ظـلم او رشوتونه لـــه
حد څخه زیات شوی وه، همدا ډول په دی
موده کی دهیواد اقتصاد بالکل ویجاړ وه،بودجه
او اقتصادی پلا نونه یواځی خیا لی نه وه
بلکه داقتصادی پلا نونه مفهوم با لکل‌مسخ
شوی وه ، تو لیدی منا بع په ټپه در ید لی،
کا ر گران ، بز گران او نور زیار ایستونکی
په سختو کړ او ونو کی وه ، لنډه دا چـــه
دژوند دننه کید لو امید چاته پا تی نه وه.
خو له دغه حالت سره سره دا فغا نستان‌دخلکو
دمو کرا تیك گو ندهم دخپلو زیار ایستونکو
تر مینځ طبقاتی ذهنیت خپور کړی وه اوخلکو
هم دغه گو ند ته امید ونه‌در لودل .

۲ـ دافغانستان دخلکو دمو کرا تیك گو ند
دخپل څوار لسو کلو نو په موجو دیت کـــی
دخپلو زیار ایستو نکو خلکو په مینځ کـــی
دطبقاتی مبارزی له اصو لو سره سمه مبارزه
کړی وه ،اجتما عی موقف یی په خلکوکـــی
لوړ وه ،خلقیان پر زیار ایستو نکو با ندی
گران وه ،او هیلی یی ورڅخه درلو دلـــــی
څر نگه چی گو ند دکارگری طبقی پـــه
دوران جوړ وو نکی ایډ یا لوژی با نـــدی
مجهزوه دخپل تا سیس له لومړی ورځی څخـه
یی له ایډ یالو ژیکی مبارزی سره سم سیاسی
مبا رزه دا سی تنظیم کړی وه چی دسیا سی
قدرت دلاس ته راوړلو امکانات برابرکـړی .
دی هد ف ته درسید لو له پاره یی خلکو کی
داسی کار کړی وه چی دضرو رت په وخـــت
کی له خپل گو ند څخه دفاع وکړی او په
هیڅ‌شان یی مقا بل کی ونه دریږی. گو ند
دخپلی ټو لنی دپوره پیژندلی او ژور تحلیـــل
په اسا س هغه قوت پیدا کړ چه دگو نـــد
دانقلابی قو ماندی په وخت کی وکړای شـــی
چی دسیا سی قدرت په‌نیو لو کی مو ثـــره
مرسته وکړی. دغه قوت د افغانستان اردووه
نو تر تیب ونیول شو چی دافغا نستان پـــه
اردوکی دکار گری طبقی علمی ایډ یالوژی
پراخه خپره شی او دارد وافسران او سربازان
دگو ند په سا زمانو نو کی تنظیم شــــــی،
ددی هدف له پاره مو منظم او متمر کـــــز
تر تیبات ونیول چی په څو کلو کی موو کړای
شو چی د افغانستان داردو د ړنگولو په ځای
هغه څخه خلقی ار دو جوړه کړو چی دسیاسی
قدرت دنیو لو له پاره مو پوره آماد گـــــی
پیدا کړه .

۳ـ دثور دپرتمین انقلاب را هیسی تراوسه پوری ډیر کارونه په افغانستان کی شوی دی چی یقین‌لرم تاسوهم دلته دخپلی استو ـ گنی په موده کی دهغو آثار په ستر گولیدلی وی ٠

کله چه دثور انقلاب بر یالی شو اوسیاسی قدرت دکا رگری طبقی ،دهغی دگو نـــد ، دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك گو نـــد لاس ته ورغی ، دامپر یالیزم ،ارتجا ع اوپـه گوندکـی په استثمارگـرانـو پوری مربوطو عنا صرو له خوا زمو نږ دخلقی نظام پـــه ضد توطئی چـی په کـار لـویـــدلـی وی کشف اوشنډی کړای شوی او دادی زمونـږ ویاړ لی گو ند، دافغا نستان دخلکودموکراتیك گو ند (دهیواد دکا رگری طبقی مخکښ)دخپلی یو مو ټی په‌شان متحدی رهبری‌تر لاربښودنی لاندی دعلمی سوسیالیزم له قـوانینو ســـره سم دخپلی ټو لنی په ودا نولو بو خت دی.

په هیو ادکی دو دانو لو دکا رونه سره‌سم مو له ۱۲ زور زیات هغه زندانیان خو شـــــی کړی چی پخوانی رژیم په توطئو سره نیولی وه ، په سلگو نو نوی ښو ونځی مود خلکو دزامنو په مـــخ پـرانیستل ، دشپږ او اووم لمبر فر ما نونو په صادر ولو اوعملی کولو سره مود فیو ډالیزم داقتصادی هلو ځړنگو لو پـه خاطر ښه زمینه برابره کړه او دادی داتـم لمبر فر مان په واسطه چی دځمکو په هکله دی دمځکو ویش مو په عملی توگه شروع کړی او په بیړه روان دی چی په‌هیوادکی فیوډالیزم با لکل ړنگو واو په داسی جهت کی په‌مـخ ځو چی دفرد په واسطه د فرد له استثمار څخه پر ته ټو لنه به ودا نوو ،ورسره سم مـــو دفیوډالیزم ار تجا عی ایډ یا لو ژیکی مرا کز هم په انقلا بی عمل سره له منځه‌وړی دی‌اوس دافغا نستان خلك په پوره دموکرا تیك فضاء کی دغو ړید لی‌اوله خو شحا لی څخه ډکـــی آیندی په هیله کار او ژوند کوی.

زمونږ دانقلاب عا جل وظایف په چټکـــی سره د مځکو ویش پوره بشپړول ، او پنځه کلن پلان باندی‌ا نقلا بی پیل کو ل دی او دبی سوادی په ضد ژوره او پراخه مبا رزه‌ده.

٤ـدافغانستان دمو کراتیك جمهور یـــت دناپییلتوپ له پالیسی سره دپوره وفـــاداری پربناء په هاوانا کی دناپییلتوب د نهضـــت دمشرا نو راتلونکی کنفرانس ته ډیر اهمیت ورکوم او هغه دنړیوالی سو لی ساتلو او ټینگو لو کی دنا پییلتو ب دنهضت دمهـــــم رول په حیث گڼم ، دنړی په او سنیو شرایطو کی دنا پییلو هیواد و بر خه په نړیوا لی سو له کی ډیر ښه اثر لری اوله همدی امله دها وانا کنفرانس دډیری ستا ینی وړ دی .

# زموږ سیاسي انقلاب بریالی شوی

# اوس له هغه سره دری نور انقلابونه پیل کی لرو

زموږ گران او انقلابي مشر دانقلابي شورا رئیس اوصد راعظم دافغانستان دخلکو دوسله وال پوځ اعلی سرقوماندان نورمحمد تره کی دحوت دمیاشتی په لومړی نیټه دسهار په نهو بجو دوسله وال پوځ دراکت (۹۹) لمبر قطعي منصبداران اومنسوبین دخلکو په کور کی حضور ته ومنل اوله هغوی سره یې په ډیره صمیما نه فضا کی خبری وکړی اوو یې ویل:

پرما گرانو خلقي افسرانو ستړی مشی ، خوشحاله یم چی له تاسی سره دلته گورم دا زما دزړه آرزو وه ، چی په دی ډول په سپینه ورځ سره وگورو او دزړه خواله سره وکړو .

اوس داسی موقع راغلی چه دا دزړه خواله نه یوازی په پټه نه دی بلکی په راډیو اوتویزیون کی هم دادزړه خواله خپریږی اوپه دی باندی واقعا ډیر خوښ یم .

تاسو او هر چاته څرگنده ده چی دثور ستر انقلاب دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند په رهبری او دهغه په ابتکار منځ ته راغلی او اوس دا گوند ویاړی چی دنوی ټولنی جوړوولو دپاره هم دلارښودنی ستر اورون مشعل په لاس کی لری .

البته داگوند زموږ دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند ډیر وظایف په مخکی لری او هغه وظایف دادی چی خلک رهبری کاندی او دهغی ټولنی په لوربه ، اوچت اواساسی گامونه واخلی ، چی هغه ټولنه واقعا زموږ اه ستاسی او دافغانستان دټولو زیار ایستونکو خلکو مطلوبه ده اوپه هغی ټولنه کی به دسړی څخه دسړی استثمار نه وی .

زما په یاددی هغه وخت چی دگوند لومړی کانگره دایره شوه ، نود کانگری دکار له خلاصولونه وروسته مایوه اختتامیه وینا وکړه اوپه هغی کی می وویل : چی دافغانستان خلکو داسی روڼ مشعل بل کړ چی هر څوک چی دامشعل پوکړی د هغه بږیره به وسوزی اومخ به یې تور شي .

موږ او تاسو ولیدل ، چې دلته هرهغه چاچې دې گوند اودې مشعل ته پوکړل هغه پخپله له منځه لاړل او دافغانستان خلـــك دتل دپاره دهغوله ظـلم او استبداد څخـه خلاص شول . اوس هم کـه څوك دثـور انقـلاب ته چې ددې گوند په رهبرۍ مینځ‌ته راغلی دی، په چپ نظر وگورې اويايې ناکـامول وغواړي دهغه‌به‌هم بزیره‌سوزی‌اوهم به‌يې‌مخ توريږي .

دثـــــور له ستر انقلاب نه وروسته واقعا دگونـــد په رهبرۍ داسې گامونه دولت اخیستی دی چې هغه ټول دخلکو په گټه او دهغوی دسعادت او نیکمرغۍ دپاره دی .

تاسې په خپله وینئ چې دځمکوویش پـه خورا ښه درب او ډیر خوند روان دی اوپه دی تقریبا څلوینښتو ورځوکې چې دځمکو دويش له پیل څخه تیریږي موږ دوه څلوینښت زره بزگرو کورنیو ته په وړيا تو گـــه ځمکـه ورکــړې ده یعنـــی دوه څلـوینښت زره دبزگرانو کورنۍ دي ، چې‌دځمکو خاوندان شوی نه یوازې بزگران او داچې دسړي په ســر وشمیرل شي نوډیرخلك‌تری جوړیږي دادگوند او زموږ دانقلاب ستر هدف و چې دادی ددی هدف دسر ته رسولوپه لور په ډير وياړ اوپه ډيره بیړه روان یو .

موږ دادځمکو ويش ددی دپاره کووچـــــی زيار ایستو نکی خلـــك ددی موقـــع ومومی چې تولیدی وسايــــــل ترلاسه کړی اودخپل ژوند دښه کولود پاره اغیز ناك گامونه واخلی او هغه ستونزې چې دافغانستان په ټولنه کی پخوا موجودی وی دتـــــل دپاره له مینځـه لاړې شي ولی چې دادځمکو ویش البته دهغی ټولنی دبنسټ اینښودلو لاره اوزمینه برابروی چې په هغی ټولنه‌کی به دسړی له خوا سړی نه استثمار دیږی .

دثـــور ستر انقلاب یوازې داسې انقلاب نه‌وچې یوازې دافغانستان‌پـــــه زياراېستونکو پورې اړه ولرې ، بلکې رښتيا خبره همداده او څوځو ځله موویلی دی چـــی دادټـول جهان په زيارايستو نکو پورې اړه لرې نوله همدې سببه دټول‌جهان‌زيارايستونکی په تيره بیادسیمی زيار ایستونکی دا تاریخی وظیفه اوبین المللی مکلفیت لری چې ددې انقـلاب نه داسې دفاع وکړی چې هغه نور هـــــــم ټینگ او پلوشې يې د جهـان هر گوټ تـه نورې هم خپرې شي .

مثـلا زيارايستونکی هر چیرې کولـــــی شی چې مخصوصا خپل ارتجاعی دولتونـه او ارتجاعی حلقی چې هلته شته دی ته مجبور کړی چې زموږ دانقلاب مشعل راپو نکړی اوپه نتیجه کی خپله بزیره ونه سوزوی او خپل مخ تورنکړی دازياراېستونکی کـــولی شـــی چې خپلی دغـه ارتجاعی حلقی او ارتجــاعی حکومتونه مهار کړی ، پر هغو فشارراوړی .. هم دخپل ځان دخـــلاصولو دپاره اقدامات وکړی موږ له دوی څخه نه یوازې دا هیله لرو بلکی موږ وايوچې داد دوی تاریخی او بين المللی وظیفه ده چې باید په ځگه ملایی اجرا کړی .

زموږ کارگران دټولی نړۍ له کارگرانوسره پیوستون او وروری لـــری او دټــول جهـــان

دزیار ایستونکو خیر غواړی او موږیې له دی چی ملیت یااجتماعی سیستم پــــه نظر کی ونیسو زیار ایستونکی په هر ځای کی چی وی خپل ورونه بولو، مثلا دامریکی ، فرانسی، جرمن ، جاپان او نور ټولو هیواد وزیار ـ ایستونکی زموږ ورونه دی اوموږ هغوی له ځانه بیل نه ګڼو اوله هغو څخــه هم دا هیله لرو چی دخپلی بین المللی وظیفی په اساس زموږ له انقلاب نه داسی دفاع وکړی لکه زموږخپل زیار ایستونکی یې چی کوی اودا زموږ بین ـ المللی هیله بی ځایه نده ولی چــی تل داسی شوی ده اودنړی زیارایستونکی بی له دی چی سر حد ونه وپیژنی یالیری والی اونژدیوال په نظر کی ونیسی په هر ځای کی دخلقــی انقلابونو ملاتړکوی نوموږ هیله او غوښتنــه هـــم دټولی نړی له زیار ایستونکو څخــه همداده چی هیواد ونه زموږ انقلاب ته په نوکی په ښه سترګه نه ګوری اوبی اهمیته یـــی څرګندوی او غواړی چی داسی یی وښیی چی ګواکی دا یو محلی انقلاب دی او کوم داسی خاص اهمیت نلری دوی باید همداوواپی څکه چی زموږ انقلاب په دی سیمه کی دتاریخ نوی پاڼه رااړولی ده او څرنګه چی دوی استثمـار کوونکی دی ، نو باید په ښه سترګه ورته ونه ګوری .

استثمار ګران هر چیری چی وی زمـــــوږ دوستان نه دی او زیارایستونکی هرچیری چی وی زموږ دوستان دی دغه ده زموږ لاره .

زموږ هیله له ټولو دولتو څخه هـــمداده چی زموږ انقلاب ته په درنه سترګه وګوری او موږ پریږدی چی دخپلی ټولنی په ودانولو کی هلی ځلی وکړو او هغه ټولنه جوړه کړوچی هلته هیڅ ډول ستم نه وی، نه طبقاتی ستم، نه ملی ستم نه کوم ګروپی اونه کوم انفرادی ستم اوس څــوک دا حــق نلـــری چی افغـانستان نه وورووسته پاتی هیواد ووایی ولی په د ی کی شك نشته چی افغانستان له اقتصادی لحاظه وروسته پاتی ساتل شوی دی .

موږ دامنو خوو ایو چی دڅـــــور له انقلاب نه وروسته دا هیواد په لومړی درجه هیوادو کی حساب شویدی او هلتــه یی خپـل موقف نیولی دی . یعنی زموږ هیواد دهغـو هیـوادو په کتار کی دریدلی چی دسیاسی او اجتماعی لحاظ ډیر پرمختللی دی .

نوځکه موږ وایو چی په دی معنی سره نور افغانستان نه وروسته پاتی هیواد ویـــل ګناه ده اوزه وایــــم چی موږ به له دی سیاسی قدرت داقتداراو دی انقلاب نه داسی استفاده وکړواوداسی استفاده موکړیده چی واقعاً بشریت به په هغه باندی وویاړی او فخر به پری وکړی اوحتی زه ویلی شم چــــی افغانستان دخپـل انقلاب دکیفیت له پلوه دنړی له لومړیو درـ جو هیواد وڅخه دی او دادهیڅاپاره دتعجب وړنده ځکه چی موږ دافغانستان خلکو دغسی انقلاب دلته راوستلی دی چی واقعاًساری نلری او دنوی جامعی په جـوړولـو کـی هم زمـوږ اقدامات او هغه ټول ګامونه موچی اخستی دی بیساری د ی .

مثلا زموږ فرمانو نه په دوموه لږ وخـــت اودوموه لنډ ه موده کی چی لس میاشتی



زموږ گـــران مشر دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کی دخلکو په کورکی دراکټ د (۹۹) لمبر قواو د منصبدارانو سره‌دخبروپه حال کی .

وکړی اوټول هغه استثمارگران او هغه کسان
چې ددوی دبدبختی منبع دی هغه واقعا مهـار
اوخلع کړی اودځان غوندی یی په خپـل
څنگ کی ودروی او دافغانستان په ودانولو کی
په خپله له هغه څخه هم کار واخلی دغـه
ده زموږ آزادی .

ربښتیا خبره داده چې دڅور ستر انقـلاب
قدرت دزیار ایستونکـو لاس ته وروسـت
خوددی سره سم یی ستر مسؤولیتونه اوستر
مکلفیتونه هم له ځانه سره راوړل په بـل
عبارت موږ وایو چې داسیاسی انقلاب پـای
ته ورسید اواوس موږ له نورو انقلابونو سره
مخامخ یوچې دا انقلابونه هم همدغسی پـه
میړانه او جرأت سره سرته ورسوو لکـه
سیاسی انقلاب چې موسرته ورساوه مثـلا
موږله اقتصادی انقلاب سره مخامخ یو چـی
باید دافغانستان داځپـل شوی دار تـل شوی
اوله اقتصادی پلوه داوروسته پاتـی جامعـه
اصلاح کړو اوخپل اقتصادته وده ورکړو چی
داډیرستر کارونه ستری قربانی او سـتـری
هلی ځلی غواړی چې نه یوازی گوندیی باید
وکړی بلکه دافغانستان ټول زیار ایستونکی
خلك باید په دی کی ښه برخه واخلی .

زموږ انقلاب ډیر ستر انقلاب او دوامداره
دی خولکه څنگه چې موږ په لسو ساعتو کـی
سیاسی قدرت ترلاسه کړ اقتصادی انقلاب
په لس ساعته کـی سرته نـه شـورسولـی
داکلونه غواړی تخنیك ته اړتیا لری اونـور
پرله پسی کار غواړی ددی په څنگ کی بل
لوی ستر انقلاب مثلا کلتوری انقلاب دی چی
په افغانستان کـی باید راشی، ددی انقلاب
دپاره اوس ورخلاص شوی اوپیل وربانـدی
شویدی .

موږ په کلتوری ساحه کی هم ډیرورگامونه
اخیستی دی . اونور وړگامونه هم باید واخلو
مثلا دخلکو هنر او دوددستورته باید پاملرنه
نوره هم ډیره شی او دهغوی دهنر او دود ـ
دستوربشو اړخونوته وده ورکړو اوهـر ډول
خنډونه چې په دی لاره کی وی هغه لری کړو
یامثلادژبوانقلاب همدی ولی چې په افغانستان
کی ژبی ډیری ځپل شوی وی اوفقط هغه څه
استثمار گرو طبقو غوښتل هغه یی پری تحمیل
کړی وواوس موږدټولو ملیتو ژبوته واقعا په
انقلابی توگه وده ورکوو او دوی ته موقـع
ورکوو چې خپلو ژبو خپل دود دستور اوخپل
هنرته ډیره توجه وکړی اوموږ په دی لاره کی
هرډول مرسته کوو .

دادی زموږدری انقلابه اوس په شدت سره
شروع شوی دی او تاسو ځوانان اودافغانستان
ټول اوسنی نسل ددی افتخار لری چې ددغو
انقلابونوپه سرته رسولی کی برخه اخلی اوپه
دی لارکی هره ورځ خپلی وظیفی په ښه توگه
اجراکوی، خوداوخت غواړی مگرموږباید وخت
ته انتظار ونه کاږوبلکی کاروکړو وخت دغـه
دی وخت به تیرشی بیاهم که څوك کارونه کړی
په دی لارکی وخت به تیروی او بیابه هیڅ
نه وی شوی مگر زموږپالیسی ، ددولـت
پالیسی اودحزب پالیسی داده چې څرنگه په دی
دریو واړو انقلابی ساحوکی ډیر سترگامونه
اوچت کړواوپه ډیر لږوخت کی دغه خپلـی

لانه دی پوره شوی دنړی دهیڅ هیواد په‌تاریخ
کی نظیرنلری نوځکه مـــوږ نه یوازی ویاړو
بلکی داموږته نورهم قوت او انرژی رابخښنی
چی نور هم دخپلو خلکو دسعادت دپاره او-
چت گامونه واخلو .

رښتیا درتـه وایـم افغانستان اوس هغـه
افغانستان نه دی چی وایـی زمـا یی په ځه
یاخپله شوله خوره پرده دی کوه ، موږ رښتیا
وایو چی شو له او پرده دانور ه ختمه ده .

موږ ددنیاپه هرگوټ کی چی حوادث پیښ
شی او هغه دزیارایستونکو خلکو اودسولی
په تاوان وی موږ هغه ته‌په بده سترگه گورو
اوورته وا یو چی نه‌بدکوی ښه نه کوی .

یامثلا خوك چی ښه کوی هغه ته واقعا ښه
وا یو اوموږ دپخواغوندی چی ویل به‌یی (خودرا
نگهدار) په کنج کی نه یوناست ، موږ خپـل
سعادت او خپله نیکمرغی‌دجهان دزیارایستونکو
په نیکمرغی‌کی لټوواو واقعا دافغانستان خلك
باید په‌دی باندی وویاړ ی چی دغسی فرصت
یی لاس ته راوستلی دی چی نوردخپلی‌خونی
له ځلورو کونجو ځخه وتلی اودجهان په چارو
او ټولو بین المللی چاروکی په ځرگند ډول او
پوره جرائت لاس‌ږدی اوخپله‌نظریه‌اوفکر بیانوی
او په ټولو بین المللی مسایلوکی دناپییلتوب
دپالیسی په اساس قضاوت کوی .

زموږ ځینی دښمنان داتور لگوی ، چـــی
گواکی زموږ په هیواد کی دموکراسی نشته
مگر زموږته وایـــم چی زموږ په وطن کی
حقیقی دموکراسی دثـــورله انقلاب نه وروسته
راغلی ده ولی چی په بورژوازی دموکراسـی
کی کارگران ، بزگران او ټول زیار ایستونکی
ددی دپاره آزدی لری چی آزاد وږی وگرځی
آ ز ا د لـو څ و گـر ځـی ، آ ز ا د بی -
کوره وگرځی او آزاد مړه شی مگر زموږ آزادی
داده چی خلك په آزادی سره ډوډۍ لاس ته
راوړی ، په آزادی سره‌کور لاس ته‌راوړی،
په آزادی سره خپل کالی وگټی او خپل هیواد
ته خدمت وکړی دا آزادی او هغه آزادی ځمکه
او آسمان فرق لری ، یعنی هلته دستراکثریت
دخواریو او نکبت دپاره آزادی‌ده خویو کوچنی
اقلیت چی شمیر یی په سلوکی دری ځلور-
وتنو ته هــم نه ورسـېږی خپلی میلی او
چرچی‌کوی اونوروته وا یی‌آزادیاست ځی‌که‌وږی
گرځی اوکه‌تږی‌گرځی‌اوکه‌هرځنگه‌یاست ځکه
چی تولیدی وسایل تری‌کوچنی‌اقلیت اخیستی
دی اوپولیس ، عسکر ټول داستثمار گرو په
لاس کی دی خلك هر شی غوښتلی هـــم
نشی‌چی ویی غواړی یاهلته‌یوه مظاهره وکړی
داټول دپولیس تر ټوپك لاندی وی ، مثـلا
چی ووایی زموږ معاش زیات کړی نوهغه هم
کومه گټه نه ورته کوی اوکه چیرته سیاسی
واگی په خپل لاس‌کـــی اخیستل وغواړی نو
استثمارگران هځه کوی چی داسی یی لــه
نکړی شی ، نو مـوږ دغســی دمـوکـراسی
مینځـــه یو سـی چی بیـــا سر جگ
نکړی شی ، نو مـوږ دغسی دموکـــراسی
نه غواړوپه‌افغانستان کی موږدغسی دموکراسی
غواړوچی زموږ خلك له احتیاج او ضرورت نه
خلاص شی اوپه دی کی آزادوی چی دخپـل
احتیاج درفع کولو دپاره هر اړخیزی هلی‌ځلی

نیمگړتیاوی لری کړواودخلکو دسعادت موجب شو. دافغانستان دخلکودموکراتیک گوندا ودولت دولت‌هیڅ وخت‌دخلکوپه‌فردی‌آزادی‌باندی هیـڅ ډول قیودنه ږدی اونه یی ایښی دی . موږالبته دهغی فردی آزادی مخالف نه یو چی دټولنی له ښیگڼو سره تصادم ونه‌کړی موږ دغـه آزادی گانی هیڅ وخت نه محدود وو او هغو ته لاپراختیا ورکوومثلا موږهیڅوك نه‌مجبوروو چی دی دی حتما وینښتان وخریی یادی لنـډ کړی . یادی اوږده کړی اویادی مثلا دلته لاړشی یادی هلته لاړشی یادی څه‌کوی اویا څه ترهغه ځایه‌پوری چی دانقلاب پرضدنه‌وی، ترهغه ځایه پوری چی دټولنی دښیگڼی پرضد نه وی موږبه دهیچا آزادی ته هیڅ ډول‌ضرر ونه رسوو .

البته هغه آزادی گانی چی دهغوپه پلمـه غواړی چی دخلکو انقلاب وروسته وغورځوی یاپه دی لارکی خنډونه پیداکړی موږنه، چی دافغانستان ټول خلك دانښی عفو کولی اوپه هغوباندی به واقعا ستری پابندی ولگوی موږ وایوچی فردی آزادی موږهیڅ وخت نه ده‌ځپلی اونه یی ځپومثلا هرڅوك کولی شی چی خپل ټول دوداودستور او خپل هرشی په آزاد ډول اجرا کړی مثلا دواده مراسم ، دمړی مراسم اوداسی نور .

موږحتی دوی تشویقوو چی خپل مذهبـی مراسم په ډیره ښه توگه اجرا کړی او دولت له هغو سره هرډول مرسته کوی چی خپـل دغه مراسم واقعا څرنگه چی لازم دی اودوی یی غواړی هغسی اجرا کړی اوموږ دهیچا پر آزادی باندی بندیزنه دی لگولی نه یی‌لگوو. موږبه دی برخه‌کی ددښمنانو تبلیغ په کلکه ردووا ورته وایوچی په افغانستان کی فـردی آزادی په خپله تمامه معنی سره تامین ده .

زموږگوند په خلکوکی واقعا ډیره ستره اتکا درلوده اولری یی هغه وخت چی لا موږ انقلاب هم نه وکړی زموږ حزب وکړی شول چی دخلکو ملاتړ حاصل کړی مثلا هر چیرته چی به زموږ گوند تر ضربی لاندی راغی زموږ خلکوله موږ سره مرسته کوله او حتی زموږ زندانیانو ته یی ټول ضروری شیان ورکول زموږ حزب هغه وخت واقعا پیسی نه درلودی اودومره مادی وسایل ورسره نه وو. چی خپلو ټولو زندانیانوته هر چیری چی وی لازم‌خوراك اوکالی وررسوی نودغو خلکو چی اوس‌زموږ ملاتړکوی همدغو زیار ایستونکو خلکوله موږ سره واقعا ډیر کومك کاوه . حتی زمـــوږ زندانیانوته به موږ پخه ډوډی راټوله ، پـه ولسوالیو، کلیو اونورو ځایو کی به زمـــوږ ملگرو دهغو دپاره ډوډی راټوله اوهرکورته چی به دوی ورغلل ورته ویل به یی چی‌خلقی ځوان په دی نسبت بندی دی چی ستاسو حق غواړی اوغواړی چی له تاسونه ظلم ایستـــه کړی نودی ظالمانو بندی کړی دی .

واقعا خلکو له موږ سره په پراخ زړه او په ډیره ښه حوصله مرسته کړیده زموږزندانیان هرچیری چی ووښه یی نازول او هر رنگــه مرستی چی ددوی له لاسه کیدلی هغه یـــی

ورسره کولی نومقصد دادی چی دافغانستان خلکو دافغانستان دخلکو دموکراتیك ګوند ته په درنده سترګه کتلی دی اواوس یی په خپلوسترګوولیدل چی داګوند چی دوی تقویه کاؤ ددوی دپاره او ددوی دښیګڼو دپاره هغه کارونه کوی چی دافغانستان په تاریخ کی ساری نلری. دزیار ایستونکو په مقابل کی زموږ مسؤولیت درووند دی .

نوزه ځکه خپلو انډیوالانو او خپلوملګرو ته په ټینګه داوایم چی دوی له خلکو څخه جلانشی په خلکو کی واوسی اوپه خلکو یی داسی اتکاوی لکه چی پخوازموږ پری اتکاوه. زه یو ځل بیاوایم چی زموږ ملګری هیڅ حق نلری چی له خلکو څخه ځان لوړ وبولی . بلکی باید ځان دخلکو خدمتګـار احساس کړی اولکه څنګه چی یی دخلکو خدمت ته ځانونه وقف کړی دی همدغسی یی نور هم وقف کړی اوپه خلکو کی واوسی دخلکو غوښتنی ځانته معلومی کړی چی دوی څه شی غواړی او خلك چی ددوی کومی غوښتنی ردوی دقناعت له پاره دهغو په باب دولت ته معلومات ورکړی حزب ته معلومات ورکړی او خپـل نظریات وړاندی کړی . له ګوندی ملګروڅخه زموږ غوښتنه داده چی باید په ډیر جرأت اوپه ډیرو ښو اخلاقو اوپه عالی کرکتر سره له خلکو سره سلوك وکړی په خلکو کی دننه واوسی اوقطعا له خلکو څخه جلا نشی اودادی نه وایی چی داخلك بیسواده دی البته بیسواده پریښودل شوی او بیسواده ساتـل شویدی مګر دازموږ دګوند، زموږ دځوانانو،

زموږ دزیار ایستونکو خلکو اومنورینو وظیفه ده چی څرنګه پدی خلکوکی واوسی او دوی ته سیاسی او طبقاتی شعور ورکړی او دوی په ګوند اوسازمانوکی هم تنظیم کړی .

اوس موږ په دی باندی ویاړوچـی پـه افغانستان کی هرډول سازمانونه شته چـی خلك پکی تنظیم شی او دخپلو ښیګڼو دپاره هلته مبارزه وکړی مثلادکارګرانو اتحادیی ، دځوانانو سازمانونه ، دښځو سازمانونـه ، دبزګرانو کوپراتیفونه او دنورو اهل کسبه ؤ کوپراتیفونه په تمامه معنی وجود لری او نور هم موږدوی ته وده ورکوو چـی د افغانستان خلك په دی کی راټول شی اودخپل ژوندښه کولو دپاره هلته فعالیت وکړی تردی ښـه دموکراسی هیڅ چیری نشته‌که وی همدغسی به وی .

موږله نورو هیوادو سره داسی خاصـی ستونزی نلرو، یوازی یوسیاسی اختلاف چی له پاکستان سره لرو هغه دپښتنو او بلوڅو دملی حقوقوپه باره‌کی دی چی البته دااختلاف نوی ندی دا اختلاف ډیر اوږد تاریخ لری او حتی له یوسل اوشلو کلونه دزیاتی مـودی راهیسی دوام لری . ددی اختلاف په سربه‌کله نودی جګړی اوکله به سړی کیدلی او داده موږپه ټینګه داپتیبیلی اودی ته موملاتړلی ده چی دا اختلاف له پاکستان سره واقعا په‌روغه اوپه وروری سره حل کړو .

داچی وایو اختلاف په روغه سره حل‌کوو، معنی یی دانده چی چاته کوم امتیاز ورکوو بلکی دازموږ دسولی غوښتنی پالیسی ده چی

هرچیرته یی چلوواودلته هم غواړو چی دسولی غوښتنی او ښه ګاونډیتوب په اساس ټـول مسایل له هرچاسره په تیره له پاکستان سره حل کړو اوموږ به هیڅ ډول مستقیم او غیر مستقیم فشارونه په دی باره کی ونه منو .

موږوایو چی زموږ دانقلاب دمشعل خواته دی ځوك نه راپورکوی داموږ یوازی یوه مملکـت ته نه، بلکی هرچاته وایو موږچاته انقـلاب نه صادروو البته لکه څه چی پخواموهم وویل موږ دټولو زیار ایستونکو خیر غواړو هغـوی باید طبعا زموږ خیرهم وغواړی دغه دی زموږ سیاست چی د روغی جوړی په اساس باندی ولاړ دی .

دنورو ګاونډیو هیوادوپه باب وایو ، چی البته له ایران سره زموږ همدردی وه او ده په دی خوشحاله یوچی هلته بالاخره وینـی تویول بند شویدی او اوس هلته یو دولت منځ ته راغلی دی چی غواړی خپلی چـاری تنظیم کړی . موږوایو څه چی ایرانیان غواړی هغه دی وشی اوکیږی اوهماغسی وشول موږ دهغو په کورنیو چاروکی هیڅ لاس نه د ی وهلی اونه یی وهو همداډول له هرچا څخـه داهیله لروچی زموږپه کورنیو چارو کی لاس ونه وهی اوزموږ پرضدنه تبلیغات وکړی اونه په عمل کی‌کوم کار وکړی داده زموږپالیسی.

په ویتنام باندی د چین تیری واقعا زموږ دتاسف سبب شو. تاسو خبر یاست چی موږ په دی باره‌کی پرون یوه اعلامیه خپره کړه اودابیاوایو چی دویتنام له خاوری څخه باید ټول بهرنی قوتونه ووځی اوویتنامیان پریږدی چی خپل هیوادودان کړی زموږ پالیسی هـم په دغسی اساس ولاړه ده موږهیڅکله له دی څخه نه ډاریږوچی خپل نظرپه دی باره کی څرګند ووایو. څکه چی موږښه ته ښه وایو اوبدته بد. تعرض هرچیری چی وی غندو یی اوجګړه په هره سیمه‌کی چی وی بده یـی ګڼوپه تیره بیاله هغو هیوادوسره چی پـه زیارا یستونکو پوری اړه لری هلته موږتعرض نه یوازی غندوبلکی په کرکه هم ورته ګورو اوغواړو چی ژرترژره دغه موضوع حل شی .

په پای کی زه یوځل بیاتاسی زلمیان، خلقی افسران، ستاسو تاریخی رسالت او تاریخـی وظایفو ته ملتفت کوم او ستاسو پام یو ځل بیادی ته راګرځوم چی ستاسو پراوږو خورا ستر مسؤولیتونه پراته دی ، لکه چی می درته وویل انقلاب دوام لری هلته حتی په ځلورو ساحوکی دوام لری، په سیاسی ساحه کـی خوموږ انقلاب بریالی کړ، بریالی شوو مګر لادوام لری، دوام په دی‌لری چی باید له‌داخلی اوخارجی دښمنانو څخه یی وساتوبل اقتصادی کلتوری او ژبنی انقلابونه ، چـی اوس پـه افغانستان کی روان دی ، دهغو دبریالیتوب له پاره هم ډیری هلی ځلی په کاردی څکـه نوستاسو تیاری، ستاسو ټولی هلی ځلی‌دلته ډیری مطلوبی دی اوباید تاسو تر هغه پوری چی موږ پوره بریالی شوی نه یوټوپك کښی ګه ږدی ، له ماشی ګوته ایسته نه کـړی ترهغو پوری چی موږ بشپړ بریالی شوی نه‌یو په افغـانستان کی مو دهغی ټولنی بنسټ په بشپړه توګه نه‌وی ایښی چی هلته دسـړی

ځکه دسری استثمار نه وی تر هغو پوری په تاسو نه له الوتکی راښکته کیږی نه په له ټانګه راښکته کیږی اونه په ټوپك لاوزی ځکه راکښته کړی دادی له تاسو ځکه زما غوښتنی تاسوته معلومه ده ، خوزه بیا یوځل اعلاموم چی دولت په افغانستان کی هیڅ ډول امنیتی ستونزی نلــری، د افغانستان ټــول زیارایستونکی زموږ په څنګ کی ولاړ دی، دوی زموږ پرڅنګ ودریدل ځکه چی زمــوږ اوددوی ګټی بالکل ګډی دی،موږکومی جلاګټی نلرو بلکی ددوی ګټه زموږګټه ده موږ ددوی په څنګ کی ولاړیو اودوی زموږپه څنګ کی ولاړدی اوهیڅ ډول تشویش هم نلرو مګربیاهم موږددی دپاره چی په ډیر اطمینان او سره سینه خپل پلانونه اجرا کړو نوموږ خپلــو زامنوته په اردوکی اوهم په دی بل اړخ کی یعنی په ملکی ساحه کی، منورینو ته اوهمدا راز کارګرواو بزګروته وایوچی تاسو خپل ګوند ډیر ټینګ او پیاوړی وساتی اودارډو ځوانان باید نه یوازی دخپل ګوند دټینګښت دپاره کاروکړی بلکه ددی هڅه هم وکـړی چی خلکوته نورهم ښه فرصت پیداشی، چی تردی توری لاندی خپل کارونه نورهم ښــه اجرا کړی .

البته له تاسو سره له تاسو ځوانانو سره هرچیرته چی یاست اوله دی اوسنی نســل سره زماهمدردی ده ، خوپه یوه لحاظ باندی درسره رشك هم لرم هغه داچی دافغانستان نوی جامعه ستاسو ترتوری لاندی اوستاسو تر رهبری لاندی یعنی دټولو خلقی ځوانانو، خلقی ګوند اوددوی تررهبری لاندی جوړیږی واقعا داډیره قربانی هم لری، ډیر محرومیتونه هم لری مګر ډیر ستر ویاړهم لری اوداستر ویاړ واقعا ددی وړدی چی سری قربانی ته هم غاړه کیږدی ځکه چی په دنیاکی تل داسی شویدی چی یوه نسل ددی دپاره قــربانــی ورکړی ده چی نورنسلونه ښه آرام ژوندوکړی تاسووګوری ستر کارګری جهانی انقلابونــه چی شویدی خلکوپه ملیونو ملیونو قربانــی ورکړیدی او خورا لوړی ، تندیی ګاللی دی کورونه یی د استثمار ګرانوله خوا ســوزول شوی اوحتی امپریالیستی وسله والی مداخلی هلته شوی ډیرخلك یی دهغوی دښځــــو او کوچنیانوسره وژلی او کوروته یی اوروراچولی دی بیاهم خلك په خپل دریځ باندی ټینګ پاتی شوی اوخپل وظایف او خپل تاریخــی رسالتونه یی پرځای کړی دی اواوس دوی ډیره مرفه جامعه لری اوس هغه شیان هیڅ نه شته مګر داسختی ټولی بل نسل ګاللــی دی .

اوزه تاسوته وایم چی زموږشرایط ډیرښه دی موږخپل انقلاب په ډیرولږو تلفاتو سره وکړو اوس هم په حداقل قربانی باندی مــوږ کولی شوچی دافغانستان نوی ټولنه یعنی هغه ټولنه چی پهخپله دافغانستان زیارایستونکی یی غواړی جوړه کړو داډیر دویاړ ځای دی .

زه یو ځــل بیا تاسی ځوانانو ته دا وایمه چی واقعا دافغانستان په تاریخ کی هیڅ نســل دغسی ستر افتخار او دغسی ستر ویاړترلاسه کړی ندی کوم چی تاسو اوزموږ دخلقی ګوند

ټولو غړیو ترلاسه کړیدی او اوس بایدموږ او تاسو اودافغانستان ټول خلك ددی سترویاړ دساتنی دپاره ډیر کار وکړو.

زموږ حقیقی ویاړپه دی کی دی چی خلکو ته ډوډی، کالی، کور تهیه کړی شو اودادوی په خپله تهیه کوی ولی چی خلکوته هیڅوك هیڅ شی نشی ورکولی بلکی خلك یی په خپله ځان ته پیداکوی دادخلکو قوت اوقدرت دی چی په خپله خپل ځانته کاروکړی زموږ دګوند اوستاسو ځوانانو اوزموږ دځوان نسل وظیفـه په داوی چی دوی رهبری کړی دوی ته ووایی چی پردغه لارپدی وسایلو باندی تاسو کولی شی چی دخپل سعادت دتامین دپاره کاروکړی نورخو نوخلك هرشی په خپله کوی .

بیا یوځل درته وایم، که خلکو نه غوښتی داګوندبه نه ؤکه خلکونه غوښتی نه به زه وم نه به ته وی نوخلك یی غواړی خلکو مـوږ غوښتی یوزموږ ګوند خلکو غوښتی دی نو ټول ویاړدافغانستان دزیار ایستونکو خلکو نـه دمفت خوروپه برخه دی .

ژوندی دی‌وی دافغانستان زیارایستونکی خلك!

زه خپل سلامونه او احترامونه نه یـوازی ستاسو قطعوته بلکه په افغانستان کی ټولی اردو اوټولو حزبی ملګروته رسوم او هـــم دافغانستان ټولو زیار ایستونکـــو ته خپـــل احترامونه وړاندی کوم .

# موږ باید د تولیدی قوا وو د ودې په اثر د خلکو په شعوري کې انقلاب راولو او په ټولنیزې کلتوري انقلاب عملي کړو

دافغانستان دعلومو اکاډمي د پرانستلو په مناسبت زموږد ګران لارښود دافغانستان دډموکراتیک جمهوریت دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کي پیغام . ۱۳۵۷/۱۲/۲

درندو پوهانو، ګرانو خویندو اوورونو !
خویندو وطنوالو !

نن زموږ هیواد او خلک یوه داسې خوشحالوونکې تاریخي پیښه نمانځي چې هغه زموږ دثور پرتمین انقلاب له محصولاتو څخه ده . داپیښه دافغانستان دعلومو داکاډمي افتتاح ده، چې زموږ دخلکو په تاریخ کې یوه په زړه پوری څلانده پیښه ده زموږ په هیواد کې علم اوپوهه ډیری ژوری ریښې او لرغوني عنعنه لري اماپیړی په پیړی په دې خاوره کې علم یوازې دحاکمو طبقو په خدمت کې ؤ ، یوازې دمستبدینو او استثمارګرانو کوچنۍ ډلې دعلم خوږې میوې خوړلې .

په خپله دافغانستان خلک چې دژوندرښتینې جوړوونکي دي، او په دې خاوره کې ټولې ښکلاوې ددوی دلاس محصول دی دعلم اوپوهې نه محروم ساتل کیدل .

دپوهې رڼااو دعلم ځلانده لمر، په خلکو ډیرلږ لګیده . له علم څخه ګټه اخیستل، تل طبقاتي خصلت لري دغه طبقاتي خصلت دعلم په استعمال کې لیدل کیږي . پخوا دزیارایستونکو دپاره ډیره مشکله وه چې عالم شي، تحصیل وکړي اویادعلم دتحصیل امکان پیداکړي ترڅودخلکو دپاره خدمت وکړي . که چیری دځینو کارګرانو اوبزګرانو زامنو دتحصیل امکان پیدا کړی هم وی، دهغو دهر یوه په مقابل کې په سلګونو داستثمارګرانو بچیوته دعلم اوتحصیل عالي شرایط میسر ؤ نودزیارایستونکو بچي بهچې عالم شول یابه یې

سخت ستم گاله اویابه مجبور وو چی دحاکمه طبقو داهدافو **دپاره کار وکړی .**

زمونږ دهیواد په تاریخ کی دلومړی ځـل دپاره د۱۳۵۷ کال دثور پرتمین انقلاب چـی دخلکو ددموکراتیک ګوند په رهبری بریالی شو، دزیار ایستونکو خلکوپه ګټه سـرتـه ورسـید .

زمونږ دعلومو اکاډمی جوړیدل هم دثـــور دانقلاب دبریالیتوبونو څخه یوبریالیتوب دی. اوس دلته هم علم دزیار ایستونکو خلکو به خدمت کی دی، اوپه وفاداری سره دخلکـــو دپاره خدمت کوی او باید په هره وسیله چی وی دنوی ژوند دجوړښت دپاره خدمت وکړی. په اوسنی نړی‌کی علم مهم اجتماعی رول په غاړه لری، زموږپه عصرکی په خپله دتولیدی قوی دودی اوتکامل ستره محرکـــه وسیلـه ګرځیدلی ده زموږپه هیوادکی دعلومو اکاډمی دعلم دپراختیا دمخکښی په څیره باید دهیواد دتولیدی قواوو دودی اولوړتیا سره مرستـه وکړی . داځکه چی تولیدی قواوی دمـادی اومعنوی تولیداتو اســاس او بنیـــاد دی .

دژوندانه دوسایلو تولید زمونږ دټول اجتماعی ژوند بنسټ دی . پرهمدغه بنسټ زمـونږ پـه هیوادکی‌دآزادی، عدالت، برابری‌اوغوړیدونکی ټولنی ستنی ولاړی دی .

دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت عالمانو!

زمونږ ټول خلک اودخلکو دموکراتیک ګوند په دی پوره باور لری چی دعلومو ټولی‌ځانګی کومی چی داکاډمی په تشکیل کی شـــودل شویدی، په پرله پسی اوموثره توګه به زمونږ په هیوادکی دنوی ټولنی په جوړښت‌کی فعاله برخه واخلی . ددی دپاره چـی دخلکوسیاسی اواجتماعی شعور لوړشی باید ددوی اقتصـــاد اوکلتور پرمخ ولاړشی .

موږباید دتولیدی قواودودی په اثر دخلکو په شعور کی انقلاب راولو اوپه ټولنه کـــی کلتوری انقلاب عملی کړو .

موږباید دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دخلکو ټولی ژبی او د هغـــوی ادبیــــــات دانترناسیونالیزم دپرنسیپ په اساس پـــوره مطـا لعــه کـړ و ، د ا ځکـه چـــی د پرنسیپ زمونږ دخلکو ددموکراتیک‌ګونداساسی پـــرنسیـپ دی ، زمـونږ د هیـــواد ټـــو ل خلـــک کـه د هیواد په لـویدیځ کـی د ی یاپه‌ختیځ‌کی، که‌په‌شمال‌کی‌دی، یاپه‌جنوب‌کی اوس په پوره برابری ا و وروری کی ژونـد کـــوی.

**کوم ادیبان، ژبپوهان، فلـکلوریستان او سوسیالوژیستان چی دعلومو په‌اکاډمی کی‌به کار وکړی باید دخپلو خلکو په‌مادی اومعنوی وده‌کی برخه‌واخلی ،دبی سوادی په‌ضدمبارزه کی ددوی برخه هم‌ډیره‌ستره ده.**

**زمونږ دعلومو اکادمی طبیعی علوم بـــا ید** زمونږ دهیواد دطبیعی شتمنیو اوطبیعی ذخایرو **خصوصیات مطالعه کړی ،دژوند محیط ،دمعدنی** ثروتونو داستعمال لاری او درکونه دملیونـــو **کارګرانو اوبزګرانو دژوند دسویی لوړولـــو** دپاره‌وڅیړی،که څه‌هم‌چی‌ددی علوموپه هکله زمونږ تجربه زیاته نه ده، ولی موږ باید زیار وباسو چی په‌هراړخیز ډول دی **علومو تــــه**

انکشاف ورکړو ، دثورانقلاب نه‌وروسته زموږ دخلکو اقتصادی اواجتماعی ټوله‌وده په‌علمی بنسټونو درول‌شویده.

موږ باید دخپل هیواد دنباتاتو او حیواناتو جهان په‌پوره دقت‌سره مطالعه‌کړو.

دثور دپرتمین انقلاب لاتراوسه کال نه‌دی پوره شوی په‌دی لنډه موده‌کی چی‌دخلقی‌نظام داستقرار نه‌تقریبا لس میاشتی تیریږی،زموږ گرانو هیواد والو په‌انقلابی افغانستان کی ستر سیاسی ،اجتماعی اواقتصادی تحولات ولیدل اوددی تحولاتو سلسله پسی روانه ده موږ که په دی لنډه بیانیه کی نه‌شو کولای چی‌دخلقی دولت‌ټول پرمختگونه یوپه‌بل پوبیان‌کړوولی ددی خبری کول به‌ضروری وی چی‌په افغانستان کی دانقلابی تحولاتوله عملی کیدونه‌حتی زموږ دشمن هم سترگی نه‌شی پټولای په‌هیواد کی دعام اوتام ملی امنیت اوسولی تامین په‌انقلابی، اجتماعی تحولاتوکی دگڼوپرگنو برخه اخیستل اودهغوی ملاتړ هغه ستر ویاړ دی ، چی هر دوست یی په لیدو خوشحاله کیږی خوددښمن سترگی سوځوی په هیود کی دټولو فرمانونو عملی کیدل، خصوصا د۶،۷،۸ لمبر فرمانونو تطبیق نه یوازی دسیمی په‌تاریخ‌کی مثال نه‌لری، بلکی دسیمی په ارتجاع اوبین المللی امپریالیستی ډلو ټپلویی بی‌ساری زلزله راوستلی ده.

همدا دلیل دی‌چی مسلمان ډوله پرنگیان یااخوان الشیاطین دخپلوامپریالیستانو بادارانو په‌لمسون دثور انقلاب اوټولو وطنپرستانو په ضد بی‌شرمانه تبلیغات خپروی اوپه‌هر ډول ضد انسانی کرامت عمل لاس‌پوری کوی،خو دادی دهغه دسیاسی بنسټونو په‌ړنگولوپسی مودهغو ارتجاعی ذهنی اواقتصادی ځلی هم ړنگ کړی اوړنگوویی په‌خوشحالی سره‌وایو، چی دافغانستان ټول زیار ایستونکی خلک دخپل انقلاب نه‌بی ساری حمایه کوی او په افغانستان کی دداسی ټولنی‌جوړولو په‌لور په بیړه روان دی چی دلته به دانسان په‌واسطه دانسان استثمار دتل‌دپاره ورک شی هرڅوك به‌دخپل استعداد په‌اندازه کارکوی اودخپل‌کارپه اندازه به‌مزداخلی .

دافغانستان دخلکو دموکراتیك گوند مرکزی کمیټه دافغانستان دده‌وکراتیك جمهوریت انقلابی شورا، اوحکومت اوټول افغان اولس هیله‌لری‌چی دعلوموپه اکاډمی‌کی وطنپالونکی، غښتلی اوانقلابی پوهان به‌په افتخار، دخپلو خلکو په‌مقابل کی‌خپلی وظیفی په‌بریالیتوب سره سرته ورسوی.

موږ پوهړو چی دپوه اوانقلابی عالمانو په مخ کی‌لار آسانه نه‌ده، دوی باید ډیرمشکلات له‌مخی لری کړی موږیقین لروچی زموږانقلاب به‌ددوی‌دپاره الهام‌لږیه‌اوپرله پسی منبع وی

آباد او غوړید ونکی دی وی گران افغانستان !

بریالی دی‌وی دافغانستان دخلکو دموکراتیك گوند،

خپری‌دی‌وی زموږدپرتمین‌انقلاب‌ځلانده پلوشی!

مړه دی وی دثور دپرتمین انقلاب دښمنان !

# دمارچ داتمی نیټی دښځو دیوالی دنړۍ والی ورځی له امله پیغام

**دمارچ دا می نیټې دښځو دیووالی دنړۍوالی ورځی له‌امله دخلکو دګران اوسترلاربنود دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی‌شورا درئیس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کی دپیغام متن.**

**۱۷ر۱۲ر۱۳۵۷**

گرانو خویندو او ورونو!

سږکال دمارچ اتمه دښځودپیوستون نړۍ‌والې ورځ په‌داسی حال کی نمانځو چی‌زموږ په‌لرغونی هیوادکی دثور پرتمین انقلاب د یو کارگری پوره نوی طراز گوندپه‌توگه ، دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند په‌مشری بریالی شوی اودخلقی دولت په پوره ټینگښت سره دایده‌آلی ټولنی ، دنه پخلا کیدونکو طبقاتی تضاد ونو څخه دلری او له‌فرد څخه دفردله استثمارنه دخلاصی ټولنی درامنځ ته کیدو لاره بیخی آواره شویده.

دثور پرتمین انقلاب لکه څنگه چی یی دهیواد زیارکښو نارینه دستم او محکومیت دوولو نوله منگولو څخه وژغورل دوطن رنځیدلی اوشریفی ښځی‌یی هم چه‌له هر ډول دموکراتیکو حقوقو اوله خورا طبیعی انسانی حقوقو څخه بی‌برخی وی ، داسارت له ځنځیر څخه‌خلاصی کړی اوهغوی ته‌یی حق و رکړ چی‌په آزاده توگه خپل مقدرات په خپله وټاکی.

زموږ هیواد میړنو ښځو چی‌د پیړیو پیړیو په اوږدوکی‌یی زموږ له‌وطنپالو نارینه وو سره اوږه په اوږه دبهرنیو دښمنانو او دستمگرو کورنیو استثمار گرانو په‌ضد، اودفیودالی دمنځینو پیړیودورستو سننو دمتعصبومدافعانو په‌خلاف زړوره مبارزه کړیده، دافغانستان په‌ویاړلی تاریخ‌کی ځلانده مخونه لری لاتر اوسه هم دجابر وزور ورو په وړاندی دبلخی رابعی له‌میړانی ډك مقاومت ، اودخپل‌سرنوشت په‌ټاکلو کی دښځی دآزادی له‌مقدس حق څخه ددفاع دپاره دفیوډالی داسارت‌نه ډکودودونو په

وړاندې دهغې ځنځیر ماتوونکي پاڅون په نمانځنې اوقدر دانې سره یادیږي اوزموږ دهیواد دښځونه ماتیدونکي اراده دانساني غرور دافسانې په توګه یونسل څخه بل نسل ته لیږدي.

لاتر اوسه هم دانګریزي استیلاغوښتونکو په مقابل کې دملالې، ددغې ویاړلې جنګیالۍ لورنه پخلاکیدونکې جګړه اودوطن له آزادۍ څخه ددفاع په لاره کې د هغې له قهرمانۍ نه ډکه سربښندنه لکه دستري ملي حماسې په توګه په تاریخ کې ثبت ده، اوتل دپاره به دهیواد دځوان نسل دپاره دالهام منبع وي .

دافغانستان رنځیدلې ښځې نه یوازې داستبدادي ضد اودخپلواکۍ غوښتنې په مبارزوکې دنارینه‌و ملاتړي اودسنګرملګرې دې بلکې دمادي تولیدپه ډګرکې هم پیاوړې برخه لري اوآن په سختو تولیدي کارونوکې یې له نارینه و سره اوږه په اوږه برخه‌اخیستې ده.

دفیوډالي نظام په شرایطو کې چې د منځنیو پیړیو تیارې په ټولو ځایونو لمن غوړولې وه زموږ دهیواد بااحساسه ښځو ډول ،ډول علومو اوفنونو ته‌مخه کړله‌اودپتنګ په‌شان‌دپوهې او معرفت درڼاپه لټه‌کې وې ، خو دفیوډالي زړو دودونو او سنتو لکه دتور ځنځیرپه‌توګه دهغوی پښې اولاسونه تړلي‌وه، اودپلارواکۍ اړیکو هغوی دکور په‌څلور دیوالونوکې په اسارت کې‌ساتلې اونه‌یې پریښودلې په‌هغو تیارو شپوکې دپوهې اوعلم رڼادهغوی ژوند روښانه کړي.

دنادر داود خپلواکي وژونکي رژیم، چې په‌خپل ماهیت‌کې په‌ژوره توګه ملي ضد او دموکراتیك ضدو دښځو ددموکراتیك نهضت‌له ودې څخه په‌کلکه ویریده اودهغه دمخنیوي دپاره یې‌له‌هرې وسیلې څخه کاراخیست.

دښځو دتش په‌نامه سازمانونو جوړول ،چې ددربار دمعلوم الحاله ګوډاګیانو له خوا اداره کیدل اودښځو دذهنیت داړولو اودطبقاتي اصلي مبارزې له‌لارې‌څخه‌دهغوی دبې‌لارې کولو په مقصدشریفو اوزیارکښو ښځو باندې دهغوی درهبرۍ دتحمیلولو دپاره هڅې دخلکو ددښمنانو ددسیسو یوه برخه بلله کیده.

خوزموږ مخکښې ګوند دافغانستان د خلکو دموکراتیك ګوند دخپل تاسیس له‌هما غه‌پیل څخه دښځوجنبش ته‌په ژوره توګه انقلابي پاملرنه څرګنده کړه اودخپل ژغورنده مرام دلار ښوونو له‌مخې په‌هغو درندو ټولنو مظاهرو او مارشونو کې چې په‌ټول هیواد کې کیدل له‌نارینه وسره یې دښځودحقو قو دبرابرۍ او خپلواکۍ دفاع وکړه اودافغانستان دښځود خلکي سازمان په‌جوړیدو سره دهیواد ډیرې پوهې رنځیدلې اوهیواد پالونکې‌ښځې‌یې سره‌یوموټې کړې اودفیوډالي حکومت ددسیسو په‌افشاکولو اوداشراف زادګانو دقلابي سازمانونودماهیت په رسواکولوسره یې دښځو دخلقي نهضت لاره اواره کړه هغه کړکیچنه اوله خنډونو ډکه لاره ،چې زموږ ګوندوهلې

ده دخـــلکو دویاړ او د ژ غورنی د ښتینی لاره وه•

دافغانستان دخلکو دموکراتیك گوند دهیواد دکارگری طبقی مخکښ، پهمشری دثوردستــر انقلاب پهبریالیتوب سرهچیداردودخلقی زړه ـ وروافسرانو او دهیوادپالونکو سر بازانو پـــه انقلا بـــی اوزړه وری برخی اخیستنـــی سره ترسره شواودافغانستان په خوزره کلن تاریخ کی دلومړی ځلدپاره دافغانستان د خلکـــو ددموکراتیك گوند پهمشری سیاسی قـد رت لهستمگرو واکمنو طبقو څخه دهیواد کارگری طبقی تهولیږ داوه دښځو دمحکومیت دربړ او عـذاب نهړکه لړی پای تـــهورسو له شوه•

دثور انقلاب دهیواد دښځو پهوړاندی پرا خه ځـلانده افـق پرانستی اودهغوی لپاره یـی داسی شرایط برابر کړیدی چی کولای شی ددغه پـراخه ډگر ډیـرو لـرو بر خو تـــه والوځی•

لکه څرنگه چه شپږمیگنی فرمان دهیـــواد په ملیونونو زیار ایستونکی بزگران داستثمار گرانو دسود، سلم، گروی او وحشیا نـــه استثمار څخه خـلاص کـړل اودفیوډالیـــزم بنسټونهیی ړنگیدوته تیارکړل لکه څرنگـهچی اتمه گڼه فرمان دنابود وونکی اوغوځ گوزارپه توگه دفیوډالیزم پهلړزنده ککری وشو، اودهغه بریالی تطبیـق پهپوره ویاړلی توگه رواندی•

دانقلابی شورا اوومـی گڼی فـرمان د هیـواد دښځو له لاسونو څخه داسارت تور ځنځیرونه خلاص کړل، دژوند دملگری پهټاکلو کیـــی دوی پـــوره آزادی اونـاریـنه ورسـره ددوی دحقوقو برابری تضمین کـــړه . اودفیوډالـــی ورستو رواجونو اوقبیلوی اوپلارواکی دبیر ته پاتو مناسبا و لهمنگولو څخه یی دهغـــوی دپوره خلاصون اعلام وکړ•

اوس دافغانستان ښځی زموږ دټولنی نیــمه متساوی الحقوق په توگه کولای شیدتولـــو حقوقو اودموکراتیکو آزادیو څخـه برخورداری اوسی، دهغوی داستعداد ونو دودی اوهعنـوی تکامل ټول امکانات برابریږی•

دافغانستان ښځی کولای شی دژوند پهټولو برخوکی پهعمومی توگـه، اقتصادی ،سیاسی ټـولنیـــزواو فرهنگی برخو کـــی خلاقـه او ټولنیزواو فعاله برخه واخلی اودنوی ټولنـــی دداسی ټولنی دجوړوونکو دمهم جزپه تـو گه چی پههغی کی به له فرد څخه دفرد داستثمار نښه نهوی ، ټول به دیوه دپاره او یو بـــه

دټولو دپاره کاروکړی اوهلته بهدښځیآزادی اوواقعی ژیکمرغی تامین شیاوخپل جوړونکی رول سرته ورسوی.

دوخت څخه پهاستفاده سره دمارچ اتمه دښځو دپیوستون نړیواله ورځ دافغانستان د ښځو خلقی سازمان د ښځو دخلقی جنبش د غه مخکښی ، د هیواد ټولو زیار ایستونکو اوهیواد پالو ښځواودغه راز دښځو بین المللی فدراسیون ته مبارکی وایم.

اوښځو تهدجګړی اوامپریالیزم پر ضداوپه ټولو نړی کیدسولی پهخاطر پهمبارزهکی بریالیتوب غواړم .

ژیکمرغه دی وی دمارچ اتمهدښځودپیوستون نړیواله ورځ !

بریالی دی وی په ټوله نړی کی سوله !

مړه دی وی جګړه مارطاقتونه !

دافغانستان ددمو کراتیک جمهوریت دانقلابی شورا رئیس اوصدر اعظم

(نورمحمد ترهکی).

# دخپلي خوښي کار دثور دانقلاب پلمه سیوه ده
# چې ټولنې ته یې په دي

## لسو میاشتو کې ۱۲۰ ملیونه افغاني ګټه رسولې ده

دهیواد دخلکو ستر مشر او پیاوړی ښوونکی دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی د حوت دمیاشتې په ۱۹ نیټه لسه غرمې نه مخکې په لسو بجو دخیرخانې دپنځه سوه کورونو دپروژې انجنیران او کارکوونکي دخلکو په کورکې حضورته ومنل او هغوی ته یه خطاب کې وویل .

پر ما ګرانو ملګرو او وطنپر ستانو !

تاسو ته دزړه له کومې ښه راغلې وایم.

ویاړم چې له تاسې هغو کار کوو نکو سره دلته ګورم چې تاسې دپنځو سو وکورو د پر وژې په جوړ ولو کې له ویاړه ډکه بر خه اخیستې ده .

تاسو ته په دې نسبت مبارکي وایم، چې ددې پروژې په جوړولوکې مو داسې کار کړی دی چې تاسو دتحسین لیکو نوپه اخیستلو بریالي شوی یا ست او داهم ستر ویاړ دی تاسو ته بیا هم تبریك وایم.

دپنځو سو و کورو د پروژې کار وا فعالیه دې نسبت هم دستا یلو دی چې ددې پروژې په تکمیل کې زمونږ ډیرو پیغلو او ځوانانو په خپله خوښه برخه اخیستې او دا پروژه یې تکمیل کړیده زه دوی ټو لوته هم په دې ذریعه مبارکي وایم که څه هم دوی دلته نشته مګر بیا هم ددوی کار او زحمت چې په داوطلبا نه توګه یې کړ یدی د خلقي دولت او دافغا نستان دخلکو ویا ړ دی داد خپلې خو ښې کار دثور دانقلاب یوبل ثمر دی چې په افغا نستان کې یې رواج و موند او دا رواج دولت په زور نه دی کړی بلکې په خپله دافغا نستان زیار ایستو نکو خلکو په خپله خوښه دا ابتکار کړی اومونږ ته یې رازده کړل چې دخپلې خو ښې کار ډیر ښه او مثمر وی .نو ځکه مونږ په دې با ندې و یا ړو د خپلې خوښې کار ستا یو اودهغه قدر کوو څر ګنده خبره ده چې داد خپلې خوښې کار بیګا رنه دی ،داد زور او اکراه کارنه دی، داد جبر کار نه دی ،بلکې دا خلکو په خپله خو ښه کړیدی

داد پخوا نیو دولتو غو ندی نه‌دی چی پــــه
زور دما سل په لنبته اود ولسوال په تهد ید
به یی خلك را غو نهٔ ول او سهٔ کونه، کورونه
او نور ځا یونه به یی هغه هم ډیر محـــدود
پری جوړول چی دا بیگا رو اود هغه وخـت
ددولت زمامدارانو به په بودجه‌کی له‌دی درکه
پیسی واخیستلی او منظـوری به یی کـــړی
او بیا به‌یی هغه په خپل جیب کی وا چو لی
مثلا ویل به‌یی ،چی دکند هار او کا بل‌په
سړك باندی ریگك واچوی دستی.به دهغـــوی
گما شته گانو یو اټکل وکړ چی دا کـــار
پنځو س‌ملیو نه افغانی مصرف لری ،پنځوس
ملیونه افغانی به حواله شوی دابه بیر تــــه
ددوی په شخصی حسا بوکی تحو یل شـــوی
اما خلك به یی دما سل په زور دولسوال او
والی په زور باندی را وایستل په زور به یی
په سړك باندی ریگو نه اچول . دابیگا ر دی
مگر داد خپلی خو بنی کار اوس هر څو نه
گټه چی کوی ، او پنځو س ملیو نه یا سل
ملیو نه‌افغا نی،چی پاتی کیږی دا بیر تــــه
دخلکو په خزانه کی لو یږی ددوی پــــــه
زورو شیانو باندی لگیږی .

مثلا مکتبونه جـوړیـږی دخلکو دروغتیـا
دپاره پکار یږی او نور داسی کارو نه پری
کیږی چی زمو ږ دزیار ایستو نکو خلکـــــو
دپاره گټور دی .

او س زه تاسو ته زیری در کوم تا سویی
هم وینی او دافغا نستان ټول خلك یی پــــه
خپله وینی ، چی‌کتاب، توره ، لور، ستهك دا
ټول زموږ دزیار ایستو نکو خلکو په لاس‌کی
دی .له خپل انقلاب څخه دفاع کوی، اودخپل

انقلاب داقتصادی ودی په برخه کی هلی ځلی
کوی چی دهغو یوه کوچنی نمو نه دخپلـــی
خو بنی کار دی چی دد ښمنا نو ستر گـــی
ړندوی او ددو ستا نو ستر گی رو ښا نوی
په یــوه حساب چـی مـوږ کړی دی تـــر
او سه پوری په دی لسو میا شتو کی یوسل
او شل ملیو نه افغانی دخپلی خو بنی دکار
په اثر زموږ ټو لنی ته عایدی شوی دی.زموږ
په خبرونو کی داوایی چی دادولت ته عـــایدی
شو یدی بنه دولت هم دټو لنی جز دی زه
وایم چی داپه خپله خلکو ته پاتی شوی دی
خلکو چی زیار ایستلی دی ، هغه یی فقـــط
دو نه کړی دی‌چی دخپلو گټو او خپلو منافعو
دپاره یی داکار کړی دی څکه دخپلی خوبنی
کار په افغانستان کی یوه نوی پدیده ده‌او
داد ثور انقلاب چی ډیری ځانگی لری داسی
ونه ده چی هر ښا خ یی بیله بیله میــــوه
کوی یوه میوه یی دغه ده چی زه یقین لرم
افغا نستان به سمسور کړی ، ودان به یـــی
کړی او هغه ټو لنه چی زمونږ او ستا ســـو
په نظر کی ده یعنی بی استثمار ه‌جامعه چی
هلته فرد له فرد څخه نه استثمار یږی دهغی
په جوړولو کی به ډیرستررول ولوبوی .

زمو ږ دزیار ایستو نکو په ټولنه کی ،د
ز یـا ر ا یستـو نکـو پـه د و لـــت کی ،
د ز یـــا ر ا یستـو نکـو په حز ب کـــی
هر څوك ځای لری ،هرڅوك چی وطن پر ست
وی ، هر څوك چی هیواد پال وی ، هغـــــه
په ډیره زړ ورتیا ، جرات او خو بنی سره
کولی شی چی په دی دولت کی ځای ولری،

دا په دی پوری مختص نه دی چی یوازی زموږ
حز بی غړی به په دولت کی کار کوی .
نو روته چا نس نشته . دا غلطه ده هرڅوك
چی دانقلاب نه دفاع کوی دافغانستان صادق
زامن، لوڼی وی. هغه کولای شی چی په
دولت او په حزب کی هراړخیزه برخه واخلی
او دخپل وطن په سمسورولو اوودانولوکی له
مو ږ سره په مساوی حقو قو هلی ځلی وکړی
او هغه ار مانو نه موږ پو هیږ و چی
دوی هم لری اودهغو په پوره کولو کی
کو ښښ کوی .

مقصد دادی چی زموږ ګوند ، زموږ دولت
دخلکو دپاره خدمت هیڅ وخت نه انحصار وی
او دانه وایی چی ته یی نشی کولای ، لاس
تړلی راته ودریږه ، دا استحقاق یوازی زما
دی ،زه یی کوم . داسی نه ده هر څوك چی
کار کولای شی صادقانه کار کوی او دخلکو
دپاره خد مت کوی واقعا دلته ډیر ښه
ځای لری ، زموږ تر څنګ در ید لای شی له
موږ سره یو ځای داکلنګ ، بیل ، ستك
وهلی شی ،او کار کولای شی موږ هم په
دی باندی ویا ړو چی خلك له موږ سره اوس
دغسی ولاړ دی او نوربه هم ودر یږی زموږ
او ستا سو له سترو ار مانو څخه دا ار مان
هم وه چی په افغانستان کی ځمکی دهغه
چا وی چی کار پری کوی اوموږ ددی دپاره هلی
ځلی کولی اوس دادی تاسی دافغا نستان ټول
خلك او د جهان ټول زیار ایستو نکی
وینی چی په څه برم ، په څه جوش ، په څه
چټکتیا سره دلته هغه ځمکی له فیو ډا لانو،
له ظالما نو نه اخیستل کیږی او هغه چا ته
ور کول کیږی چی واقعا یوی پکی کوی
او لوپکی کوی او دهر شی وړوی ، درمندوړوی
رشه پا کوی او کو روته یی وړی موږ په
دیعمل باندی نه یوازی ځمکه بزګر ته
ور کوو چی دا یی دژوند دتا مین وسیله ده
بلکی موږ دافغا نستان کلتوری بنسټ ته هم
په دی باندی تغیر ور کوو یعنی فیو ډالیزم
وژل کیږی حتی وژل شوی دی ، مګر دلته
بیا هم ډیره توجه غوا ړی ملګری، د حزب
ټول اعضا هر چیری چی دی، باید ډیر
وینښ او فعا ل اوسی . داچی ځینی به
شکا یت کوی اویا به بل څه کوی دا صحیح
نه ده ،مګر زه و ایم چی ستا سو ګو ند
او ستا سو دولت فیو ډالی نظام داو حشی غویی
راغوزارکړ او اوس مو حلال کړی ددی
وحشی غویی هسی یوشارګ او یا دوه شارګه
به پاتی وی او ممکن تر سر طان پوری
دا شار ګونه هم پری شی .

او س دا غویی دځنکدن په حال کی دی
او دشا لغتی هم غوزار ولی شی ځکه نو
زمو نږ ګوند او زموږ دولت متو جه دی چی
دا لغتی داسی ونه غور زوی چی خدای
دی نه کا زموږ پښو ته کو چنی صد مه هم
ور سو لی شی باید نو کی لیری ځینی
ودر یږ و،چی دوی پریږ دی چی نفس ورکړی
دلیری در یدلو معنی داده ،چی په تما مه معنی
زمو نږ ملګری زموږ خلقی وسله وال پوځ
با ید ډیر متو جه وی لکه متوجه چی دیچی



زموږ ستر مشر دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی کله چې یې دخیرخانې دپنځه سوه کورونو پروژې انجنیرانو او کارګرانو دخلکو په کورکې حضور ته منلی دی .

دا غو یې کاملا نفس ور کړی او پو ست یې کړو .

ځیني خلك سیا ست او روحا نیت سره‌لري او یو په بل کې‌یې سره اخشي چې بس‌نو داروحانیت یا مثلا داسلام مبین دین دسیاست دپاره استخدا موی داد ثور له انقلاب نه ورو سته قطعا ځای نلري ، موږ رو حا نیت، مو ږ خپلو ملا یانو خپلو مذهبي خلکو ته واقعا په درنه ستر ګه ګو رو ، خوځله مې پخواهم ویلي ترهغه ځا یه پوري چې دوی په سیا ست کې ګو تي ونه وهي او بیا په تیره زموږ دثور دستر انقلاب په مخ کې ونه دریږي موږ هغو ته هم عزت ور کوو په احترام ورته ګو رو اودلته هیڅ ډول تنګي او تنګ نظر ی ددوی په مقا بل کې نه‌شته اما که څوك داسي وغواړي چې عوام فر یبي وکړي او خلك وغو لوي اود دین په پرده‌کې دثور دانقلاب ستر بریالیتوب وی چې په هغوته اجازه نه‌ورکوو ځیني خلك چې‌دي البته تاسو ته معلوم دي ،چې هره طبقه خپل تیوریسنان لري مثلا کارګره طبقه هم لري ، بو رژوازي یې هم لري ، خو موږ داد کارګر طبقې تیوریسنان د نور طبقو تیو ریسنا نوته اجازه نه‌ور کوو چې په دې نامه یا هغه نامه دکار ګرو او د بزګرو دګټو پر ضد باندې بیر غ پورته څه ، چې‌حتی کوچني حرکت هم وکړي .

زمو نږ دولت زموږ حزب او زمو ږ خلك ټول په دې عقیده دي چې‌دوی نور «میلږن»لندن مولانا ګانو یعني په لندن کې جوړ شوي ملا یانو ته اوپه لندن کې جوړ وشو یو رو حا نیو نوته په کرکه ګوري او نور به دا مو قع ورنه کړي چې دوی دافغا نستان په سر نوشت لوبې وکړي .

موږ داواقعیت دوی‌ته په ډاګه اعلاموو وزړه یې چوی که مري او که پا ته کیږي زموږ پالیسي او زموږ سیا ست دغه دي چې موږ دغسې دپر دیو جوړ شویو روحا نیو نو، ملا یانو او یا نورو خلکو ته هیڅکله دلته ځای نه ور کوو مګر بیا هم زه دلته مو قع غنمیت ګڼم خپلو ملګرو ته‌که په حزب کې وي ، که په دولت کې وي ،په کلکه توصیه او حتی امر کوم چې دوطن پر ستو ملا یا نو او دوطنپر ستو خلکو ډیر احترام او در ناوی وکړي او دهغو د آزار موجبات باید هیڅ وخت برابر نه‌کړي او هیڅ وخت بې سنده،بې دلیله هیڅوك آزارونه مومي دابه ستا سو دثور دانقلاب ستر بریالي توب وي چې په افغا نستان کې ټول وطنپر ستان ، ټول زیار ایستو نکي ځان ډیر آزاد او ډیر هو سا احسا س کړي داده زمو ږ تو صیه زموږ امر او زموږ هیله موږ او تا سو دحزب جو ړو لوته کوم وخت چې اقدام کاوه ډیر کسان په دې باندې نه پو هیدل موږ هم نه پو هیدو چې دابه څر نګه کیږي اما په عمل کې چې ورګډ شوو واقعا زده مو کړل چې حزب څر نګه جوړ یږي او څر نګه باید جوړ شي اوکوم ډول حزب او دکومې طبقې دپاره باید جوړ شي . موږ دازده کړه ،اوس

انقلاب‌هر څه مو ږته راز ده کوی واقعا انقلاب موږ ته په دالسو میا شتو کی ډیر څه زازده کړل او زموږ تجر بی نوری هم زیا تی شولی او موږ به دخلکو دګټو دسا تلو دپاره دثور دستر انقلاب په‌رڼاکی نورداسی کارونه وکړو چه‌په هغوباندی به واقعاً دافغانستان تاریخ وو یاړی موږ په دالسو میا شتو کی نه یوازی اته داسی ګامونه اخیستی دی چه اته فر ما نونه دی او دافغا نستان دزیار ایستو نکو خلکو په‌ګټه دی بلکی دی اقدا- ما تو زموږ او ستا سو غایی مقصد ته هم لاره برابر ه کړه .

آینده کلو اوپه راتلو نکی وخت کی به زمو ږ ستره دنده داوی چی څر نګه پنځه کلن پلان چی طرح کړی مودی عملی کړو دا پنځه کلن پلان به‌په افغا نستان کی واقعا هغه خبښته کیږ دی چی دلته دفرد څخه دفرد استثمار نه وی .

زه دلته داپه ویاړ اوپه هسکه غاړه وایم چی موږ داکار کولی شو، ځکه هغه څه چی مو ږ دافغا نستان خلکوته څوار لس ، پنځلس کا له پخوا وعده ورکړی وه هغه مو پر ځای کړه او اوس زه یقین لرم چی خلك به هم په‌دی باور ولری او موږ په ځان باور لرو ډیر مهمه داده چی په‌ځان سړی باور ولری ،او موږ په‌ځان باور لرو چی موږ دا کار کوو او دا کولی شو. دثور ستر انقلاب دافغا نستان خلك له هری بد مر غی نه خلاص کړل ددغه انقلاب په نتیجه کی دوی یوشی بایلود ، اوواقعا ډیر سترشی یی بایللی دی چی هغه ددوی زولنی وی ، کوم وخت چه زموږ خلکو دا زولنی بایلو - دلی او تا سوپه خپله ولید ل چی په دی لسو میا شتو کی څه وشول نو زه په هسکه غاړه دخپلو ملګرو په وکالت ځکه چی زه خپل ملګری پیژنم، خپل حزب پیژنم،دولت پیژنم ،هدف یی پیژنم ، نوځکه په اعتماد او ډاډه زړه سره وایم ، چی مو ږ دهغی خبښتی هم اینښو دونکی یو چی دپنځه کلن پلان په اثر باید کیښو دله شی بیا هم درته وایـ هغه ټولنه چی واقعا په زړه پوری ده،انسانان دهغی دپاره هر چیری مبا رزه کوی او موږ یی هم کوو .

په پنځه کلن پلان کی بیاز یار ایستو نکی ستر رول لوبوی او دهغو دپاره پنځه کلن پلان دانه دی چی لکه دپخوا غو ندی په‌بودجه کی منظوری وا خستل شی اوله نورو څخه یی‌هم راواخلی اوپه‌دی لاس یی نورو هیواد - وته واستوی اوهلته یی‌په خپلو شخصی‌حسابو کی جمع کړی دلته لکه پخوا چی ما ویلی دی یوه یوه پیسه اوهرشی به په همدی خاوره کی لګیږی اود همدغو خلکو دسعادت دپاره به لګیږی نو ځکه زه‌په دی‌باب په‌ډاډه زړه ادعا کوم زما دادعا یوه اتکا همدغه ده چی مو ږ ټول کو مکو نه چی له خارجه یی اخلو یادلته چی کوم عواید دی داپه خلکو باندی مصر فوو ددی دپاره موپه زړه پوری پروژ ی او پلانونه طرح کړی دی، زه بشپړ یقین لرم چی زمو ږ زیار ایستو نکی به ددی پلان په عملی کو لو کی دغسی بر خه

واخلی لکه په هر بل کارکی یی چی اخلـی
مو ږ چی داکارونه کو و، زموږ دښمنـان
واقعا هـر اړخیـزی پـروپـاگنـدی کـوی
زموږ پرضدتبلیغات کوی اوبیځایه ناروا تهمتونه
را باند ی لگوی البته بل هیڅ تهمت نه شـی
را باند ی لگو لی مستقیما دانه شی ویلی چی
تاسو ولی پنځه کلن پلان جوړه وی، یا عملی
کوی یاولی تا سودغه اته اسا سی گا مونه
اخیستی دی په دی باندی هم دوی هیڅ نه شی ویلی
نو فقط یو دورغ راپوری وایی هغه دا چـی
گو یا موږ داسلام ددین سره مخالف یـو،
مگر زه ورته وایمه چی موږ نه یوازی مخالف
نه یو بلکی ټول خپل زیار ایستو نکـی
مسلما نان دی ته تشو یقو وچی خپل دینـی
منا سك ،څر نگه چی امر او ددین هدا یـت
وی هماغه شان پر ځای کړی .

موږ قطعا له دی څخـه هیـڅ تجـاوزنـه
دی کړی موږ لا په دی تشو یق ور کوو چـی
جو ماتو نه جوړ کړی مثلا وطنپر ست ملایان
مو دغه کار ته تشو یق کړی دی هغــه
دی ودی گوری چی دلته هره جمعه دجمعـی
لمونځو نه کیږی ، وعظونه کیږی او داسلام
منا سك تبلیغ کیږی .

خوبیا هم غـرضـی دښمنان دومـره بیباکـه
دی چی په ختیه اور لگوی په ختیه خو اورنه
لگیږی دوی غواړی چه په ختیه او رو لـگوی
او س هغه افغانستان نه دی چی پر ټو پـی
به یی یوه سپینه لته واچو له اوځان به ...
مو لانا ،خلیفه او ملاکړی څه به یی کـړل
او څه بی یی کړل او دافغانستان خلکو ته به
یی تبلیغ کاوه چی دا رواده دا ناروا ، اوس
دافغا نستان خلك هغه کسان نه یوازی نـه
منی بلکی هغه یی ټول له دی ځا یه لکـه
پخوا چی ماویلی ووجا رو کړی دی .

او س دامپر یا لستانو پر نگیانو لـه
وینا و څخه چی هرڅه وایی ددوی دا چمو نه
دافغانستان په خلکو باندی نور نه چلیږی دوی
چی هرڅه دافغانستان دخلکو او ددوی دستـر
انقلاب پرضد ووایی دابه دوی ته بله گنـه
ونه رسوی غیر له دی چی زاړه زخمو نـه
بیر ته تازه کړی او دافغانستان دخلکو هغـه
پخوانی خاطری بیا ورنوی کړی لکه پخوا چی
دلته پر نگیا نو موږ قتل عام کړی وو، وژلی
یی وو، زموږ په ملك یی یر غلو نه کړی
وو، هغه بیا ورپه یاد کړی او داکینه به تازه
شی بله نتیجه قطعا لاس ته نشی راو ستلی.

په نړی کی هم ځینی تصا دمات مینځ ته
را غلی دی چی هغه مثلا خوك انقلاب ورته
وایی یا هر نوم چی باندی ږدی خومو ږ او
تا سو پو هیږوچی انقلاب څه ته وایی پـه
ځینو هیواد وکی ددو طبقو په منځ کی تصادم
وی یا تصادم دی مثلا فیوډال او بورژوا پـه
خپلو منا فعو باندی رقا بت سره لری او هغه
رقابت یی هم پردی باندی وی چی فیو دال،
وایی چی خپل ملت اوخپل خلك باید په هغه
پخوانی پخه چاړه حلال کړو ، بو رژ واورته
وایی چی نه تیره چاړه به ورته استعمال کړو
هلته همد ومره فرق وی بل هیڅ فرق نـه
شته او موږ دامنو چی ددوی په منځ کـی
دغسی شخړی وی اما دثور انقلاب په افغانستان

کی قطعاً داسی نه دی هغه وایی پخه چاره دی هم ورکه شه او تیره دی هم ور که شه .

دافغا نستان خلك هر ډول چری چی دوی پری حلا لیږی ، دوی پری خور یږی اومقصد یی استثماروی غندی، غندلی یی دی او دایی په عمل کی ټول جهان ته ثا بته کړه چی واقعا داخلك خومره پرمنځ تللی دی او حتی او س نور هغه افغانستان نه‌دی چی په نقشه کی به‌یی ورته وکتل بس ستر گی به یی ځینی واړولی چی داخویو ډیر وروسته پا تی هیواد دی داهیڅ په حساب کی‌نه راځی اوواقعا په امپر یالیستانو او دافغانستان دخلکو نورو دښمنا نوتل په دی باندی ستر گی پټی لی، چی موږ دلته موجود یو یا موجود یت لروحتی په ځینو هیواد وکی ما په خپله لید لی دی ځانته ستر هیوادونه هم وایی، ځان ډیر هو- شیار هم بولی خو چی دافغا نستان پو ښتنه به مو ځینی وکړه هغه به ویل چی دا چیری دی داد پلانکی مملکت یاد پلا نکی ځای یوه بر خه ده او موږ به حیران شو نو ما به ویل چی زه ستا سو په خواب کی هیڅ نه وایم خو بس تاسی معلو مات نه‌لری که نه زموږ دپنځم صنف له شاګرد څخه پو ښتنه وکړی چی په افر یقا کی دیو کو چنی‌هیواد نوم واخلی هغه به یی درو ښیی چی دا په پلا نکی ځای کی دی دومره نفو س لری داسی دی اوهغسی، اوټول تفصیلات به‌یی درته ووایی داچی موږ وویل ته‌نه پو هیږی داستا ګناه ده مګر داځکه چی په افغانستان کی واقعا یو فامیلی حکو مت اویو فیو ډا لی حکو مت وو. چی دفیو ډالانو ګټو هغه پرموږ باندی بر غو لی ایښی وه چی هیڅوك مو ونه وینی اوپه خپل منځ کی لکه ګټو ایشمیرو او زموږ غو ښتنی پخیږی مګر یوځل بیا وایم داپه تکرار هم‌که ووایو هیڅ بی ګټی نه ده چی دثور ستر انقلاب افغانستان له دی در یځ او موقعیت څخه بالکل راو کیښی اودنړی‌دهغو ډیرو متر قی اوپر مخ تللیو هیوا دو په څنګ‌کی ، بلکی په خورا لاښه موقف کی ودرا وه .

رښتیا خبره داده چی دثور انقلاب چی دافغانستان دخلکو دمو کراتیك ګوند په مشری وشو ،نه یوازی په افغانستان کی یی دا تغییرات راو ستل بلکی په نړ یوال سیاست باندی یی داسی اغیزه وکړه چی واقعا داتا- سو یی‌په خپله ګوری داځینی ستو نزی‌چی اوس په شرق اولری شرق کی‌ر اپیدا دی‌یا مثلا په نورو ځا یو‌کی دا هم ددغه انقلاب له امله دی ، منبع یی همدغه ده چاته یی زور ور کړی دی‌او څوك پری خو شحا له دی‌څوك چی پری خو شحاله دی اویا خوا بدی دی دو ستان او دښمنان دی که موږ وغوا ړو یا ونه غواړو اصل عا مل یی زموږ دثور انقلاب دی چی دوی په خپلو منځو کی سره هم وهی یامثلا یوبل ډول کیږی چی هلته زیار ایستونکی ډیر تر سم لاندی نیسی مو ږ اوتاسو ولیدل چی دثور له انقلاب نه وروسته په ځینو هیوادوکی ډیر شر یف خلك دکار ګرانو دبز ګرانو مبا رزین ووژل شول، دلیل یی داو چی دوی فکر کاوه چی په

افغا نستان کی داشوی دی او دوی به هـــم
دلته داسی وکړی موږ ورته وایو چی په دی
دزیار ایستو نکو مخه څوك نه‌شی نیو لای‌او
داانقلاب جهانی دی واقعا افغانستان اوس دهغو
ډیر پرمخ تللو هیوادو په منځ کی هسك‌ولاړ
دی .

پخوا دانګلیس امپر یالیزم او ددوی‌داستعمار
په‌وخت کی افغانستان واقعا دافغانی خائنا نـو
له لاسه ټوټی ټوټی شو، او ډیر معاهدی یی
پر دوی باندی تحمیل شوی ، اویا دوی هـــم
ورسره وکړی خواکثرآ پری تحمیل شولــی
چی دخپلی خا وری‌له یوی حصی نه تیر شی،
خو داچی معا هدی به هم وشو لی خلکو به
دا معا هدی نه منلی ، په‌عمل کی به‌هغـــوی

بیاتوری وکښملی اوویل به‌یی چی څه باباڅوك
دی چی دامعاهده یی کړ یده زه داله سره‌نه
منم اوپه خپله به‌یی یاغزا یا په کوم بـــل
نامه له خا ر جیانو سره جنګو نه شروع کړل

مثلا دسکانوپه وخت کی چه هغوی هغه وخت
دا نګر یز داستعمار ګو ډاګیان وو او دهغوی
په واسطه به یی ځینی ځایو نه نیو ل مثلا

دا سیمی چی اوس پښتانه پکی اوسی لکـــه
پیښور اوداسی نور ځایونه بیا دلته پښتو هم
دوی نه منل ، په افغانستان کی‌هم دا حا لت
او وضعه چانه منله ځکه به نو لوی لښکر تیار
شو اود سکا نو په مقابل کی به روان شوخو
بیا هم تاسو پری خبر یا ست چی تاریـــــخ
یی دغه دی څر نګه چی دوی ور غلل نژدی
وو چــی سکـانو سقـو ط کړی وو یعنــی

سقوط داچی د افغانستان له خـــاوری څخــه
یی دوی ایستلی وای خـو بیا به یی خیانت
وکړ په دغه جمله کی سلطان محمد طلایـــی
ډیر تور ځای لری ،نوم یی طلایی دی ،مګر
په خپله تر خاوری هم بدتردی ، اوستر خیانت
یی وکړ په‌لس زره کلدار ویی ځان په سکانو
خرڅ کړ هغه لښکر چی هلته غو نډ شوی‌ؤ
چی له‌سکانو څخه دپښتنو اوبلو څو حقـــه
حقو ق واخلی دهغو ملایی ور ماته کـــړه
لښکر یی بیرته تیت او پرك شو دا موږ‌ونو
دا تاریخی خیا نت دی ،یاد ګند مك ترون
ډیر لوی خیانت ؤ، پر نګیانو به دا تـــولی
چی وکړی بیا هم دغه خلکو دانه منلـــــه،
هغوی قطعا یوه شی ته اهمیت نه ورکـــاوه
چی هغه معاهده وه ، معاهده چـی بـه یـی
له امپر یالیستانو سره وکړه هغه به غیـــر
عادلانه وه نوځکه به خلکو په خپل سرباندی
توری را واخیستلی چی موږ‌دانه منو او جنګ
به یی شروع کړمګر بیا هم وروسته پرنګیانو
فکر وکړ چی دتل له پاره له دغو جنجا لو
څخه ځان خلاص کړی نو امیر عبد الر حمن
خیا نت وکړ یا یی په خیا نت کولو مجبـــور
کـړ هغه داد ډیورند کرښه وه چی پرنګیانو
پری وایستله مګر بیاهم ددی ځای خلکـــــو
او دهغه ځای خلکو نه منله او دوی یو ځای
کید ل سره غو ښتل ، مبارزی کید لـــی،
نو د امبارزی به‌چی هر څو مره جدی شولی
هغو مره به‌پر نګیان نورهم په قهر شول.
ددی ځای دخکو متو پر ضد باندی به یی
تو طئی او دسیی کولی .له بلی خوا بـــــه
حکومت داسی جدی دریغ نه ونیولی، یوازی

امان الله خان ددوی دپاره ډیر جدی دریغ ونیو حتی زموږ داستقلال معا هده ددی دپاره ډیره وځنډیدله چې په دی سیمو با ندی یعنی دپښو ر دکو هاټ او ددی سیمی دپښتنواو بلو ځو په علاقو باندی نه سره جوړ یدل ده ویل :تر هغو یی نه منو چې دا را نه کړی ، خو خیر داونه شول مگر بیا وروسته معا هده هم لاسلیك شوه ،خو دی دعوی ته دوام ورکړی شو او سوړ جنگ شروع شو،ځه چې هغوی دسیسه ورته جوړه کړه او گوډملایی را پیدا کړ گوډملاته یی وویل چې ووایه دا کا فردی هغه چې په اصل کی پر نگی او دپر نگیا نو گو ډاگی ؤزموږ دهغه وخت دنهضت دنا کامولو دپاره یی هلی ځلی وکړی خو همدی دافغانستان خلکو ناکا مه کړ مگر بیا ورو سته متاسفا نه یو تاج بخش ملاراپیدا شو .چې هغه بیا دلته هم همغسی کا رو نه وکړل ، مثلا تاج یی له یوه سره راواخیست او دبچه سقو پر سر یی کیښو د او داهم دپرنگیانو دسیسه او توطئه وه، مقصد می داوی هروخت چې دپښتنو او بلو ځو دحقو قو دپاره سره جگړه ډیره توده شوی ده ،نوهم ددی مملکت پر ضد باندی تو طئی اودسیسی لازیاتی شوی دی او توده جگړه خو ځه کوی چې هغه خونو بیخی جنگ ؤ .

اوس هم موږ وایو چې دپښتنو او بلو ځو داملی حقوق یو تاریخی شی دی ما پخوا هم ویلی دی چې یو سل او شل کاله تاریخی ریښی لری داخو باید فیصله شی او ستاسو ددولت او ستاسو دحزب پا لیسی داده چې دا موضوع له پا کستان سره با لکل په وروری او په ډیر ښه مسا لمت آمیز ه تو گه فیصله کړی مگر بیاهم ځینی وختو نه کـه داتو مونه واخیستل شی نو بیا هم دا پرنگیان البته دی ته پلته په اصطلاح پیښوی او دلته نوری خبری هم کوی ، یو ه همد غه ده او یوه هم دثور انقلاب لومړی ته بهپه هرصورت دوی یا غاړه کیږ دی یا به یی په روغه جوړه فیصله کړی خود ثور دانقلاب موضوع مسالمت آمیزه یا قهر آمیزه په هیڅ صورت نه شی فیصله کولی ، داد افغانستان دخلکو ویاړدی دا به وی دا مشعل به لگیږی .او ددی مشعل رڼا به هر هر چیر ته ځی نوځکه پر موږ باندی دا گو زارونه کیږی ، مخصو صا دپر نگی دراډیو له غږ ځخه چې نن دا سی شو یدی ، اونن هغسی شوی دی یا به وایی وینی بهیږی هلته خلك وژل کیږی هلته انقلاب داسی دی .هلته پنځلس زره کسه بند یان دی یا شل زره کسه بند یان دی او دغو مره خلك یی وژلی دی . دا ټول دروغ دی مقصد یی دادی چې زموږ زیار ـ ایستو نکی خلك ولمسوی، مگر موږ ور تـه وا یو چې نور ستا سودم او چوف په افغانستان کی نه لگیږی .

دپرنگیانو یا ددوی دراډیو مقصد یوازی دانه دی چې دافغا نستان زیار ایستو نکی یوازی ددولت پرضد را او چت شی ،بلکی دا غواړی چې دنورو پرابلمو نو سره هم موږ مخامخ کړی دوی که ځه هم دغو مره لیری دی خوبی اتفا قی اچوی او حکو مت

کول غواړی پخوا خوبه دلته فزیکی او یـا جسما نی به وو مگر اوس له هغه ځایه څخه هم داکارونه کول غواړی، ددیدپاره بېله‌مثالونه شته فرض کړی دوی په بی اتفاقی اچولو ي په هندو ستان کی هم ډیری ښی تجر بـې لـری په افغانستا ن کی هـم لـری په نورو ملکو کـې یی هم دراودی فـرض یی کړی په هندو ستان کی به‌یی ما ښـام یو خوګ وواژه هغه به‌یی په ماجت کی‌واچاوه او یایوه غوا به یی را واخیستله په در مسال کی به یی حلاله کړی یا مرداره کړی واچوله سبهار به دهندو او مسلما ن جنگ وړیـه زر ګونو بی گناه خلك به ووژل شول. دوی او س هم دغسی کول غواړی مگر موږ بیاهم ورته وایو چی دافغانستان خلك اوس وا قعا بیدار شو یدی ، او داد نفاق اچو لـو چلو نه‌یی ټول درك کړیدی اوپه هغه باندی غیر له دوی چی وخا ندی نور کوم اعتبار نـه ور کوی .په تیره بیا چی دیوه پخوا نی‌دښمن له خولی وی .

البته اوس نه‌وایو خو دیوه پخوا نـی دښمن خبره قطعا دافغا نستان خلك اوس نـه منی اونه یی منلی شی .

ما پخوا وویل : هغه کسان چی پـه لندن کی جوړ شوی دی دهغو آوازو نـو او دهغوی ادعا گا نوته دافغانستان خلـك په کرکه گوری نه‌یی منی .هر یوله دغـو کسانو څخه چی له دی ځایه تللی یا فرار شویدی ددی کوښښ کـوی چـې یو څـه ووایی او هغه هم ددی دپاره چی پر چپا نـې با ندی ورته یو څه دال ور اضا فه کړی.نو ددی دپاره چی داخپله گوله نوکی پنهه کړی دا خپله مړی لږ څه غوړه کړی نو خود بـه یی څه ویلی وی، یابه یی‌نه وی ویلی مثلا دا به وایی چی پرون افغانستان ته لاړم شل کسه می مړه کړل سل می مړه کړل لـوی لست ورته ورکړی چی دومره می پر پلانکـی ځای کی مړه کړل او دومره می په پلانکـی ځای کی بس بیا به نو دوی څه مړی پیـدا کړی خود دی انعکاس څوك ور کوی !انعکاس یی هغه دپر تگیا نو حنجره ده اوهغه ددوی ستو نی دی چی هغه بیا داد افغا نستان‌خلکو او جها نیانو ته غټوی چی داسی و شـــول یا هغسی داټول بیځایه درواغ دی .

زه دافغا نستان خلکو او تا سو ټو لو ته داړ در کوم چی دافغانستان په هیڅ برخه کی زموږ په مقابل کی هیڅ ډول مقاو مت قطعـا نه شته اوهر چیری مو خلك ملا تړ دی .

دښمنان دا وایی چی گواکی دلته وینـی بهیږی او داسی کیږی او هغسی مگر زه‌ورته وایم چی په افغانستان کی نه یوازی وینـی نه بهیږی ،بلکی موږ پر خپلو زیار ایستونکو خلکو یعنی په سلو کی په اته نوی خلکـو ویسا یواو څنگ مو پری لگولی دی ، اود هغوی خد متگا ران یو او هغوی هم پو هیږی چی خورابېه‌خدمتگاران‌یی پیداکړیدی، په دی باندی خو را خو شحا له هم دی نوزه درته وایم چی موږ واقعا زور لـرو څکـه چی داد پښتو یو متل دی چی وایی : دخلکو زوردخدای زور، نوزموږ هیڅوك نه شی ماتولی .

دلته څه وخت پخوا یوه ناوړه حاد ثه پیښه
شوه چې هغه دامر یکی دسفیر وژل کید ل
دی واقعا موږ په دی پیښه باندی حتی په ملی
سو یه افسو س وکړ اوخپل ملی بیر غونه
مو هم نیم ځوړند وو، اوز موږ امنیتی مقاماتو
وا قعا ډیر کوښښ وکړ چی ده ته نجات
ور کړی مگر ترور یستان او ترور یزم
هر چیر ته وی اوهر چیرته داکار ونه کوی
زه حیران یم چی دی ته ولی ددوی ددغه
حکو مت ضعف وایی یا دا حکو مت په دی
محکو موی چی دلته دبشر حقو ق نشته زه ور ته
وایم چی داپه هر ځای کی شته هر ځای کی
دغسی اختطافونه ، دغسی ترور یستی مسایل
او کا رونه وی مثلا په سپینه ورځ الوتکی
تښتوی دا خو یی یو سړی تښتو لی دی الوتکی
سره له ټول ټبره مثلا دوه سوه کسه یو نیم
سل کسه ټول وتښتوی اووی چوی تمول
مړه کړی دی ته هیڅوك څه نه وایی اوزه په
خپله بیا داهم وایم چی په خپله امر یکا کی
یی ددوی هغه بهتر ین جمهور رئیسان مړه
کړل خو هغه هیڅ ، مگر زموږ په دالسو
میاشتو کی لومړی ځل یو څو ترور یستانو
او دخلکو دښمنا نوچی واقعا دهغوی مطلب
داؤچی زمو ږ روابط دامر یکا دمتحد وایالاتو
سره خراب کړی دوی دا کارو کړ نو موږ
کو ښښ وکړ اوس موږ غواړو چی په دی
باندی نور نه متهم شو اونه زموږ او ددوی دوستی
ته هیڅ ډول صد مه ورسیږی موږ غوا ړو د
امر یکی له حکومت سره واقعا دوستا نه
روابط وسا تو اوهیڅ وخت چاته اجازه نه
ور کوو چی دار وابط خراب کړی مگر د ومره
اصرار هم باید په دی ونه شی چی له دا ټو لو
خبرو سره بیا هم موږ په ډول ډول تهمتو
باندی متهم کړی اوکه نورڅوك په دی باندی
اصرار وکړی نو دهغه دوری او دلیوه خبره
به شی ،چی اوبه مه راخړو ه بابا موږخو
کښته ولاړ یو موږ خوټول کو ښښ وکړ
چی دغه سفیر ته نجات ورکړو خو چی
تر ور یستا نو مړ کړ نوپه دی کی زموږ څه
گنا ه ده اوس نوله دی امله موږ باید
تر خوږی گوتی څوك ونه نیسی بلکی لکه
څر نگه چی په ټول جهان کی تعامل دی له
دی خبرو څخه نور باید صرف نظر وشی او
زموږ په دوستانه علایقو باندی هیڅ ډول تا
ثیرو نه کړی، موږ دامریکی خلکو ته
واقعا ډیر احترام لرو اما دحکومت احترام یی
هم لروځکه چی یولوی اوستردولت دی موږ له
هغو سره قطعا خپل روابط نه خرا بوو او نه
یوازی داچی نه یی خرا بود بلکی علا قمند
یو چی دا روابط په عادی تو گه او دوستا نه
تو گه پراختیا وکړی .دادی زموږ سیا ست
نه موږ په دی باندی متهموی او محکو موی
مو چی دلته دبشر حقوق نشته ، دبشر حقوق
په خطر کی دی، دبشرحقوق داسی شوی دی یا
هغسی زه حیران یم چی څر نگه دبشر حقوق
دلته په خطر کی دی دلته خوهغه مملکت دی
لکه دا نور هیوادونه لکه هغو چی
دبشر دحقوقو ادعا کوی په هغوی کی
خو تور او سپین په یوه ماجت کی لمو نځ نه
سره کوی په یوه کلیسا کی نه سره در یږی په
یوه هو ټل کی ډوډی او چای نه سره خوری

او پریو لارنه شی سره تیر یدای او دانژادی
تو پیر هلته شته داد بشر حقوق دی اما پـه
موږ کی دلته چی ټول سره مساوی او برابردی
او ټول زیار ایستو نکی ملیتو نه افتخـــــار
کوی چی دافغانستان مساوی ورو ڼه دی‌اوهیڅ
ډول توپیر او امتیاز نشته دلته نو بیا وایی‌چی
د بشر حقوق نشته داد بشر دحقو قو خبره نه
ده، دابیا هم درته وایم، داد ثور انقلاب دی
مثلا تا سو ملګری هم ددوی له‌را دیوګا نو
څخه اوری او دافغانستان خلك یی هـــــم
اوری چی وایی څوارلس زره کسه بنــدیــان
دی شل زره کسان بندیان یا څو مره‌کسان
بند یان دی او دومره یی وژلی دی داټول دروغ
او اتهامات دی ،زه تاسو ته په مسؤلیـــت
وایم .

زه دانقلابی شورا درئیس په حیث دافغانستان
خلکو ته خپل ګو ند ته او ټو لوته دا وایم
چی موږ په خپلو ټو لو بند یخا نو کـــــی
یوازی یو زرواودری سوه او شپږ پنځو س
کسه سیاسی بند یان لرو چی هغه هم دتصفیی
په حال کی دی اوممکن خلاص شی ممکـــن
برا ئت حاصل کړی نو ۱۳۵٦ کسه موږلرو
او دوی یی پنځلس شپاړ س زره کسه بولی
ښه دی موږ بیا داهم چلنج ور کوو چـــــــی
یو بی طر فه بین المللی هیات دی حتـــــی
را شی ودی ګوری چی دغو مره دی که‌نه‌دی.

موږ دثور دانقلاب په سلسله کی یا په
نورو سیاسی جر موکی هیڅوك نه بند یـــان
کړی‌اونه زندانی‌کړیدی‌مګرهغوی چی‌اسناد او
داسی اسنادچی دتردیدوړنه‌دی ورته موجودوی
او دوی په خپله هم اعتراف کوی بی لـــــه
جبـر لـه و هلـو ټکـولـــو دوی پـــه خپله
اعتراف کړیدی . شا هدان پری تیر شوی‌وی
اسناد یی ورته په‌مخ کی ایښو دل شوی دی
بیا یی نوخو له جینګه کړیده چی صا حب
داوارمی وبخښه بل واریی نه‌کوم مګرزه ورته
وایم ښه دی بیا هم که‌دی ځان ته تغییرورکړ
او که واقعا دثور انقلاب سره سم فکروکړی
نو موږ یی څه کوو زموږ ورونه دی بیر تـه
به په اصطلاح سم شی زموږ سره به کـــار
وکړی زمو ږ مرام دغه دی .

بل تما مه ورځ تهمت کوی او وایی چـی
دلته شل زره کسه رو سان راغلی دی‌روسانو
داملك نیولی دی دلته متخصصین شته یعنـی
متخصصین او مشاورین ، خونه په زر ګو نو
کسه تاسو هر ه ورځ اوری چـی دا ټــولـه
مبا لغه ده مګر زه بیا په مسؤلیت تا سو ته
وایم چی په ټول افغانستان کی ۱۹٤۱ بهرنی
او دټو لو هیوادونو متخصصین دی یعنــــــی
دامریکی ، کـــانا دا ،انګلستان، فرانسی ،
جرمنی ،جاپان ،ایتا لیا، چین ، شوروی پـــه
کی ربښتا (۱۱۰۰ )تنه شوروی متخصصین‌دی
چی هغه دلته کار کوی او نور یی ټو ل‌دنورو
هیواد ودی، دشو روی متخصصین څکه لـــږ
څه ډیر چی هغه موږ ته اقتصادی تما میږی
هغه اوس تا سوو ګوری دا نورمتخصصیـــــن
هر یو په میا شت‌کی دوه زره دونیم زره‌یادری
زره ډالره معا ش له موږ نه اخلی ، اما د
دوی معا ش پنځه سوه ډالره دی دا پنځـــــه
سوه ډالره اوس نه‌دی له پخوا نه هم داسی

دی دا یوازی په افغانستان کی نه بلکی په نوره نړی کی هم همداسی دی، دوی غواړی چی دوروسته پاتی هیواد وسره واقعا کو مك وشی او دانه غوا ړی چی پردوی باندی تجارت وکړی او یایی استثمار کړی لکه دا نـــور هیواد ونه دلته داهم باید ووبل شی چـــــی دشو روی اتحاد دټو لو متخصصینو په جملـه کی یوازی (۳۰۱) تنه له موږ سره په نظامی چا روکی دمشا ورینو په توگه مر سته کوی اوپا تی ۷۹۹ تنه یی دهیواد په نورو پروژوکی راسره مرسته کـــوی دبل هیواد متخصصین وگوری له دوه زره نه نیولـی تـر دری زره پوری معاش لری او داپنځه سوه دا خو زموږ په گټه دی اما داهم درته و ایم چی دا ټول ددوی دروغ دی او دا غواړی چی دافغانستان‌او شو روی اتحاد دوستی لکه داره وښئی مگـر موږ ورته وایو چی دافغا نستان خلکو پـــه یو شپیته کلـــو کــــی دا دوستی ازمویلـــی ده او دنوروله در وغو خبرو ځخه کر کـــــه کوی ا وور پوری خاندی ، یوازی دا نــــده دوی نور ډول ډول تبلیغات هم‌کوی مثلاوایی دوی کی اختلاف دی په‌گو ندکی اختلاف دی په دولت کی اختلاف دی مثلا داوا یی چـــی حفیظالله امین له تره‌کی سره اختلاف لــری مگر زه ورته وایم موږ نوك او وری یو نوك اووری نه سره جلاکیږی .

موږ ددوی ددی با بیزه تبلیغا توته هم په گرکه گورو او ورته وایو چی نور ستا سو دم او چوف نه چلیږی .

زه دگوند په باره کی ډیر لنډ وایم چی زموږ دگوند دغړ و وظیفی واقعا ډیری در نی دی تاریخی‌رسالت یی ډیردرونـد دی ، دوی باید په‌دی کی‌ډیره توجه‌وکړی، ټول‌درانه‌کارونه زیږه کارو نه باید زموږ اعضاء وکړی ټـول هغه کارونه چی تکلیف لری شاقه دی زموږ اعضا یی باید اول داوطلـب شــــی ، هغـه یی وکړی داسی نه‌چی دوی په پستو چو کیو پسی وگرزی او یا دپوست کار واخلـی زه یقین لرم چی موږ خپل گوندی ملگری داسی روزلی دی چه لکه دازه چی وایم داسی دی مگر بیا هم په‌دی خبره یوځل بیا تاکید کوم چی زمو ږملگری تل باید هغه ځای تــــه ور شی چی هغه کارونه بل‌څوك په‌ښه شـوق او ذوق سره نه کوی زموږ ملگری یی باید وکړی .

موږ په‌دی ویا ړوچی دخپلی خوښی پــــه کار کی زموږ گوندی غړی ډیر گړندی‌اوډیر پیش قدم دی ،تا سو ولیدل دانور خلك یـی چی کوی هغوی یی‌هم په خپله خوښه اوشوق سره کوی او هیڅ جبر او بیگار په کی نشته بلکی نور خلك اوهم ساز مانونه په خپلـــه خو ښه او ډیر ه‌مینه کار کوی .

تا سو او موږ ولیدل په افغانستان کی موږ دغه د فیوډالانو څخه دراپاتی ښار په مردارو کوڅو کی زموږ بهتر ینو پیغلو نجو نو او ښکلو هلکا نو زمبیلو نه‌په لاس کو ځـــی پا کولی موږ په دی ویا ړو .

دغه کو ځی یی‌چی پا کولی یا داد خپلی خو ښی کارونه چی کوی ، دا یو ازای زموږ

دگوند غړی نه‌دی بلکی گـڼ شمیر وطنپرستان ساز مانونه ،اتحاد یی او دا ټول په کـــی دی او داټول واقعا دافغانستان دخلکـــو خد متگاران دی ، موبږ و دوی ته بیا هـــم مبارکی وایو دا زموږ دښمنانو په خوله باندی یو ډیر کلك سوك دی ولی چی دوی خووایی په افغانستان کی‌بی اتفاق ده اویا یوبل سره وهی نو دا یوه ښه مثال او په ښه مصداق دی چی ور ښیی، چی زموږ په هراړخ کـــی زموږ خلك سره یودی اودخپل هیواد پـــه ودانو لوکی هلی ځلی کوی .

په گوند کی دسپلین ډیر مهم دی اوگوندی دسپلین او انضباط دو سله وال پوځ تـــر دسپلین او انضباط نه لاقوی دی ، هلته خـو وسله وال پوځ همیشه پر دسپلین او انضباط باندی ولاړ دی ، البته هلته دا ډیر مهم دی، اما په گوند کی انضباط ډیر ستر اهمیت‌لری، خو دایو ټول او هغه ټول انضباط دی ، زموږ ټول ملگری باید گوندی انضباط او دسپلین په ډیر ښه صورت سره مرا عات کـــړی مثلا کښته مقا مات دلوړ و مقا ما تو اطاعت وکړی ځرنگه چی اساسنامـــه کـی لیـدل شویدی اسا سنامه بشپړه په نظر کی ونیسی او دی ته ډیره جدی توجه وکړی ، مـــوږ دا وایو چی زموږ گوند زموږ خلك ټو لسره پیو ند اونه بیلید ونکی دی، زموږ گوندی‌غړی هرچیری چی کار کوی بایدلکه پخـوا مو ویلی دی دخلکو نها یت دوستان وی،دوی په رښتیا سره دخلکو دوستا ن دی اوبا یدوی ځکه چی د از یار ایستو نکی خلك او گو ندنه سره بیلیږی، نوزموږ گـــوندی غـړی باید دخلکو سره ډیرښه په‌زړه پوری سلوك‌وکړی او احترام ورته وکړی او هیڅ ټول تشد دهیـڅ

ټول ورك شه ،گم شو،داخبر ی زمو ږخلکوته ونه کړی ، زموږ خلك واقعا ډیر ځو رید لی دی،ډیر کړیدلی دی،ډیرورك شه یی‌او رید لـی دی اوس به فقط ورته وایی چی راشه‌پرځنگانه می کښینه که څوکی نه‌وه .

موږواقعاً‌له فیوډال اوفیوډالیزم نه کرکه کړیده او کرکه کوو ، داخپل ملگری مو په دی روحیه روزلی دی مگر اوس چی دولـت زموږ په‌لاس کی‌دی دگوندپه لاس‌کی دی فیوډال او فیو ډالیزم په هغه ټول سره غند و مگــــر په انفرادی صورت سره دفیو ډال دتحقیرولواو سپکولو قطعا اجازه نشته ، مـوږ به له د ی فیو ډاله یوسړی جوړ کړ ورابه یی ولو تر خپل څنگ به‌یی ودرووواوله مـــوږ سره بـــه ددی وطن په آباد ولو کی کارو کړی نوهغه ته په سپکه ستر گه کتل یاد هغه سپکا وی کول داجایزنه‌دی خو ځکه قطعا څوك تر (۳۰) جر یبه اضافه نشی لر لی ، داپه هیڅ‌صورت‌نه ور کوو ،اما داچی دا موځینی واخیستله زیاتی نو ځه ، خو زموږ وطندار او زموږ هیواد وال دی ، یو گوند هله ښه متحر که فعال او

ژوندی کیږی چی دهغه هرغړی یو سیا سی مغز ولری ، سیا سی تفکر ولری فکر وکړی او نظرو ر کړی اوحتی لیږ رشپ رهبری کړی اوښه تعمیری اوپر ځای انتقاد وکړی که‌دانه وی گوند مری ، موږ گوند قطعا داسی نه بو لو لکه یو سو تنی چی موږه لاس کی اخیستی وی هر څوك پری وهو دا سینه دی باید گونداسیفعال اوداسیښه متفکروی چی هغه فکر وکړی او هرشی تحلیل کړی او خپله برخه په‌کی واخلی هر رنگه انتقاد چی لری په خپله حوزه کی دی مطرح کړی نه‌دحوزی‌نه، دباندی‌که‌دی‌حوزی نه‌دباندی‌انتقاد و شو دانو تخر یبی شکل نیسی ،دا نو پروپاگندی‌دی تاماته‌ویل، مابل‌ته‌ویل، بل بل ته، داگو ند خرابوی دا قطعا اجازه نشته، اما په حوزه کی هر رنگه انتقاد تعمیری انتقاد چی لری هغه گو ندپه ډیره پراخه سینه منی ا وهغه ملگری به ډیر قدر شی چی دگو ند دلایووالی دگوند دلاغښتلو الی دپاره تعمیری نظر یات وړاندی کړی اوهغه قطعا څوك نه منع کوی اوباید همد غسی وی .

دا یوازی څلو رتنه نه‌دی چی تحسین‌لیکونه یی اخیستی دی او ددی استحقاق یی پیدا کړ یدی چی دا ویاړو گټی، بلکی نورو کسانو هم دتحسین لیکو نو دلاس ته راوړلو ویاړ گټلی دی خو دایوازی د نمونی په ډول ما څلور وتنوته د هغوی تحسین لیکونه ور کړل ،خودا به ورو ستنی تحسین لیکونه نه وی بلکی لومړنی تحسین لیکو نه به وی ولی چی مونږ به خورا ډیری تحسین نامی خپلو ځوا نانو او پیغلو ته وویشو یوازی تحسین نامی نه بلکی دا لوی ویاړ دی چی خلکو ته کار کوی ځان ته کار کوی نو تر دی لوی ویاړ اوتر دی لوی تشو یق کوونکی شی نشته اوپه دی باید هرڅوك نور هم تشو یق شی ،چی څر نگه کار وکړی په وړیاتو گه غیر له وړیا توگه په خپله وخت کی هم چی دی ، ډیر مصر وفه وی ښه اساسی کار وکړی ، هغه شپږ اوه سا عته داهم ډیر دی او بیا وړیا خولاځه کوی هغه خو بیا بیخی ښه دی ،مگر بیا هم په اصرار سره وایم چی بیگار نه کو و، په هیڅ چاپه زور کارنه کوواوچی په خپله‌کارکوی نو فقط او فقط عریضی به راته کوی چی زه یی وړ یاکوم .

بیاهم‌زه خپل احترامونه‌خپل‌سلامونه‌خپلی مننی ستاسوپه ذریعه ټولو هغو زیارایستونکوته چی په‌دی پروژه کی‌یی کارکړیدی زنبیل یی وړیدی ، گلکاری یی کړیده ، بنادی که نجاردی که موټړ وان دی که کلیز دی،هر څوك چی دی هغو ته یی رسوم اوله دی ځایه ورته تحسین وایم .

موفق اوسی .

بریالی اوسی.

# تاسو ځوانان نیکمرغه یاست چې داسې نظام کې د ژوند طوفاني دورې ته رسیدلي یاست چې دا طوفاني دوره د خلکو په ګټه سمبال شوې او سوق کېږي

زمونږ ستر مشر دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند (دهیواد دکار ګرې طبقې مخکښ) دمرکزي کمیټې عمومي منشي نورمحمد تره کي دحوت دمیاشتې په ۲۱ نیټه ترغرمې دمخه د هیواد د مرکز او ولایاتو دځوانانو دخلقي ساز مانو نو منشیان دخلکو په کورکې حضور ته ومنل او هغوی ته یې په خطاب کې داسې وویل :

۲۱ر۱۲ر۱۳۵۷

زما دستر ګو تورو خلقي ځوانانو !

ستړي مشئ ،ښه را غلاست .

خوشحاله یم چې له تاسو سره بیا بالمواجه مخامخ ګورم او له تاسو سره هغه خبره وواېم چې باید سره ویې وایو .

اوس هغه شپې اوورځې تیرې شوې دي چې په پټه پټه به موسره خبرې کولې ، اوس په رڼا ورځ په ډیره ښه وضعه سره خبرې کوو. په دې باندې تاسوهم خوښ یاست زه هم خوښ یم .

ځوانې تقریبا دوې مرحلې لري :

یو ه یې ډیره تعمیري اوبله یې ډیره تو فاني ده ،خو تاسو هغه ځوا نان یا ست چې په توفاني دوره کې یې ژوند کوی مګر په دې باندې ډیر نیکمر غه او خو شبخته یا ست چې په داسې خلقي نظام کې دې دورې تـه رسیدلي یاست ، چـې دلته به داتـوفـانـي دوره دخلکو په ګټه سمبال او دخلکو پـه ګټه سوق شي .

تا سو ته معلو مه ده چې توفانو نه که سم اداره شي اوپه خپله سمه لار روان شي، له هغو څخه ډیرې ګټې لاس ته راځي مثـلا بر یښنا تولید وي کښتونه خړوبـوي، ملکو نه آبادوي ،خوکه دغسې پر یښو دل شي وا قعا هرشي ویجا ړوي هرشي له مینځه وړي لکه پخـوانـي نسلونه چې نه وو اداره شوي، ځینې داسې کارو نه یې کړ یدي چې دافغانستان په ګټه نه وو بلکې ددوی لـه نا پوهي څخه هغه دامپر یالیستا نو اودهغو دګوډاګیا نو په ګټه تمام شوي وو .

ستا سو رول او نقش په ټو لنه کی خورا درونددی او خو را ډیر تعمیری کید لی شی او موږ هم دایقین لرو ،چی زموږ خوانان پــه دغه رول پهښه توګه ولو بوی په خلقـــی ساز مانوکی ستا سو راغو نډ یدل ، دډیرو خلکو په ګټه دی اوتا سو خلکو ته ډیری ګټی رسولای شی .

موږ داوایو چی تاسو په دی سازمـانو کی روزل کیږی تاسو دی ته چمتو کیږی چـی په راتلونکی وخت کی څرنګـه په تعمیری دورـ وکی ډیره ستره برخه واخلی .

ټولنه نه یوازی په افغانستان کی بلکی پـه جهان کی پر ځوانانو باندی متکی ده دځوانانو په اوږوبانـدی دټـولنی وده سپره ده او پـر هغوی باندی تکیه لری نومو ږ یقین لرو چی تا سو به دهغی دوری دپاره لانور هـــــم چمتو شی اولابه دی ته تیاری ونیسی څکـــه چی زمو ږ انقلاب دنړی په انقلا بونو کـــی وروستنی ډول او ورو ستنی سیستم دی چـــی دلته په افغانستان کی راغلی دی نو زه یقین لرم چی تاسو هم ددی ورو ستنی ډول زامـن واست .

تاسو ته معلومه ده چی انقلا بونه هغــه ستر اوښتــون دی چی قــدرت لــه یـوی طبقی نه بلی طبقی ته ولیږ دوی او سیا سی او اقتصادی قوت بلی طبقی ته په لاس ور کړی مثلا فیو ډاله او بو رژوا طبقه :دفیو ډا لـــی طبقی په نس کی ، بو رژ وازی طبقی وده وکړه او مثلا په اروپا کی په تیره په انګلستان کی او په فرانسه کی هلته دفیو ډالی طبقی له نس څخه یوه ډیر ه ګلالی نجلی وزیږ یده، چی هغه بو رژ وازی انقلا ب ؤ، چی په فرا نسه کی په (۱۷۸۹) کی وشو او همد غه ډول په انګلستان کی ددغی فیـوډالی طبقــی نه بلــه لور وزیږیده ،چی هغه دپار لمان په لار ښوونه دهغه وخت دفیو ډالی شا هانو پر ضد باندی قیام ؤ اوهمد ا ډول دا انقلا بونه بورژ وازی انقلا بونه وو چی دا دفیو ډالی طبقی له نس څخه وزیږ یدل اوپه هغه کی یی وده کړی وه او قدرت یی له فیو ډالی طبقی نه دبورژوازی طبقی ته په لاس ورکړ ،په بورژ وازی طبقی کی بیا دغسی تضا دونو وده کوله چی باید یو چیری بل انقلاب وشی اوباید دا شـــوی وای .

هغه سو سیا لیستی انقلاب دی چــــی دبو رژ وازی له ګیډی نه را وزیږ یده او دا افتخار دشوروی اتحاد خلکـو په برخه شو په روسیه کی دا انقلاب راغی اوداسوسیالیستی شکلی لوریی وزیږوله نوموږ ویلی شو چـی دا سوسیالیستی نظـام چی هلته ټینګ شو هغه بیا په ټوله نړی باندی داسی اغیزی وکړی لکه بو رژوازی چی کړی وی .

بورژ وازی هم هغه وخت چی په فرانســی، انګلستان ،امر یکااو نورو هیواد وکی مینځ ته راغله په ټوله نړی باندی یی تاثیراچولی ؤاو سو سیا لیستی نظام چی په روسیه کـــی قایم شو نوپه ټول جهان کی یی وړا نګـــی خپری شوی او هر چیرته یی نور خلک راوینښ کړل . په افغانستان کی چی داز موږ آخری انقلاب بریالی شو دلته هم دطبقو ترمنځـــه

تضاد موجود ؤ خودا ډیر شعور انه اوآگاهانه نه ؤ بلکی په غیر شعور ی‌توگه دامبارزه روانه وه دد وودریو طبقو په منځ کی مثلا بورژ وا طبقی خو دومره وده نه وه کړی،د فیو ډالی طبقی ا و دنورو زیار ایستو نکـــو طبقو تر منځ دا جگړه غیر محسوسه غوندی روانه‌وه ، خودافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند له تاسیس نه وروسته دی وضعـــــی ورو ورو تغییر کاوه اودی مبارزی خپل لوری او خپله خوا پیدا کوله، تر څو داسی خوا ته ورسید له‌چی دافغانستان دفیو ډالی طبقی لـه نسه بیا یوه ښکلی لو روز یز یده خوهیچادا فکرنه کاوه چی دالوری دی واقعا هغه بـــی استثماره طبقه والاوی .

ټوله به ویل چی دابه بو رژوازی وی‌خو ټولی نړی ولید ل چی هغسی نه‌وه دا واقعا دبی استثمار ەطبقی یوه نجلی وه، داده مسئله او س وده کوی اوله فرد څخه دفرد لـــــه استثماره دپرته ټو لنی دجوړ ولو لپـــاره لگیا یو ، کار کوو ،موږ دی ته ځکه دانقلابی سیستمو نو ورو ستی پړول وایو چی دلتـــه هیچا دا انتظار نه درلود چی په داسی ټو لنه کی به سیا سی قدرت زیار ایستو نکی لاس‌ته راوړی او فیو ډالی نظام به ړنگ کړی اود کمپر ا دوری بو رژوازی یا بو رژوازی دو دی مخه ونیسی .

دا دافغانستان خلکو ته ډیر ستر انقلاب وروستی سیستم او آخر ین ماډل دی اوداسی مثال لری ، لکه یو خوار سړی ته چـــــی هیڅ فکر یی نه‌وی او آخرین مودل موټرورته ودر یږی نو موږ وایو چی او س با یـــد ددغه موټر استعمال موږ زده کړو چی څرنگه پکی سپاره شو، څر نگه یی استعمال کـړو او دارانه خراب نه شی ، نوځکه دلته ستاسو، او دلو مړی مرحلی دځوانا نوو ظایف هـــم ډیر درانه دی ، گوند او دولت هم‌په دی‌باره کی ډیره پاملر نه کوی چی خپل دغـــــه نوی زلمیان په‌خپلو ساز مانو نو کی دا سی وروزی چی په راتلو نکی کی تعمیری درجی ته ورسیږی یعنی چی له شلو یا یـــوویشت کلو نو وروسته دځوانانو تعمیری وخت شروع کیږی نو ځوانان باید دی ته چمتو کړو چی د انوی نظام چی په هغه کی له سړی څخـــه د ســـړ ی ا ستثمـا ر نـه و ی پـــه ښـه شان دبر یالیتوب پړاوته ورسوی ، نوځکـــه زه دا وایم او ټول داعقیده لرو او دادیالکتیکی قانون هم‌دی چی ، نوی تل دزاړه ځای نیسی خو نوی تر هغو مینځ ته نشی راتلی چـــی دزاړه په څنگ کی او دده په نس کی ونـــه روزل شی ، یعنی تکامل ونه کړی ځکـــــه نوموږ خپلو ځوانانو ته دغسی تکامل ورکووو و لی چی دوی ددی اوسنی نسل ځـــــای نیو ونکی دی نو داسی یی سمبا لوو لکـــه څوك چی خپل زوی یا ورور دجنگ ډگر ته لیږی او په توره، ټوپك او ډال اوهر شی یی ښه سمبا لوی موږ هم غواړو چی خپـــــل ځوا نان دتیوری له نظره له اخلاقی او سیاسی له نظره داسی سمبال کړو چی دا ځــــای چی دوی ته ورسپارل کیږی او داد طبیعـــت قانون دی چه باید وروسپارل‌شی دهغه وړوی او ددغه هیواد دپاره هغسی کارو نه وکړی‌چې



زموږ گران لارښود دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کی کله چی دمرکزاوولایاتو دځوانانو دخلقی سازمانونو له منشیانو سره دخلکوپه کورکی خبری کوی .
۱۳۵۷/۱۲/۲۱

زموږ اود خلکو ارزو ده او هغه داچی دانقلاب شا ته گر ځول ناممکن شی اودبی استثماره ټولنی جوړی نـوری هم ټینگی کـړی اویـو ودان او یو ډیر ښه هوسا افغانستان جوړشی۰ شی

نو ځکه وایم چی تاسو ددغی ټو لنـــی دوا ګو اخیستلو دپاره پهدی ساز مانو کـی ځا نونه چمتو کړی پهبل عبارت زموږدغـــه دځوانانو خلقی ساز مانو نه دخوا نا نـــو ځخه مقصد دا نارینه اوهم ښځی او پیغلـــی دی دوی باید دلته ور وزل شی دا زموږدگوند

دپاره ،زموږ دگو ندی فعا لیتو دپاره ، زموږ د دولت دفعا لیتو دپاره او دافغانستان خلکـو ته دخد مت دپاره یوه ځا نگو ده تاسو ویاړ لری چی پهدی ځانگوکی ځنګیږی اودیتهروزل کیږی چی په مترقی مفکوری او نوری لیـــد باندی سمبال شی او دافغانستان خلکـو تـه دهغی ټو لنی په خوا لار ښو ونه وکړی چی واقعا هلته ټول استثمار گران له منځـــــه ولاړ شی خوزه وایم چی تر تا سو ړومبی به یی موږ له منځه یو سو داز ما یقین‌دی۰

رښتیا درته وایم دا تکلیف هم تا سو ته نه پریږدو او موږ به یوه داسی جوړه شوی او بی استثماره ټو لنه تاسو تهدر تسلیـــم کړو اورسید به یی در ځخه واخلو چـــی واقعا یی تاسو اوس تصور نه شی کو لـــی خو زه یی تصور کوم ، گوند یی تصور کوی دولت یی تصور کوی چی موږ دهمد غـــــی ټولنـــی جـوړوونکی یو او تاسو تـه بـه یی درو سپارو .

خو ستاسو ستره وظیفه بـه داوی چـــی همد غه ټو لنه چی مو ږ یی تاسو ته درسپارو یعنی بی استثماره ټو لنه دانښه وساتـــی او نور دیی هم بی استثماره کړی او نـــوره هم هغی ځواته وده ورکړی چی هلته هرځوك دخپل احتیاج پهاندازه واخلی اودخپل استعداد په اندازه کارو کړی

زما له دی ویلو ځخه چی مو ږ یی درتـه جوړ وو دا مقصد نهدی چی تاسو نولاس ترزنی کښینی موږ نه گوری چی پر یږدی دوی یی راجوړه کړی او رایی کړی داسی هم نه ده ستا سو خپلی وظیفی هم ډیری درندی دی مثلا دا ستا سو وظیفه ده چی په ساز مانونو کی ځر نگه نور تنو یر کړی له نـــورو ځوانانو سره تماس ونیسی او خلقی ځـوانان نور په خلقی نړی لید باندی وروزی .

ځوان پر ځوان باندی ډیره اغیزه لـــری او تاسو داخپل خلقی افکار نورو ته منتقـل کړی او دوی همپه دی سازمانونو کی ددی دپاره تنظیم کړی چی بیا دوی ډیر اغیزناك خد متو نه دخپلی ټو لنی له پاره وکړی شی مثلا تاسو اوس کولی شی چی، پـه ډیـرو ځایو کی له دولت سره نه یـوازی مـرسته وکړی بلکی یوعامل هم و اوسی هغه داچی مثلا تاسوله انقلاب ځخه په دفاعی کمیتو کی ډیر کار کولی شی ۰ اوله دفاعی کمیتو ځخه زموږ مقصد دانه دی چی دستی توره او ټوپك پـه لاس درکــړو او د جنـــگ سنگـرته مو لیږ و .نهموږ جنگ لرو اونه دی محاذته ستا سو دلیږ لو ضرورت شته ، خو تیاریورته لرو که یووخت فشار را باندی راشی۰ نو خپل

لس کلن، دوولس کلن هلکان به هم سنگرته ولیږو .

مقصد می دادی چی دانقلاب ددفاع کمیټی یوازی دا کارنه کوی بلکی ډیر نور کارو نه هم دوی کولی شی . کوی یی او با یـــد و یی کړی چی حتی ددفاع کمیټو څخه زموږ مقصد او هدف لکه څنګه چی زموږ د ګوند سیا سی بورو ویلی دی داهم دی چی پــــه ټولنه کی ډیر واړه واړه کارو نه هم دوی اجرا کړی په حقیقت کی هغه واړه نه دی غــټ دی .حتی یو دهګی غل هم باید ونیسی.حتی یو ګڼکپ هم چی ګڼګپی وکړی با ید چی دوی یی دڅارندوی په لاس ورکړی او دانقلاب ددفاع دکمیټو وظیفه ده او ډیر نور داسی کا رونه وکړی ، چی هغه دټولنی په ګټـــه تما میږی ،لکه داچی په امنیتی چارو کـــی هم کومك وکړی، په اقتصادی اوسیا سی چارو کی هم مرسته وکړی ،په هره برخه کی دوی کومك کولی شی داد فاعی کمیټی او ددغو دفاعی کمیټو ډیر فعال ،خو ځند او متحر ك غړی همد غه تاسو ځوا نان یاست او هـــم باید اوسی . اودی ته ځانونه ډیرچمتو کړی نو موږ چی دغسی ټو لنه جوړوو، واقعا مـــوږ څوك بی سر خوږی نه پریږدی او باید پری مو نه ږدی دا خو بیخی دیا لکتیکی خبره ده، زړه ټو لنه چی له منځه ځی هغه مقاومت کوی.

هر کله چی زوړ له منځه ځی هغه مقاومت کوی ، نو نوی چی مینځ ته راځی هغه با ید ډیری هلی ځلی وکړی چی دغه دزاړه مقاومتونه مات کړی ،موږ دا زړه ټولنه چی ما توو نو دوی مقاومت هم کوی  البته دلته ټول یی نه کوی ،یوازی هغه کسان یی کوی چی پـــه دغه ټو لنه کی دوی استثماری ګټی درلودی مثلا څــو تنه فیــوډالان ، یو څو تنه کمپرا- دوران، څو تنه امپر یالیستی ګو ډا ګیـــان چی تل یی دلته وړ یا خوړلی وه، تل به یی یوازی اویوازی مزی چړچی کولی اونورخلك به ددوی په خدمت کی وو . دوی مقاومت کوی. خود دوی مقاومت هم بی تاثیره نه دی مثلا دوی تبلیغات کوی ،تور لګوی چی داو شـــو او هغه وشو

مثلا یو ماښام ملګرو احوال راکړ، -

کو می راډیو ویلی چی په افغانستان کی خلقی دولت جو ماتو نه سوی او وران کړی یی دی او خلك نه ور پریږ دی ، داتور ځکه لګوی چی زمو ږ دانقلاب په مقابل کی مقاومت کوی موږ بد نا مول غواړی خوزه دلته ټو لی اسلامی نړی ته داد عوت او بلنه ورکوم چی خپـــل استازی دی راو لیږی او ودی ګوری چـــی جو مات چیرته سوی دی ،قطعاء داسی نـــه دی شوی . اوموږ لاآباد کړی هم دی . داد فیوډال ،فیو ډالیزم اود امپر یالیزم په دسیسه باندی تبلیغات دی، موږ دا تبلیغات لکه چی وړه مه ورځ می وویل، په کلکه ردووا وتاسو ځوانان په دی باره کی خپل وظـا یف څــرنګــه چی دی هغسی اجرا کړی .

دثور دانقلاب نه ورو سته نور په افغانستان کی هغه کسان چی واقعا ء دوه مخی منافـق دی او دنورو دپاره کار کوی ځای نه لــرو مثلا ځینی کسان دی چی تنو نه یی دلتـــه

او زړونه یې بهر دي . دوی په هر ځای کې چې
وی په ظاهر ملنګ دی، په باطن کې پلنګ
موږ له دوی سره مبارزه کوو . دوی ځکه ،
(پلنګان )دی چې بیا هم غواړی دتاریخ څرخ
دشاپه لوری وګرزوی اوبیا هغه زوړ ساز
اوزوړ مطرب دلته راولی خو زوړ ساز هم
نور خراب دی زوړ مطرب هم خانه خراب، نو
موږ تاسو ته د اوایو چې موږ له دی دښمنانو
سره خو مخامخ یو خو څرنګه چې خلك له
موږ سره دی او خلك په موږ اعتماد لری ځکه
چې دوی په خپلو ستر ګو ولیدل چې موږ څه
کو و، موږ له دی دسیسو اوله دی خبرو څخه
قطعاء نه ډاریږو اونه پر موږ باندی تاثیر
کوی اونه پر خلکو باندی کومه اغیزه کوی،
خو زما مقصد دانه دی چې موږ دی دلته
لاپی وو هو بلکی زموږ مقصد دادی ،چی څرنګه
خپل خلك اوخپل ځوا نان مجهز کړو ، ددوی
دښمنا نو او دافغانستان دخلکو دښمنا نو
ته یې ملتفت کړو چې دهغو په مقابل کې
موثره مبارزه وکړی ، له موثر ی مبارزی پرته
بله هیڅ لاره نشته او ارتجاع موږ دا سی په
آرامه نه پریږدی .

اوس دابس نه ده، چې موږ ووایو چې
انقلاب وشو اوبس انقلاب خوو شو خو اوس دا
انقلاب ساتنه غواړی ، اوس له هری خوا
پری ګو زا رونه کیږی ، تبلیغی ګو زارونه
خو را ډیر دی اما نور ګو زارو نه دلته
کولی نشی چی خلك دهغوپه مقابل کی یو موټی
دی، یو سوك دی او داسوك کولی شی چې
ددوی غا ښو نه ورمات کړی . په دی فعالیتو کی
زموږ خلقی سازما نونه واقعا ء ستر نقش‌لری
او لکه پخوا چې می وویل : ستر نقش یې
لو بولی او لو بولی یی شی ، نور به هم
دوی تنظیم شی، نور هم مستحکم شی ،نوره
زده کړه به هم وکړو .

موږ یې په عمل کې زده کوو واقعاً څه
وخت وروسته به زموږ تجر بی دومره ډیری
شی چی بیا به ډیری لږ ی اشتباه کوو له
هغی جملی څخه زموږ دځوا نانو او پیغلو خلقی
ساز مانو نه دی ، دا ساز مانو نه واقعاء
دافغانستان دافتخار وړدی دوی دټو لنی په هره
بر خه کی ښه موثره برخه اخیستی ده او
نوره اغیزه ناکه برخه هم اخیستی شی
مثلا ما هغه بله ورځ هم وویل : چې دوی په
دی کی مخکښان او پیشقدمه وو چی دخپلی
خو ښی کارو نه وکړی، په خپله خوښه سرې
کان او کوځی پا کی کړی او دابیخی لاکوچنی
کا رونه دی موږ و ایو چې دوی تردی لانور
هم هغه ستر کارو نه وکړی چی دافغانستان
دټولنی دنیکمرغی او هوسا ینی باعث شی، زه
دا یقین لرم چې په دی باره کی ستا سو
وظیفی هم درندی دی اوهم آسا نی ، آسانی
په دی دی چې دولت ستاسو په لاس کی دی ،
دولت خلقی دولت دی ، دکار گر او دبز گرو
دولت دی ،یعنی اصل دولت دکار گرا نو
دی بز گران ورسره متحد دی ، بز گران هم
ددوی ملا تړ کوی ، اوځکه نو زه وایم چې
تاسوته دهر شی دپاره ، هم دودی دپاره
او هم دمطا لعی دپاره لاره او اره ده پخوا په

موږ مثلا په یوه توره تیاره کی یا په یوه گوټ کی په پټه اوغلا یو کتاب لوست.

اوس دادی در اړیو تلو یز یون، کتابو نو او نور ټولو لارو تاسو تنو یر وواو تاسو ته دټولنی دحقیقی ودی عوامل ښیو . څکه نو تا سو واقعا نیکمر غه یاست اوکو لی شی‌چی تر پخوا نیو نسلو نوډیر کارو کړی .

دظاهر شاهی او داود دا ختناق په شپوورځو کی زموږ ځوا نانو ډیر ښه کارو نه کړی دی په هغه وخت کی گوند دوی ته لار ښوو نه کړی ده اودوی یی تنظیم کړی وو مثلا ستری ستری مظا هری یی کړی دی ، فیو ډالان‌او ددوی گو ډاگیان لکه ددوی حا کمه ټو لنی یی رسوا کړ یدی . دوی یی خلکو ته ور په گوته‌کړی دی . چی دافغانستان دخلکواصلی دښمنان څوك دی دا زموږ هغه ځوا نان ؤچی هغه وخت به موږ خلقی ځوانان بلل او هغه خلقی ځوانان دادی اوس دخلقی ځوا نا نو په سازمان کی تنظیم شویدی ، تا سو داسی نه یاست چی همداسمدستی را ووتلی په ساز مان کی شامل شوی زه تا سو ته وایم چی ستاسو مبارزه هم دگوندی غوندی څوارلس کلنه مبارزه ده . داله ویاړه ډکه مبارزه ده اوتل مود خلق بیرغ او چت سا تلی دی منړی ترړی موهم کړ یدی. البته لار ښوو نه ټوله دگوند وه دا ویاړ هم گوند لری ، د اویاړ خلقی ځوانان هم لری چی دگو ندپه لارښو ونه یی مظاهری او غو نډی کولی، زندانی کیدل ، بند یان کیدل اوځر نگه چی دگو ند په تاریخچه کی لیکل شوی دی ، هما غسی جزا گانی دهغه وخت دولت ورکولی او دا یی غوښتل چی زموږ ځوان فکر ونه او ځوان ما غزه ، دخپلی مبارزی له لاری‌واړوی خو موږ په دی باندی ویاړ وچی ډیر لږ کسان واو ښتل ، ډیر لږ خو ځوك چی له موږ سره متحدوو او دا یی نه یوازی له موږ سره ، بلکی له‌ځان سره فیصله کړی وه، چی باید دافغانستان دخلکو زامن واوسی اوهغوی ته کار وکړی .

هغوی قطعاً وانه وښتل په زندانو کی یی شپی ورځی تیری کړی خو دښمن ته‌یی غاړه کښی نه ښوده .

ستاسو دولت چی اوس دزیار ایستو نکو کار گرانو دولت دی ،نو دااوس یی ټول شرایط دی ته برابر کړیدی، چی تا سو نور هم لکه پخواچی می وویل : په‌ښه توگه و روزل شی، اودی ته چمتو شی، چی دټولنی د سعادت او نیکمر غی له‌پاره لاښه کار وکړی .

زه یقین لرم چی دولت په‌دی باندی بریالی کیدو نکی دی ،نو ستا سو وظیفه ده، چی پخپل وار سره کارو کړی .

تاسو هم تاریخ لری ، تاسو هم سا بقه لری چی دلته مو مبارزه کړ یده او دا مبارزه موسرته رسولی ده او له دی څخه مومخ نه دی اړولی

د انقلاب بریا لیتوب تر ډیره حده پوری ستا سو ځوا نانو په مبارزه پوری هم اړه‌لری او په اردو کی هم دغه زموږ خلقی ځوا نان وو، هغوی موږ ښه وروزل او انقلا بی مفکوره مو ورکړه .

دوی چې ځوانما غزه در لودل ویی کړای شول، چې زمــوږ دا مفکــوره ، زمـوږ دا ایډیالوژي واخلي ، هضم یې کـړي او ګوندی انضباط او دسپلین ومني اوکوم وخت چــې موږ ورته وویل چې (انقلاب) په هغه ورځ انقلاب ؤ ،دټول فیو ډالیزم ، ارتجاع اواستبداد تخته پربله خواو اوښته .

تاسو دافغانستان په هره سیمه پورې‌چې مر بوط یاست ، دهر ملیت چې یا ست او هر ځای چې اوسی یوازې دابه په نظر کې نیسی چې تاسو دزیار ایستو نکو زامن هم یا ست، او دزیار ایستو نکو دپاره مبارزه هم کوی.

باید دی ته ځان چمتو کړی څوك چــې دغسې لوېه مبارزه او دغسې لوی کار پر مخ بیا یی هغه باید ځان له هره اړخه مجهز کړی .

یعنی هم‌ځان په‌تیوری‌سمبال‌کړی اوهم په لوړو عالی‌خلقی اخلاقوخلقی‌اخلاق ډیرمهم دی او که دا څوك ونه لری خلك بیا پری اعتماد نــه کوی، بیابه‌موبیباکه ځوانان بولی، داسی‌ځوانان به مو بولی چې خپل وخت خوشی تیروی‌خو داسی نه‌ده زموږ خلقی ځوانان خو یوازی‌ددی له پاره وقف دی چې څر نګه دخپلی ټو لنــی دپاره کار وکړی .تاسی ددی له‌پاره هــــم تیاری ونیسی

او هم ځان ددی وړکړی چې با ید دخلکو اعتماد په تا سو راشی اوځه چې تاسو وایاست خلك یې ومنی اوبه تاسو ویا ړی چې زموږ زامن اولو نې اوس واقعا پو هید لی دی نور یوازی په دی پسی نه ګرزی چې طو فا نــی دوره په طو فانی توګه تیره کړی ، بلکــی حتی دا طو فانی دوره هم په اخلاقی او خلقی تو ګه تیره کړی .

نو تاسو دی‌ته ملتفت اوسی چې هر چیری ځانونه واقعاً دخلقی ځوانانو په توګــه ثـابت کړی او زما توصیه هم تاسوته دغه ده اوبله هیڅ لاره‌نه شته .

او لاره هم همد اده ، څوك چې خلکو تــه کار کوی هغه باید دخلقی مفکور و څښتـــن وی، دخلقی علم څښتن وی او خلقی نړی لید ولری ، نوځکه زه وایم چې تاسوهر چیری چې ځی نورخلك اوځوانان دی‌ته ملتفت کـــړی، چې هغوی هم‌له تاسو سره ملګری شی اوپه پای کی موږ دغسی ځواړو چې دافغا نستان ټول خلك په ساز مانو ،په‌اتحاد یو او پــه نورو کو پرا تیفو نوکی منظلم شی ، اوتــل دخپلی نیکمرغی اوهو ساینی له‌پاره مبــارزه وکړی ، او ددوی علــم برداران یا مخکښان باید زموږ دغه ځوانان وی .

تاسو ځوانان واقعا ء هغه کارونه کو لی شی چې دولت یی‌په ډیر څه نشی کو لـــی دولت به په مامورینو ځینی کارونه وکړی خو هغه کارونه چې بیا دخپلو خلقی ساز ما نوپه ذریعه کوی بنا یی په نورو باندی ممکن نه وی نو ځکه زه تاسو ته بیا هم په کلکه‌سره وایم هر چیری چې ځی خلقی سازمان‌جوړوی. خلقی سا زمان ته‌به وده ور کوی ، خلقـــی سازمان به سمبالوی ،اوهلته به دګو نــد ادبیات او لیکنی په‌پوره پاملر نه اودقت وایاست

او ترهغو پوری چی تاسو گـوندی آثارونه
وا یا ست نوتا سو نه‌شی کو لی چی خلکو ته
څرنگه چی وړوی هغسی کار وکړی ، هغـه
خوك چی‌کارکولی شی چی هدف ورته‌معلوم وی
او که هدف نه‌وی ورته معلوم هیڅ نشـــی
کولی .

ما څو څو ځلی نورو ملگروته هم ویلـی
دی چی موږ خپل ځوا نان تر هغو پوری ښه
نه شور هبری کولی حتی خپل گو ند اوخپل
خلك تر هغو نه شو رهبری کولی تر څو چی
پوهه نه‌وی زموږ ټوله لار ښوو نه او زموږټول
فعالیت پر پوهنه ولاړدی .

که پـو هنـه نـه وی تـوره تیـاره ده
یوازی په احسا ساتو موږ خوك نـــه
سوق کوو اونه یی سوق کولی شو. احساسات
خو یوه شیبه وی ، بیرته فکر وکړی چـــی
بابا یوه خبره وه ولاړه ،تیره شوه ، خو که
مو مفکوره ورکړی وی ،او دوی زده کــړی
وی، چی ټولنه څرنگه ده ، کومی کومی طبقی
په دی کی شته ، کومه طبقه دکومی طبقـی
په مقابل کی ولاړه ده .اودڅه شی دپاره‌ولاړه
ده .

اوزه باید دکومی طبقی په څنگ کـــی
ودریږم ، نو هغه وخت موږ هم ډاډه یو او
دوی هم په ډیر اطمینان سره مبارزه کوی‌او
مخ په وړاندی به ځی، دوی به دا احساس نه
کوی چی په‌یوه څو خبرو وغو لید لی یوبلکی
مسؤلیت به احسا سوی ، چی افسو س تــر
او سه ولی بیده وو ،او داتر اوسه پوری ولی
دی ته زما پام نه‌ؤ .اوبیا هغه وخت دوی‌خورا
په ډیر کوشش ، په ډیر اطمینان په دیـــره
سره سینه اوپه تا وده زړه سره دخلکو دپاره
مبارزه کولی شی . پخواله دی چی گوند حتی
جوړ شی ،طبقاتی مبارزه خوتل رو انه وه ان‌چی
دلومړی کمون څخه وروسته دغلامی په‌دوره‌کی
دفیو ډالی‌دوره کی ، دبور ژوازی په دوره کی
هروخت طبقاتی مبارزه روانه وه، خو غیـــر
شعوری به‌وه شعورانه هغه وخت پیل شوه‌چی
بو رژوازی پراختیا وکړه ،کار گران منځ ته
را غلل ،صنا یعو وده وکړه ،نو دا مبارزه
په شعوری او اگاهانه ډول مخ په وړاندی‌ولاړه
خو په افغانستان کی له بده مرغه صنا یعــو
ښه وده نه وه کړی ،کار گران ډیر لـــږوو،
بز گرانو هم شعور ی‌طبقاتی مبارزه ښه نه
پیژنده

دادی نه ورته وه لکه ما چی ملگرو تـــه
ویل ټو ل لکه چی بیده دی ،ټول به بیده وو
یوازی موږ وو، او دا زمو گوند ؤ، لو مـــړی
کـریزه مو وکړه چی او خلکو راویښ شی .
مړه یی کړ است ،وی خوږ است او خپـل
ځانونه خلاص کړی .

زمو ږ دی کړ یږی او دی شپیلی دا سی
اغیزه وکړه لکه یوه خوږه شپیلی چی لـــه
درانده خوبه خوك ویښ کړی .

دا ځکه چی‌په دی شپیلی کی حقیقت ؤدا
شپیلی دزړه له کومی را ولاړ یده. مـــوږ
حقایق ورته ویل چی اوورو ره :

نه خویو څو کسو ، خانا نو او ملکا نو
دغسی دظلم دبار لاندی کړی یی .

نه خویی دغسی بد بخته کړی او دغسی‌خوار
کړی یی. دابه چی مو ورته وویل او دوی به

په خپله ملتفت شول چی داخو ربښتیا وا یی نو بیا هغه وخت په موږ پسی خانا نو اوملکانو پرو پا گند کاوه دغه بهٔ یی ویل چی :

«دوی کفار دی ،دوی دغسی دی اویا هغسی دی ،دوی به ورته ویل هر شی چی‌دی خبره یی ربښتیا ده . »

نو موږ چی هغه وخت یو وو یا دوه ووبیا لس شو و بیا گوند شو و، نوچی زموږ دی هلو ځلو دخلکو په راو یښو لوکی ډو مره تا ثیر وکړ نو اوس خوزه یقین لرم چـــی دغو مره ځوا نان زموږ تر څنگ ولاړ دی.

دولت له موږ سره دی ، دی ټو لو خلقی ځوا نانو خلقی ساز مانو او گوند ډیره وده کړی ده اودی ټولو لاس سره ورکړی دی.

زه یقین لرم چی دوی دادرك کړی ده او زموږ بزگران بهٔدی ته بالکل ملتفت کړی چی دی ځوك وو او څر نگه شو. او داپه عمـــل کی هم موږ ورزده کوو چی ده به تما مـــه ورځ دبل دپاره هلی ځلی کولی .

ما ینی به یی دفیو ډال اودخان په کور کی خد مت کاوه ، خوبیا هغه وخت چی موږوړته داحقایق وویل: اوپه عمل‌کـــی مووروښودلـه او اوس مود هغه خان او فیو ډال څمکه ده ته ورکړه نوهغه چی پخوا به یی با داری‌پری کو له او س دده سم سیال دی .له ده سـره مساوی دی او حقو ق یی له هغه څخه لـــږ تر لږه کـه زیـــات نه وی نـوورسره برابر خودی ،او داد دهٔله پاره لوی ویاړ او لـــوی بری دی .اوږه خوو ایم چی حتی دده حقو ق

په سیاسی لحاظ ترهغه خو راپورته دی ځکه دولت دده دی .

نو زموږ دځوانانو وظیفی واقعا چی ډیـــری درندی دی حتی دوی چی اطرافو ته لاړ شـی نو باید دبز گرانو سره په تماس کی‌شـــی بز گران ډیر ښه خلك دی . ډیر ربښتو نی او صادق خلك دی . په زړه کی هیڅ ناوړه شی نه‌لری یوازی یو عیب چی لری هغـــه دادی چی نالو ستی او بیسو اده دی دبیسوادی دپاره یی هم موږ چاره کړی ده هغه دیډ بیسوادی په خلاف جهاد اعلان شوی دی ...زه یقین لرم چی یو دوه دری کاله ورو ستـــه به هغه بز گر هم لوستو نکی او با سواده وی .

هغه بهٔهم چی تهٔوایی‌دی به پرپوهیـــږی او س ښا یی پهٔدی ونه پو هیږی . مگـــر تا سو یی پوه کړی .

کروندی تهٔورشی‌ده پتی‌تهٔورشی‌ان‌څادرترځان لاندی‌کړی یاچپنه ترځای لاندی‌کړی. اویاهم یو ساعت بیل له ده څخه واخلی . ورتـــه ووایی چی راشه .زه به‌کو مك درسره وکړم دا هم ددی له پاره چی‌دی پوه کړو اوده ته ووایو چی ته ځوك یی، په کومه طبقه پـــوری اړه لری .او اوس دولت ځوك دی ، او دولت دچادی .داستا سو وظیفه ده اوله دی څخـــه هم زموږ ځوانان نه ډار یږی اونه شرمیږی. زموږ پیغلو چی خورا نازك لاسو نه یی وو، پخوا به تما مه ورځ شو نډ ی سری کو لی او په دوبی بهٔیی دستکښو نه‌په لاس وو اوس هغوی ددی ځای کوځی پا کوی اودا زمو ږد

خلکو ستر ویاړ دی او داو یاړ هم زمو ږ په بر خه دی چې زموږ خلقی څوا نان پټیو تـه ولاړ شی له خلکو سره هلته په حجرو کـې کښینی ، ماجت ته ورشی ، هلته ور سره خبری وکړی خوپه هغه لہجه چې دی پـری پو هیږی او دلغت پرانی پهڅای په با لکل ساده ژبه دی پوه کړی . دی واقعاً له تاسو سره ملگری وی چې پوه یی نهکړی بیا وایی چې یوسړ لوڅې راغلی و، داسې یې راته وویل : هغه قطعاً منلی نهشی او تاسو دده په جامه او دده په بڼهکی ورته ورشی او هغه څـــه چې دخلقی دولت ، خلقی گو نداو ستا ســو دخلقی ساز مانو هیله ده ،دوی ته ور سوی فابریکـو ته ورشی ، کـارخانو تـه ورشی هلته اهل کسبو و تهورشی ، له هغو سره په تما س کی اوسی هلته ماشینکار ، پښ، یا کوم اهل کسبه تهورشی هغه ته کښینی .هغه تنو یر کړی تا سوبه وایی چې داخو یوسړی دی او زموږ ملگری خوبه زر گونو دی نوچې هریویوه یوه ته ووایواو هغـه راویښوونو پـه زر گونو تنه دهغی ټو لنی دجوړ ولو له پاره را ویښو واو له څا نه سره یی ملگری کوو چې واقعا موږ او تاسو پو هیږو چې هغه کوډ ټو لنه ده هغه داده چې استثمار پکی نه وی.

دهغی دو دانو لو دپاره تا سو داکار کولی شی .نوزه وایم چې لهدی نه هیڅ مخ مه اړوی

فا بریکو ، بانکو و، پټیواو هر چیرته چــې خلك وی هلته ورشی او ورسره په ډیره ښه وضعه لکهدده زوی ، لکه دده کشر وروردا سی خبری وکړی. داسی نهچې مثلا، زه خو لـه کا بله راغلی یم زه خوتر تا پوهیم ، ورته وا یه زه هم دغو مره پو هیږم لکه ته خو زما نظر دغښی دی ، او داسی چې ورته ووایا ست او عمـلا چـی ورتـه وښیـاست هغه واقعاً بیداریږی او ستاسو ترخنگ دریږی .

دغه ده زما کلکه تو صیه چې تا ســـو ملگرو ته یی کوم چیله خلکو مه جلا کیږی، فقط ددوی ضرو ریات ،ددوی غوښتنی ،ددوی احتیاجات درك كړی چې دوی څه وایی ، څه غواړی څه کمی لری ، هغه گوند ته هغـه سا زمان ته ووایا ست دی له چانه شکا یت لری .

شکا یت یی پهخپلو لارو او په خپلو چارو باندی . سازمان ته ووایاست نوزه وایـــم چه موږ واقعاً بریالی یو چې دومـره زامـــن اوس لرو، پخوا به په گوندکی یو، دولس،شل اوسل وو او س په زر گونو دی . تاسو ته نـــور داهم وایم چې پهخپل منځ کی نه یوازیورونه بلکې ملگری واست ، ورورۍ دومره خوږه نه وی لکه ملگرتوب .

بله داد رته وایم چې تاسو یو خلقی رقابت په خپل منځ کی سره ولری .هغه رقا بـــت ډیر رفیقانه دی ډیر دملگر توب دی هغهدا چې مثلا ملگری می هغه دی لس کسه تنویر کړل له لسو کسو سره پهتما س کی دی، نو زه باید له شلو کسو سره پهتما س کی یم او هغه تنویر کړم .یا مثلا هغه یو من بار یا پیتی اوچتوی زه باید دوه منه او چت

کړم. داصالح رقابت داجایز دی نور په چوکی پرمقام او پرنـــورو شیانـــو باندی رقابـــت بالکل نامطلوب دی اوباید زموږ ځوانان یـــی له سره وباسی .

یوازی دغه خلقی رقا بتو نه ډیر ښه دی داله ویاړه ډک دی او داد افغانستان دخلکـــو په ګټه دی .

تا سوته داهم وایمه هر چیرته چی لاړشی هلته زما سلا مونه او زما احترامونه نو روتولو ځوا نانوته ور سوی .

زمادغه توصیی ممکن په راډیو او ورځپاڼو کی خپری شی خو تاسو په خپله خوله هغوی ته دا ورور سوی او ورته ووایی چی هغوی هم بایدپه دی پوه وی دوی بایدپه‌دی پوه شـــی چی دځو ان وظیفه په خلقی رژیم کی نسبت په پخوا نیو رژیمو نونه ډیره درنده ده.

اوس دادی ساز مانونه هم یو ډول سیاسی فعا لیت دی په‌دی وخت کی به سیا سی فعالیت ته زموږ دځوا نانو قطعا پام هم نه‌ؤ یوازی‌د مز وچړ چو په فکر کی‌به وه. پخوا به پـــه دی فکر کی وو چی مثلا پلارمی ځی مره لری، تره‌می څه شی لری اوپه همدی خبرو به یی دعوه وه اوس زموږ ځوا نان ټول په دی فکر کی دی چی څرنګه خپلو خلکو ته کـــار او خدمت وکړی .داهم دخلقی دولت او هـــم دخلقی ځوا نانو ستر امتیاز اوستر بری دی.

زه یوځل بیا داتا کید کوم چی ځوانان‌که څه هم ځوانان دی ډیری مطا لعی به‌نه لری خو دا خلقی ځوانان به په ځان کی دا احساس ډیر غښتلی کړی چی باید ښه مطا لعـــه وکړی . مطالعه چی نه‌وی اید یالوژ یکـــی فهم نه وی ، شعور نه وی . نو موږ بیا څــه نه شو کولای ما لومړی درته وویـــل چی په احسا سا تو باندی څه نه‌کیږی او یوازی په پوهه کیږی .که مو ډیر خلك وپه هو لموږ ډیر بریالی یو .

زموږ بر یالیتوب بیا هم په دی اندازه‌کیږی چی څومره پوه ځوانان لرو ، څو مره دګوند پوه غړی لرو اوپه دولت کی څو مره پـــوه کسان لرو .

زه وایم چی بیا هم تاسو ملګر و ته چی نوره مطا لعه وکړی اوپه ښه پراخ زړه یـــی وکړی .

بی حوصلی کیږی مه ،تاسو به امکـــان لری ووا یاست ، چی دا خو اوس نه شـــم زده کولی لس کاله وروسته چی لږ عمررا باندی تیر شوبیا به یی زده کړم ، دا سمه نه ده .

هغه بیا ووایا ست حتما تا سو پر هغـــه پو هیږی او تاسو ته هغه جواب در کوی. او تا سو په دی باندی ناامیده نه شی موږ هم داد وری تیری کړی دی . او دی دورو موږهم ښه پاخه کړی یو . تجر بی لرو چی په ځوانی کی هر څه کیږی او تاسو یی کولی شی.بیا هم نو رو ځوا نانو ته زما له خوا ووا یاست چی پر تیو ریکی اړخ باندی ډیر ټینګار وکړی خو له خلکو سره چی تماس نیسی داتیوریکی

شیان به ډیر نه وا یا ست هغوی ته به داعملی ګټی وا یا ست ،چی دولت او ګوند یـــــــی ورسوی او دا پردوی ښی لګیږی اوپه دی ښه پو هیږی ، په هغو نو رو خونو لازم نه دی چی ټول تیور یسنان شی یاټول په نیوری پوهشی . یوازی داچی دوی ستا سو دانقلاب ملا تړوی هغه زمو ږ مطلوب‌دی ، بیا هم زما سلا مونه احترا مونه ټو لوته ورسوی .

# دنوی کال په مناسبت راډیوتلویزیونی وینا

دافغانستان دخلکو دانقلابی او ګران مشردافغانستان دخلکو دد موکراتیک ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمدتره کی راډیو تلو یز یونی وینا دهیوادزیار کښو خلکو ته د ۱۳۵۸ هجری شمسی کال درا رسیدوله امله .

۱ر۱ر۱۳۵۸

بسم الله الرحمن الرحیم :-

تاسو ګرانووطنوالو اوټولو پښتنواو بلوڅو ورونو ته د ۱۳۵۸ کال په مناسبت د زړه له کومی مبارکی وایم .

لومړی ترهغه چی دنوی نیکمرغه کال دنوو فعالیتو او کارو په باره کی څه ووایم دتیر نیکمر غه کال په شاو خواکی باید ووایم چی ددی ستر تاریخی کال دثور اوومه نیټه دګران افغانستان په تاریخ کی خو را هسك له ویاړه اوبر مه ډك ځای لری او ددی کال دغه میاشت او دغه ورځ عملا دافغانستان دزیار ایستو نکو خلکو دسعادت او نیکمر غی سر چینه او ځلانده نیټه ده

وروسته دانقلاب له بر یالیتوبه لومړی مهم تاریخی ګامونه دادی چی :

دثور په لسمه دلته دانقلابی شورا په تاریخی پریکړه کی د (دافغا نستان دمو کرا تیك جمهوریت تاسیس شو ) .

دا نوم او دهغه محتواد افغانستان په ټول تاریخ کی سا ری نه لری او د افغانستان دمو کراتیك جمهوریت زمو ږ دټو لو زیار ایستو نکو طبقو دولت دی او په دوی ټولو پوری اړه لری .

په (۱۳۵۷) کال کی موږ داسی ستر اوپاخه ګامونه اوچت کړل چی هغه زموږ دټولنی په وده او پرمختګ کی ژوره اوپه زړه پوری اغیزه لری .

لو مړی تر هرڅه باید ووایم چی دثور دستر انقلاب په بریا لیتوب سره دافغا نستان دمو کراتیك جمهوریت دټو لی نړی له پلوه

په رسمیت وپیژندل شو او افغانستان هم خپل
دناپییلتوب او فعالی بی طرفی سیاست په بشپړه
توګه تعقیب او عملی کړیدی زموږ دغه روغه
خـبرښوونکـی او په زړه پـوری سیاست دها ـ
وانا او بلګراد دنا پییلو هیوادو دبا ند نیـو
چا رو دوزیرانو په کنفرا نسو کی ښـــه
ثابت او څر ګند شو .

موږ دافغانستان دموکراتیك جمهوریت دعدلی
چاری داسی تنظیم کړی چی دهغه په نتیجه
کی تر دیارلس زره کسه ډیر زندانیان خوشی
شول او دافغا نستان ټول زیار ایستو نکی خلك
دا ستثمارګـــرو طبقو دهغو ظـالمانه قـوانینو
له زو لنو څخه وژغورل شول چی دوی یی په
پیړیو ـ پیړیو زور ولی او کړولی وو .
په ۱۳۵۷ کال کی یوبل ستر ګام داووچی
دلږ ځمکو اوبی ځمکو بز ګرانو له اوږ وموده
سود اسلم او ګروی دروند پیټی لیری کړ
چی په نتیجه کی دغو پیا وړ وزیار ایستونکو
خلکو وروسته له ډیرو پیړیو دهو سا یـــی
نفس وکیښ او دظالما نو له متر وکی څخـــه
خلاص شول له دی درکه لږ تر لږه زمـــوږ
زیار ایستو نکو بز ګرانو ته دیر ش زره
ملیو نه افغانی ګټه ور سیده . دثور لـــه
انقلاب نه وروسته داپر فیو ډالی نظام با نـدی
لـومړی یو د روند او ګیچ کوونکی اقتصادی
ګو زارو .دغه خلقی اقدام زموږ پر ګو نـــد
او دولت باندی زموږ دبز ګرانو باور او چت
کړ او ددوی یی ودی ته ور پام کړ . چـــی
دولت ددوی په ګټه او ګوند ددوی په خدمت
کی دی .

باید ووایم چی ددی ګام په او چتو لوسره
پوولس ملیو نه بز ګران او ددوی واړه زاړه
دسوا یی خوړو . یعنی سود خوړو له ستـــم
څخه آرام شول او دخپل خلقی دولت دملا تړ
په توګه دهغه په څنګ کی ودر یدل .
په ۱۳۵۷ کال کی بل تاریخی ګام داؤ چی
دلومړی ځل دپاره مو په خپل ګران هیوادکی
داسی ملی سور بیرغ او چت کړ چی هغه په
کار ګرانو بز ګرانو او نورو ټولو ډول ډول
زیار ایستو نکو پوری اړه لری .
دغه له ویاړه ډك كار زموږ دملی وحــدت
او زموږ دزیار ایستو نکو طبقو دیو والی خورا
ستر سمبول شو . زه بشپړ یقین لرم چــــی
دا عالی ملی او خلقی سمبول به تر هغــــو
پړی سپیڅلی خاوره کی رپیږی چی ترڅو د
(هرچاته داحتیاج په اندازه ) شعار عملـــی
شی .

په ۱۳۵۷ کـال کـی دافغانستان دخلکــو
دموکـراتیك ګـونـد او د خلقـی د و لـت
بل بی ساری ګام داو وچی دلته ټو لو ملیتونه
دو روری او برابری حقوق ورکړل شول.
اوس په دی هیواد کی ټول ملیتو نه دخپلو
دموکراتیك حقوقو په درلودلو سره کولای
شی چی په خپله مورنی ژبه تعلیم وکړی.په
خپله مورنی ژبه اخبا رونه ولولی او پـــه
خپله مورنی ژبه راډیو واوری .
زموږ دولت وکړای شول چی په خورالنډه
موده کی دټولو ملیتو په ژبه اخبارونه خپاره
کړی . په راډیو تلو یزیون کی ددوی پـــه
مورنیو ژبو هراړ خیز پرو ګرا مو نه مینځته
را ولی . اوس دلته هر ملیت خپل هنر اوادبیات



دهیواد انقلابی لاربنود اوپیاوړی بنسوونکی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټې عمومی منشی نورمحمدتره کی کله چې دنوی کال په مناسبت خپله راډیوتلویزیونی وینا آورووی . ۱ر۱ر۱۳۵۸

---

او خپلو نورو کلتوری ځانگو ته څر نگــه چې دوی غواړی وده ور کولای شی. البته‌دوی په دغه برخه کې‌هم لکه په نورو بر خو کې ددولت له ملاتړ څخه بشپړه گټه اخلی‌اوبشـه په زړه پوری کو مکو نه ورسره کوی .

زموږ دبنځو حال او احوال خو هر چا ته معلوم ؤ زموږ پیغلی او کو نډې دمال غوندی خرڅیدلی اواخیستلی کیدلی .

دوی واك نه درلود چې‌په خپله خو بنـــه میړه وکړی .

دپیغلی او زلمی واده خو باید دوی او ددوی دکهو لو تر مینځ ددو ستی او خپلوی مــزی ټینگ کړی خود همدی خر ید او فروش‌په نتیجه کی به ددوی تر منځ دبنمنی او شخړی جو ړی شوی او ژوند به یې خورا تریـــــخ تیر یدی .

له نیکه مرغه‌په ۱۳۵۷ کال کې زمو ږ خلقی گوند او دولت وکړای شول چې وروسته دثور له انقلاب څخه دفیو ډالی نظام دغـــه سنتو نزه لیری کړی او خپلو پیغلو اوزلمیانو ته واك ورکړی چې په خپله خوښه بی له دې چې دپلورلو او پیریـدلـو مسألو پـــه مینځ کې وی ، و دونه سره وکړی او گو نډې هم په خپل واك هر چیر ته چې یې زړه وغوا ړی واده وکړی .

زموږ دغه اقدام او نور اقدامات ددې سبب شول چې اوس بنځې او نارینه د یـــوه جسم دووولاسونو په شان دهیواد په ودانـولو کـــی

لازمه برخه واخلی او خپله افغانی ټو لنه هغی خواته په پوره هه زره بوزی چی هلته‌له سړی ځخه دسړی استثمار نه وی .

هر پوه او لوستی سړی ته دایره یا لو جی له نظره څر گنده ده چی زموږ دثور ستر انقلاب یوحقیقی او ربښتینی انقلاب دی داځکه چی سیا سی او اقتصادی واك او اختیار له فیو ډالانو او ددوی له متحد ینو ځخه دزیار ایستو نکو خلکو ته په لاس ور غلی په بله ژبه ددی انقلاب په اثر ددولت په اثردولت واگی دکار گرانو گوند واخیستلی او نورو دوو طبقو لکه فیوډال او بورژواپه سیاسی ډگر کی ماتی وخوړه .

دافغانستان دخلکو دمو کرا تیك گوند اود هغه ددولت ستر او اسا سی هدف او ځلانده مقصد دادی چی په گران هیواد کی هر ډول هغه عمل ورك کړی چی دسړی ځخه دسړی استثمار په کی وی . ټول گامونه چی موتر اوسه پوری په اقتصادی او کلتوری برخه کی اخیستی دی دهمد غه مقصد دپاره وو.خو خو را لوی او اسا سی گام چی په ۱۳۵۷کال په دی برخه کی واخیستل شو هغه دځمکو ویش دی . ټولو گرانو وطنوالو ته څر گنده ده چی یوه فیو ډال به‌په خو را ډیره ځمکه‌غیږ را گر زولی وه چی دا زماده . بز گران او نور خواران به‌وږی تږی هردم شهید ور ته گر زیدل او تل به یی په نورو هیواد وکی دغم او نیستی شپی ورځی ترخی تیر ولی خو دفیو ډال ددی ارتی ځمکی لو یه بر خه به شاړه پاتی شوه خو خلقی دولت دانقلابی شورا دفر مان سره سم ددغو ځمکو په وړیا اخیستلو اوپه وړیا توگه دویشلو پریکړه وکړه او تقر یبا په دی دوه نیمو ,تیرو میا شتو کی یی تقر یبا (۹۰) زره کورنیو ته مفته ځمکه ورکړه .

ددی کار لړی په ډیره ښه توگه روانه ده زه یقین لرم چی په دغو دری .ځلو رو میا شتو کی به دځمکو ویش بیخی بشپړ شی اود فیوډالی نظام ملا به په افغانستان‌کی دړی وړی شی او داد پیړ یو پیړیو طبقاتی بی انصا فی او ستم به له مینځه لاړ شی .

اخوا نیان دافغانستان دزیار ایستو نکو مسلما نانو لومړی درجه دښمنان دی.

اخوانیان یا مسلمان نما فر نگیان تل دفرنگیانو او نورو امپر یالیستی قوتو په لمسه دافغانستان دنیکمر غی او هو سا یی‌په لار خنډوو او اوس هم کو ښښ کوی چی ددی هیواد بی ساری ستر خلقی انقلاب مخی ته ودر یږی خوپه ۱۳۵۷ کال کی ددوی‌ملا دافغا نستان دخلکو له خوا غوڅه ماته شو او اوس دلته به څر گنده توگه فعالیت نه شی کولای .

دوی لکه دپخوا غو ندی داسلام دمبین دین پرده پر خپلو ناولو او نجسو مخو نو راغوړولی ده . دوی تل دخپلو بادارانو او دخپلو منحوسو گټو دپاره هلی ځلی کړی اوپه دی توگه غواړی چی زموږ دښکلی هیواد دودی او تر قی ښکلی پو ستین دیو شپږ ی دپاره په اور کی واچوی یعنی تر خپلو شخصی گټو او دخپلو با دارانو له گټو یی جار کړی .

دوی ددی جرئت او میړانه نه‌لري چې له‌موږ سره په څرګنده توګه مخامخ خبري وکړي نولاړ شي په لندن او پاريس کې د خپلو با - دارا نو په غيږ کې نا ست ددوی دراډ يوګانو په ذريعه پرموږ ددراغو تهمتونو يارانو ته او روی .

په ۱۳۵۷ کال کې دافغانستان خلکو ددغه ډول په‌لندن پاريس کې دجوړ شوو شيخا نو روحانيونو او اخوانيانو په ضد جهاد اعلان وکړ او زموږ ټو لو زيار ايستو نکو مسلما نا نو دهغو په‌مقابل کې خپله کر که څر ګنده کړه

زموږ ګرانو زيار ايستو نکو مسلما نا نو دوی ته‌په عمل کې وښو ول چې هغه وختلاړ چې دلته به‌يې ورور په ورور واژه . اوس‌ددوی با داران يعنې پر نګيان او نور نه شي کولای چې دخپلو دغو مسلما ن نما فر نګيا نو په ذريعه زموږآزادي اواجتماعي وده شاته وغور - ځوي .

بیسوادي او نا خواني زموږ بل لوی دښمن دی چې زموږ دټولنې په زړه پوري ودی ته‌يې ستر زيان رسو لی دی که زموږ خلك په ليك لو ست پو هيدای . نوبر سيره پردې‌چې د ځان او نورو دپاره به‌يې ښه خد متو نه کړی وای او دا هيواد به يې سمسورکړی وای دمسلمان نما پرنګيانو يعنې اخوانيانو به هيڅکله ښکار شوی نه‌وای .

ددغې نقيصې دليري کولو دپاره خلقي ګوندو اودولت وړ اقدامات وکړل اوموږدبيسوا- دی په مقابل کې هم جهاد اعلان کړ . ددی جهاد نتيجه هم خورا په زړه پوري ده اوزرګونو کور سونو کې په لکو نو بې سواده خلك‌ليك لوست زده کوی .

داد يا دو لووړ خبره ده‌چې پدی لړ کې زموږ دانقلاب دښمنان داسې پرو پا ګند کوی چې ګواکې موږ په کليو کې واده شوی ښځې او يا پيغلې دما سل په‌زور دبيسوادي کور- سوته بيا يو او خپل دی پرو پاګند ته ډول ډول شا خ او پنجې ورکوی چې موږ دا ټول نا وړه تهمتو نه ردوو او وايو چې خلقي‌دولت به دخپلوخلکوپه مرسته دبيسوادي دورك کولو دپاره هر ډول ممكن وسايل را غو نډ کړی‌او خپل ټول هيواد وال دی ته تشو يقوی چې ليك او لوست زده کړی خوپه کليو کې به هيڅ وخت ښځې په زورو جبر کورسوته نه بيا يی .

په همدی کال کې موږ خپل وسله وال پوځ بشپړ خلقي کړ يعنې اوس زموږ پو ځ زموږ دحزب دغړو او نو رو وطن پا لو نکو لخوا تنظيم شو .اوس زموږ واسله وال پو ځ‌لكه دحزب نور غړی دکار ګرانو بزګرانو او نورو زيار ايستو نکو دګټو سا تند وی دی دوی ټول په دی سر لوړی دی چې دافغا نستان‌په تاريخ کې دلومړی ځل دپاره وسله‌وال زړور او قهر مان پوځ يوازی او يوازی دافغا نستان دزيار ايستو نکو مادی اومعنوی ګټې سا تې او ددی مقصد دلاس ته راوړلو دپاره يې شپه اوورځ بې له کوم امتياز اخيستلو بر ځان يوه کړ يده . په دغه کال کې دولت دخپل‌خلقي

وسله وال پوځ دوضعی په بنه کولو او ددوی دمحا ربوی قدرت په لوړ ولو کی دستا ینی وړ کارونه کړیدی موږ بشپړ باور لرو چی زموږ زیار ایستو نکی خلك او ددوی لــه ویاړه ډك وسله وال پوځ اوس هر ډول تیری کو ونکو ته خوله ماتوو نکی ګو زار ور کولای شی .

په تیره کال کی موږ دخپل نا پییلتوب اوپه روغه سره دګډ ژوند په اساس دهیڅا پــه کو رنیو چا روکی مداخله نده کړی خوځینی هیواد ونه هڅه کوی چی زموږ په کور نیــو چا روکی لاس ووهی او زموږ دپاره ستو نزی منځ ته راولی .له هغی جملی څخه دایران متعصب او تنګ نظره مذهبی لار ښوو نکوله یوی خواز موږ په خلکو کی مذهبی اختلاف ته لمن ووهله اوله بلی خوایی په چل سره زموږ دهرا تی ورو ڼو په چا موکی خپل عسکــر افغانستان ته داخل کړل چی ددوی دغــه نا روا او ناوړه عمل زموږ دحکو مت پــه اعلا میه کی پهښه تو ګه څر ګند شویدی موږ ددغو متعصبینو دی عمل تهپه کر کــه ګو رو او خپلو ټو لو زیار ایستو نکــو مسلما نانو تهپه ټینګه وایو چی ددغسی خارجی تیری کوو نکو په مقابل کی‌تل یو موټی اوسی او له خپلی پاکی خا وری څخه پهخپل ســر او مال کلکه دفاع وکړی .

موږ له پاکستان سره هم دخپلوی او دوستی لاره را اخیستی ده. خو هلته هم دامپریالیزم په لمسه دځینو خارجی ارتجاعی هیواد و او داخلی ناوړ وعنا صرو په فشار سعی کیږیچی زموږ په کورنیو چارو کی لاس ووهی سرهله دی چی په دی باره کی موږ ډیر اسناد لرو خوبیا هم دپاکستان له حکو مت څخه غواړو چی له موږ سره خپل سیا ست پــه ربښتیا ددوستی پر لارو شړی او زمینه دیته چمتو کړی چی دد واړو هیواد وتر مینځ دبلوڅو او پښتنو دملی حقو قو مسا له په رو غــه او دوستی حل شی .

په نوی کال کی زموږ پنځه کلن په دعمل ډګرته را ووزی . دپلان به زموږ دهغی تولنی بنسټ کیږدی چه هلته دیوه سړی زیــار دبل سړی له پلوه نه تښتــول کیږی په نوی کال زموږ خلقی دولت دخلکو دهو سا یــی دپاره ښه په زړه پوری پرو ګرا مونه لریچی د هر یوه په باره کی بهپه منا سبت وخــت کی اقدامات وشی . اودلته دهغو په باره کــی او ږدی خبری بل وخت ته پر یږدم .

پهدر ناوی

# د خلکو ګران لارښود ته د نوی حکومت غړي ورو پیژندل شول

دافغانستان دد‌موکـــراتیك جمهوریت دنوی‌حکومت غړی دحمل په ۱۱ نیټه له غرمی نـه وروسته په دوه نیمو بجو دخلکو دستر مشردافغانستان دخلکودد‌موکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی د افغانستان دد‌موکراتیك‌جمهوریت دانقلابی شـورا درئیس نورمحمـد تره‌کی حضورته دخلکو دکور دګلخانی په‌ماڼی‌کی دلومړی وزیر حفیظ الله امین لـه خـوا وروپیژندل شول .

دخلکـو ستر مشر دانقلابی شورا رئیس اودوطن ددفاع دعالی شورا رئیس نورمحمدتره‌کی دنوی حکومت دغړیو دمقرری فرمانونه هغوی‌ته وروسپارل اودخلکو دډیرو فعالوخدمتګارانو په توګه یی هغوی ته دمقرری له امله مبارکی‌وویله .  ۱۱ر۱ر۱۳۵۸

ګرانو ملګرو !

څرنګه چی لومړی وزیر حفیظ‌الله امیـن وویل واقعا داخبری چی دلته دی دانا آشنانه دی ، موږ له ډیره وخته سره پیژنوله ډیره‌وخته موږ سره یوځای په حزب کی مبارزه‌او تـر انقلاب پوری مو مبارزه کـړی او وروسته لـه انقلابه هم موږ او تا سو کار سره کړ یدی اوله نژدی سره پیژنو .

داسی ملګری حفیظ الله امین ماته معر فی کړیدی چی هغه واقعاسابقه لری او په کارو کی ښه پاخه دی. اودوی‌کولی شی چی خپل وظا یف په ښه توګه اجرا کړی او ما چـی ملګری حفیظ الله امین دلو مړی وزیر پـه حیث وټاکه واقعاده زموږ بشپړ باور له څان سره درلود او داباور هم واقعی‌خبره داده‌چی په وړیا توګه چا په لاس نه دی راوړی .

دا باور ګټل هم ډیر عوامل ، ډیری‌ستونزی غواړی او ډیر فعالیت غواړی مثلا ډول ، ډول صفتو نه غواړی چی هغه با ید یو ځای شی نو سړی واقعا باور پری کولی شی . په‌شرط ددی‌چی معلم هم بیطر فه وی .

دمعلم بیطر فی کلمه می ځکه استعمال‌کړه چی دده په حق کی هر چا داسی بیطر فـه قضاوت نه وکـړی کنه او داچی موږ باور ور- باندی کړیدی واقعا چی موږ ډیر بیطر فا نه قضاوت‌کړیدی مثلاپه لومړی درجه دباورد‌ګټلو دپاره ګو نداو خلکو ته بشپړه وفاداری‌شرط ده

خو سر بیره په دی مثلا باید یو هه ولری



لومړی وزیر اودبهرنیو چارو وزیر حفیظ الله امین دنوی حکومت دغړودمعرفی کولوپه حال کی.
۱۱ر۱ر۱۳۵۸

---

او بیافعال اوزړوروی ۰ اودغسی صفات چی په یو ه‌چاکی وی هغه واقعا بیا لس نمری وړی کنه .

البته زما دانور ملگری هم ډیر فعال دی، پوه دی اووفادار دی که داسی نه وی نولومړی وزیر به ماته نه معرفی کول مخکی له دی چی معرفی یی کړی له ماسره یی مشوره کړیده او زه ور باندی پوره باور لرم اوپوهیږم چی دانور ملگری به هم دافغا نستان دخلکـــو لپاره هغه خد متونه وکړی چی زیار ایستونکی خلك یی له دوی څخه انتظار لری .

ربښتیا درته وایم چی داټیم کولی‌شی اوس زماپه‌عقیده، عقیده می هم ده اوبشپړ یقیـــن می هم دی چی‌دا ملگری کولی شی چـــی دا بار چی دزیار ایستو نکو خلکو له خوازموږ او ستا سو ددولت په اوږو ایښودل شو یـــدی دابه په ډیره ښه توگـــه په میړانـــه ، جرأت پو هه ، زړه ورتیا او وفاداری تر خپل منـــزل پوری ور سوی .

په تیره بیا دانوی ټیم ددی افتخار لری چی تردا اوسه پوری چی کومو وزیر انو له موږ او تا سو سره دلته یو ځای کار کاوه واقعا هغو هم پدی یوو لس میا شتو کی هغه کارونه کړ یدی چی ددی نوی ټیم دراتلو دپاره یـــی لاره او اره کړیده ولی چی هغوی هم په خپل وار سره دقدر وړ کارو نه‌کړیدی مگرداوس

په نوی روحیه، په نوی طرز ، دنـویــــو قوانینو تر رڼا لاندی چی کوم ملګری کارو نه کوی، هغه واقعا داسی کارونه دی چی دنوی ټولنی دبنسټ ایښودلو د پاره په ډیره مؤثر ثابت شی .

دنوی ټولنی څخه زمامقصد هغه ټو لنه ده چی په هغی کی له سړی څخه دسړی استثمار نـه وی او یا ددی ټو لنی دلو مړنیو مرحلو بنسټ موږ او تاسی کښیږدو اووده ورکړو وچـــی دانوی ټیم منځ ته راغی .

داهم ډیر ستر کاردی البته ددغی نوی ټو لنی دجوړولو کار شاید یو نسل ونه کړی شـــی اما په اوس وخت کی جهان کی داسی شرایط راغلی چی زماپه عقیده چی دایو نسل یی هم کولی شی. ځکه چی موږولیدل چی همدغه نسل ؤ، هماغـه تـاسو ځـوانان واست چی په ګډه موسره شروع وکړه اودغه دی څوپړ ـ او ونه مو ووهل نورو خلکو داعقیده درلوده چی داپړاوونه پیړی‌پیړی غواړی یا مثلا څوځو لسیزی غواړی یعنی ۳۰ کاله، ۴۰ کـاله ، پنځوس کاله خو موږ ولیدل چی دا موبیخـــی زرطی کړه او ډیر زر هغه ځای ته ورسید وچی کولی شو دنوی ټولنی دجوړولو دپاره پـــه ډیره زړورتیا ، ډیر جرات او امید سره بـل ګــام واخلــو . کلـه چـی مو داپنځه کلن پلان عملی کړنو په واقعی تو ګه ددغی ټولنی بنسټ ږدو ، او داپه خپله دا پلان ږدی کلـه چی دنوی ټولنی دجوړولو اسا سات هغـــــه اقتصادی تحول دی چی باید راشی .زه یقیـن لرم چی اقتصادی تحول ددی پنځه کلن پـلان دتطبیق په نتیجه کی تر ډیره حده راتلو نکی دی .

او په دوهم پنځه کلن پلان کی خو بیخـــی هغه جا معه زه په ستر ګو وینم چی هغـــه زموږ او ستاسی دټولو ارمان دی او دا ارمان واقعا ډیر ستر دی .

زموږ او ستاسو دښمنان پریـږدی دی چـی هر څه ووایی او هر څه تو رونه او تهمتو نه راپوری وتړی، خودوی هیڅکله هم هیواد ته دخیا نت تور په موږ نشی لګولی او هیــــځ داسی څه نشی موندلی چی ګوته پری کیږدی او یا وویلی شی چی دغه ځای دی او یــــاد کار دی بدو کړ دوی یوازی یو هوایی شـــی وایی چی هغه واقعا پخوا پر نګیا نو هم پــه موږ پوری ویل دانور هم دافغانستان په مترقی کسا نو پوری ویل او اوس دوی هم هغـــه وسله زموږ پر ضد استعمالوی ،چی داو سله واقعا پخه ده دوی پوشی وایی چی داکافـران دی ، مو ږ وایو خو شکر موږ په افغا نستان کی دزیار ایستو نکو مسلمانانو خدمت کـــوو موږ دهغو اولادیو ، موږ اسـلام او اسلامیـت ته په ټوله معنی په درنه ستر ګه ګورو اوددی اساسات او منا سك په افغا نستان کی پـــه ټوله معنی اوس جاری دی او که دا څــــوك نه منی هر څوك چی پر موږ پوری تهمت وایی موږ هغه ته بلنه ور کوو چی راشی هر څـه په خپلوسترګو ووینی بیطرفه مذهبی تعصب هیڅ پرو انلری که څوك یی‌لری ودی لـــری خو له مذهبی تعصب سره سیا سی تعصب یو ځای باید یدوی .

موږ په جهان کی ټولو مذهبی خلکواوټولی اسلامی نړی ته بلنه ور کو وچی را دی‌شی

ودی گوری چی آیا دلته داسلام منا سک جاری دی که نه ، دلته داسلام په ضد څوك عمل کوی که یی نه کوی، لکه تاسو ملگروته چی معلو مه ده دا ټول په قطعی ډول دروغ دی خوزه یو ځل بیا دا اعلان کوم.

زموږ او ستا سو دولت په خپل خط مشی کی، لکه لومړی وزیر چی وویل هغه لاره تعقیبوی چی په هغی کی موږ داسلام مبین دین ته بشپړ احترام لرو ، په درنه سترگه ورته گو رو او دهغه حما یه کو ونو بیا دوی هیڅ دا حق نلری چی پر موږ باندی لهدی لاری دروغ ووایی .

ددوی مقصد یو شی دی او هغه دا چی دلته ولی امپریالیستی قوتونه کمزوری شول او ولی خلکو ته قدرت پهلاس ورغی ددوی اصلی مقصد دادی مگر بهانه یی داده چی تاسودانه کوی ، تاسو اسلام ته په سپکه گوری، یا اسلام هلته نشته ، یامسلمانان وژنی، حتی دو نه جرات کوی چی وایی څوك چی کلمه وایی وژنی، او موږ خو داټول کلمه گویان دا ټول خلك وینی چی دلته په آزادی سره اسلامی منا سك پر ځای کیږی .

بنه دامی ددی خاطره وویل چی موږ او تاسو چی دانوی ټولنه جوړوو دنورو له دی تبلیغاتو او پر وپا گندو څخه قطعاء نه باك لرو او نه ودی ته کوم اهمیت ور کوو .

دایران متعصبینو چی زموږ په کورنیو چارو کی مداخلهوکړهنو هغسی غابږ ماتوونکی ځواب یی ولید چی گو مان نه کوم ، چی بیادی دډی داجرأت وکړی .

دپاکستان ارتجاعی خلقی ځینی امپریالیستی قو تونه او بین المللی ارتجاع چی غواړی دپا کستان هیواد دخپلو تعر ضو دپاره یو دټوپ تخته کړی نوزماهیله داده چی پاکستان دا د ټوپ تخته نشی او زموږ دښمن ته واك او اجازه ورنه کړی چی زموږ پر ضد فعالیت وکړی .

اما موږ بیا هم سره له دی چی تراوسه پوری څوڅو ځلی دوی مداخلی کړ یدی حتی هغه ورځ میله لومړی وزیر سره وشمیر ل دوی پدی شپږ ومیاشتو کی یو شپیته ځلی زموږ په خاوره کی په یو ډول یا بل ډول مداخلی کړیدی، مگر دافغانستان دسپیڅلو زیار ایستونکو خلکو ، دخپل وسله وال پوځ په رهبری او فدا کاری باندی دا حملی بالکل شنډی کړی اوکه دبل ځل دپاره جرأت وکړی بیا به هم په بشپړ ډول شنډی کړی شی .

تا سو دافغا نستان تر ټولو نیکمر غه او خو شبخته کا بینه یاست او دایو واقعیت دی ، ولی چی دزیار ایستونکو خلکو دپاره مو دادی ستر مسئولیتونه پر غاړه اخیستیدی.

زه یقین لرم چی تا سو به دغه مسوولیتونه په ډیره میړانه جرأت او زړورتیا پرځای کړی اوپدی کی هیڅ شك نلرم .

زماوهیله لهتاسوملگرووزیرانوڅخه داده چی دملگری لومړی وزیر اعتماد او باور هما غسی له ځان سره وساتی .

البته زه یقین لرمچی وبه ئی سا تی اولکه څنگه چی زما پرده او تاسو باندی باوردیدی ته به دوام ورکړی .تشکر .

## رهبر کبیر و توانای خلق نور محمد تره‌کی رئیس شورای انقلابی، معاون و اعضای شورای عالی دفاع وطن را تعیین نمودند

ریاست دفتر شورای انقلابی جمهوری دموکراتیک افغانستان خبر داد که نورمحمد ـ تره‌کی منشی عمومی کمیته مرکزی حـزب دموکراتیک خلق افغانستان ، رئیس شورای انقلابی جمهوری دموکراتیک افغانستان ورئیس شورای عالی دفاع وطن بحیث سر قوماندان اعلی قوای مسلح خلـق افغانستان باساس مواد چارم وسوم قانون شورای عالی دفاع وطن درجمهوری دموکراتیک افغانستان، معاون رئیس

دافغانستان د خلکو دستر لارښود دانقلابی شورا رئیس اودوطن ددفاع دعالی شورا درئیس نورمحمد تره‌کی په مشری دوطن ددفاع شورادمرستیال اوغړوپه گلهون دوطن ددفاع دعالی شورا لومړنی غونډه .

۱۳ر۱ر۱۳۵۸



واعضای شــورای عــالی دفــاع وطــن را چنین تعیین نموده اند :

حفیظ الله امین لومړی وزیرووزیرامور خارجه بحیث معاون‌رئیس شورای عالی دفاع وطن .

جګړن اسلم وطنجاروزیر دفاع بحیث عضو **شورایعالی دفاع وطن .**

شیرجان **مزدور یار وزیر داخله بحیث عضو شوریعالی دفاع وطن .**

اسدالله رئیس اګسا بحیث عضو شورایعالی **دفاع وطن .**

اقبال **رئیس عمومی امور** سیاسی قــوای **مسلح خلـق افغانستان بحیث‌عضو شورایعالی دفاع وطن .**

جګړن یعقوب لــوی درستیــز بحیث عضــو **شورایعالی دفاع وطن .**

**دګروال غلام سخی قوماندان مدافع هوایی بحیث عضو شورایعالی دفاع وطن ودګرمــن** نظرمحمدقوماندان هوایی بحیث عضو شورایعالی دفاع وطن .

دافغانستان دخلکوستر‌لارښود دانقلابی شورارئیس اودوطن ددفــاع د عالی شــورا رئیس نورمحمد تره‌کی ددغی شورا مرستیال اوغړو‌ته‌ددوی دټاکلودفرمانونو دسپارلوله وروسته .



# زموږ انقلاب هغه ځپانده سیلاو دی چې پرشکو

# نه بند یږی او هیڅوک یې مخه نه شی نیولای

داافغانستان دخلکو ستر او ګران مشر دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی نورمحمد تره کی د حمل په ۱۸ نیټه په دریو بجو داوبو او بریښنا دوزارت داو بو لګو لو دسکتوردبیلو بیلو پروژو دآمرانو او رئیسانو دسیمینار ګډون کوونکی اودهغه وزارت دمرکزی ادارو رئیسان او فنی کدرونه په داسی حال کې چې داوبو اوبریښنا وزیرپوهنوال منصور هاشمی هم حاضر وو دخلکو په کور کی حضور ته ومنل اوله هغوی سره یې په ډیره صمیمی فضا کی خبری وکړی .

۱۳۵۸/۱/۱۸

هره طبقه که دفیوډال دی او که دپانګوال او که دکار ګر خپل منو رین او داسی کسان لری چې دخپلی طبقی دپاره لاره روښانه کوی خو تا سی چې دکار ګری طبقی منورین یا ست ستر ویاړ مو په برخه دی .

کار ګری طبقی دخپلو انجنیر انو او طراحانو دنقشی له مخی نوی جوړه کړی اولا جوړوی یې، تاسو انجنیران او طراحان دهیواد زیار ایستونکو ته نقشی تیا روی او هغوی ته لازمی لارښودنی کوی چې خپل هیواد ودان کړی.

دلوی لهستر انقلاب نه وروسته زمو ږ په هیواد کی دانجنیر قدر بیخی زیات شویدی.

دافغا نستان خلک له خپلو انجنیرانو اوکار ګرانو څخه هیله لری چې دهیواد په ساختما نی پروژو کی داسی ګټور او موثر کارونه وکړی چې ثمره یې ټولو هیوادوالوته رسیږی او موږ باور لرو چې زموږ انجنیران او طراحان دابری تر لاسه کولای شی څکه چې اوس دغه بری ته درسیدلو لاره بیخی آواره شو یده پنځه کلن پلان جوړ شوی او ترتطبیق لاندی دی خودپنځه کلن پلان اصلی محرکه قوه تاسو

یا ست او پر مخبیول یی ستا سوپه غاړه دی .

دثور دپر تمین انقلاب چی دخلکوددموکراتیك گو ند په لاربښو ونه دوسله وال پوځ له خوا په بریالیتوب سر ته ورسید ، یواساسی انقلاب دی‌چی دفیو ډالانو او اریستو کراتا نو له لاسه یی سیاسی قدرت واخیست او هغه یی دهیواد زیار کښو خلکو او دهغو په نمایندگی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گو ند (دهیواد دکار گری طبقی مخکښ‌گوند) ته ورکړ او اوس ددغه ستر انقلاب ساتنه هم دهیواد دټولو زیار ایستو نکو اودخلقی وسله وال پوځ په‌غاره ده خوپه هیواد کی داقتصادی تعمیر اود اقتصادی انقلاب بریالی کول ستا سو لومړی‌وظیفه ده، زموږ دهیواد کارگره طبقه دبز گرانو په ملاتړ ددغه تعمیری او اقتصادی انقلاب په عملی کولو کی داسی بی ساری گامو نه واخلی لکه څرنگه چی‌دکیفیت اوکمیت له‌مخی په‌آسیااوحتی ټولونړی‌کی زموږ انقلاب بی ساری ؤ .

زموږ دغه اقتصادی انقلاب دپنځه کلن پلان په‌اسا س پر مخ ځی او دهغه ټول کارونه‌د کارگری طبقی پر اوږو پراته دی .

اوس زموږ کارگره طبقه دغه کارونه په شعور ی او آگا هانه توگه پر مخ بیا یی له کارگری طبقی څخه زما مقصد دلته تا سوهم یا ست څکه چی تاسو دهغوی منورین یاست، تا سو اوس پو هیږی چی ستا سو دکارگری طبقی دلاس ثمر اوس بل څوك نه تښتوی ، ستا سو هرزحمت ستا سو دخپل ځان دپاره دی ،په دغه شعو راو احسا س سره به موږ واقعا اقتصادی انقلاب عملی کړای شو، او هغه ټولنه به جوړه کړو چی په هغی کی دسړی له‌خوا دسړی استثمارنه وی اوموږ چی او س دغسی ټولنه ودانو ونو د اوپاړستاسو په برخه دی چی دا نجنیرانو په حیث ددغی ټو لنی معما ران یاست .

تا سو په خپلو دغو هلو ځلو کی یوازی نه یا ست بلکی نور زیار ایستو نکی ټول له تا سو سره ملگری او ستا سو ملاتړدی، البته تا سودیوه لوکو مو تیف په‌تو گه یا ست چی دا نور ټول واگو نونه په ځان پسی را کاږی زما مقصد دادی چی زموږ دټولنی دپاره چی څومره اغیږ ناکی هلی ځلی تا سو کولای شی بل څوك یی همغو مره نشی کولای .

دثور له ستر انقلاب نه دمخه به‌چی موږ دکار گری طبقی یادو نه کوله نو ځینو به پو ښتنه کوله چی دلته کارگراو کارگره طبقه چیری ده ، دلته خو هغوی بیخی کم دی ، مابه ورته ویل چی دافغا نستان ټول بز گران بالقوه کار گران دی ، دوی په انقلاب کی ستره برخه اخیستی شی ،بلکی دنړی ټول کار گران زموږ تر شا ولا ړدی او ښه او بده یی‌له موږ سره شر یکه ده رښتیاه هم زموږ په انقلاب نن دټو لی نړی کار گران ویاړی او پدی ستره ښادی کی ځانونه را سره شریك بولی .

نو که په افغا نستان کی دکار گری‌طبقی شمیر دو مره زیات نه‌وی په نړی کی ستر

قدرت لری ،چی‌زموږ هراړخیز ملاتړ کوی‌موږ چی له انقلاب څخه دمخه مظاهری کو لــــی نولومړی مود اشعار را وایسته چی :(دنړی کار گرانو سره یو شی )زموږ طبقا تــــی دښمنان په دی نه پو هید ل خود اشعاردنړی دټولو کار گرانو شعارو چی په هغو کــــــی موږ له دوی سره ځان یو ځای گڼو .

(دا ښکاره خبره ده‌چی هیڅا او هیڅ‌بهرنی منبع ددغه انقلاب په برخه کی هیڅ ډول لاس نه در لود دثور انقلاب یو داسی لمر ووچــــی ځینو دهغه دراختلو انتظارنه در لود .

زه بیا هم تا سوته واړو در کوم هغه څه چی‌وایو هغه کوو او دهغه څه دپاره چی پلان جوړوو هغه عملی کوو .

زموږ انقلاب په ډیره آرامی اوپه هسکه‌غاړه روان دی .) لکه چی متل دی .

(کــــاروان تیریږی ، سپی ورته غپیــږی) زموږ دانقلاب دښمنان دانقلاب کار وان تـــه غپیږی خود هغه په لاره کی خنډ کیدای‌نشی، دانقلاب په دی نژدی یوه کال کی ز موږ دښمنان زموږ هیڅ کارته گوته نشی نیولای یــــوازی همــــدا تــــور پـــه موږ لگو ی چی کافر دی، ددغه کفر او مسلما نی لـــــه پاره ددوی معیار څه شی دی دمسلما نـــــی معیار خود ادی چی خلکو ته خد مت وشی، په دغه معیار موږ له بل هر چا نه زیات دخلکو خدمتگاران یو، دلته داسلام دمبیـــن دین ټول مناسك ټینگ دی ، جومـــاتــونه ودان دی ، آذانو نه کیږی ، ملایان په مذهبی چا رو بو خت دی ، خو موږ نه غواړو چی په افغا نستان کی څوك مذهب دسیا ست دپاره استخدام کړی او ناوړه استفاده تری وکړی، او دسیا ست دلاس آله یی ونه گرځوی له دی ټو لو سره دانقلاب دښمنان زموږ دانقلاب کار وان ته غاپی ، البته دادوی پخپله ندی بلکی امپر یالیستان یی غپو ی، چی گټی یی دلته دتل دپاره له لاسه وتلی دی نو خپل گوډاگیان په شا راته ټپوی او زموږدانقلاب پر ضد یی لمسوی .

زه دافغانستان خلکو ته داړ ورکوم چـــی زموږ دخاوری په هیڅ برخه باندی بل څوك قا بض ندی ، دایو څوتنه اخوان الشیا طین چی زموږ ددین او دولت دښمنان او حتــــی زموږ دټولنی دهرڅه دښمنان دی ، نو ددی دپاره چی ددوی په دال او چپا تی څه ورزیات شی دشپی دغلو غوندی کله په‌کوم کلـــــی باندی حمله وکړی او څو کو چنیان او ښځی ووژنی خو چی خلقی ځوانان او خلقی وسله وال میرنی پری خبر شی دوی ته هم ښه درس ور کړی .

او خو له یی له خاورو ډکه کړی ، زموږ دخاوری دغه دښمنان دهیواد دبی دفاع خلکـــو په مقابل کی داسی وحشیانه کارونه کوی، چی فا شیستا نو به لانه وی‌کړی سره هــــم له دی موږ ورسره بیخی شر یفا نه وضـــع کووا و تر څو چی موددوی لاسو نه دبـــــی دفا عو کو چنیانو په وینو سره نه وی لیدلی موږ ورته څه‌نه وایو البته له دی‌ټولو څخــــه ددوی مقصد زموږ نا رامی ده داهم ددوی‌نه، بلکی دامپریالیستانو مقصد دی چــــی دوی

# دگوندیو والی بایددستر گو دکسو په شان وساتل شی

داافغانستان دخلکو ستر مشر دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی او دانقلابی شورا رئیس نورمحمد تره کی دحمل په ۲۸ نیټه دسهار په نهو بجو اوپنځه څلویښتو دقیقو دپکتیاولایت یو شمیر گوندی کدرونو د خلکو دکور ددلکشا په مانۍ کی حضور ته ومنل اوهغوی یی له صمیمت اومینی څخه په یوه ډکه فضا کی له خپلو عالمانه لارښوونو څخه مستفید کړل .

۱۳۵۸/۱/۲۸

پر ما گرانو ملگرو ښه راغلاست .

خو شحاله یم چی له تاسو سره له نږدی څخه گورم او دگوندی اونور وعمومی فعالیتونو په برخه کی خبری اوخواله سره کوو .

گوندی فعالیتونه البته ستر اهمیت لری دکارگر واو نور وزیار ایستو نکو له پاره یی له گوند ه دخلاصون بله هیڅ لاره نشته اوله یوه غښتلی گونده پرته له خپلو ښمنو څخه داستثمار زولنی نه شی ما تولی اوبی له دی چی یو پیاوړی باتدبیره او باجرا ته گوند ولری داستثمار گرانو منگو لی له خپله گریوانه نه شی لری کولای

وایی چی داوریو کوچنی بڅر کی لوی اور بلولی شی نویو معقو ل اوبا تدبیره حرکت ستر تحولات اولوی انقلابونه راولی .

زمو ږ په هیوادکی همدا شان وشول اوس زموږ گوند په رښتیاسره دافغانستان د خلکو یو پیاوړی او غښتلی گوندی دا. داسی گوند دی چی په رښتیا سره یی په افغانستان کی هغه اور ولگاوه چی دفیو ډالانو اونورو استثمار گرانو دظلم اواستثمار مانۍ یی وسو ځولی.

زما هغه وخت نه هیر یږی چی هر کورته به ورتلو کوم یو ځوان به مو پیدا کاوه مترقی مفکوره به موور کوله آشنایی اوملگرتیا به موور سره ساتله او بالاخره به مود

گوند دجو پولو په‌ضرورت خبری ور سره‌کولی بیاپه (٤٢) کال کی‌گوندی فعالیت په نسبتـا پراخه اندازه شروع شو اوحوزی جوړی شوی په ٤٣ کـال کی بیخـی رښا شوه او لمـر راوخوت په‌دی معنی چی تاسو ته خر گنده ده چی کارگره طبقه اونوری زیار ایستو نکی طبقی ټول دگوند غړی نه‌وی . دگوند غړی دکار گرو او نورو زیار ایستو نکو طبقـو دسر دګډلونو په توګه سره راټول او گوند ور نه جوړیږی .

موږ هم دغسی وکړل په افغانستان کـــی خورا غوره خوراغښتلی چی اید یالوژی یـی ښه‌هضم کړی واویایی دهضمولو په حال‌کی وو سره راټول شول اوگو ند یی جوړ کړ.

یعنی دغه له خورا ډیر وښو عنا صرو څخه جوړدی . داهغه عنا صر دی چی په سرښندلو کی تر ټولو مخکی دی .

موږ چی دوی ته‌کریدت ورکوو اویانور خلك پردوی ویسا لری هغه له دی املـــه ده چی دوی په قربانی ور کولو کی تـــر نورو ټولو مخکی دی اوخپلی گټی دپرگنـو په گټو کی لټوی اوخپلی ځانګړی‌گټی هیڅ نه غواړی له همدی امله دوی ته‌موږ غـــوره عنا صر وایو نه‌له دی امله چی خلقی دی‌نوتر نو رو ټولو غوره دی .

زموږ فعالیت زموږ په‌دی تدبیرکی دی چی څر نگه زیار ایستو نکی خلك دلیوانو او گیدړانو له داړو وژغورو ـالبته داکار خپله خلك کوی . خویو ه‌لار ښوونه غواړی .

دکار گرانو زیار ایستو نکو گوند ونه‌په ټـــو لـــه نـــړ ی کـــی د خپلـی ټولنی لار ښوونه په غاړه لری دوی ته پلان ورکوی دعملی کولو لاری چاری یی سنجوی اوپرگنی بی عملی گنی‌بی‌عملی کوی، پـــه افغا نستان کی‌هم دغسی ده زموږ گوند زموږ ټو لنی ته داسی لار ښوونه کړی چی دخلکو په اجتما عی ،اقتصادی اوسیا سی ژوند کی‌یی ستر تحولات راوستی چی دټولوپه گټه‌دی.

خود دغه تحولات لاښپړ نه‌دی اولانور کار هم غواړی اوتر هغی هلی ځلی غواړی چی دی نتیجی ته ورسیږی چی په افغانستان کی دسړی څخه دسړی استثمار پای ته ورسیږی .

دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گو نـــد خپل اصول او مقررات لری اودهغو له مخـــی تاسو پوهیږی چی‌د گوند دغړی او دځوان کدر په توگه کومی وظیفی او کوم‌مکلفیتونه لری او باید هغه کلك په‌نظر کی ونیسی او هیڅکله گوندی دسپلین او انضبــــــاط‌او دمو کراتیك مرکز یت له‌نظر ه‌ونه باســـی تاسو خپلی نظر یی خپل انتقادونه اوپیشنهاد- ونه گوند ته‌وړکړی اوهغه گوند داجرا له‌پاره بیرته تاسو ته درسپاری اودهغو په تطبیـق او عملی کولو کی هلی ځلی کوی .

زما بله توصیه داده چی خپل گو نـــد متحد او غښتلی وساتی او دگوند یو والـــی او وحدت داسی خوندی وساتی لکه دسترگو کسی څکه چی بی لدی بله چاره نشته.گوند یـــوازی دیو والـی اویوه موټی کیـدو په صورت کی دافغانستان دزیار ایستو نکـــو دسعادت او نیکمر غی له‌پاره کار کولای‌شی.

تر مخه می داورد بخر کی مثال راوړ،زموږ هغه بخر کی تردی اندازی ورسید چـــی



دافغانستان دخلکو سترلارښود او دانقلابی‌شورا رئیس نورمحمد تره‌کی کله چی دپکتیاولایت گونـدی کدرونو ته خپلی عالمانه لارښوونی اوروی .
۱۳۵۸ر۱ر۲۸

دومره تکامل یی وکړ چی اوس موږ اوتاسو په رڼا ورځ دهغو مستبد انو او ارستوکراتانو داستبداد اوار ستو کراسی په هغه ستـــره مانۍ کی سره ناست یوچی په زر گو نـه په یی وژل دافغانستان دخلکو په وینو به‌یی خو له سره وه اوپه غوښو به یی داړی خښی وی .

زموږ دغه وده اوتکامل په وړ یا تو گه لاس ته ندی راغلی بلکی په ډیروستو نزو او کړکیچنو څخه تیر شوی .

اوپه دی لاره کی‌ډیر دبړونه گـالل شوی دی .موږ چی دخلق په جریده کی خپل مرام خپور کړ هغه په رښتیا سره زموږ دگو ند له‌پاره یو رون مشعل وه اوموږ ددغه څراغ په رڼا کی خپله لاره ولیدله اوهغی خواتـــه تللو چی انقلاب موراوست انقلاب ته درسیدلو په‌تگلاره‌کی زموږپه گوند ډول ډول انشعابونه وتپل شول .خصو صا دهغو اشراف زاده گانو انشعا ب چی غوښتل یی زموږ دفعالیتو نوپـــه خلاف بل شان فعالیت وکړی موږ څه لـــږ ور وسته ددوی له اصلی مقصد پوه شو چی دوی غواړی دلته تش په‌نامه یوه داسی ډله وسا تی چی نوم یی دکار گری طبقی گو ند وی او دمستبد ینو او ارتجاع دبین المللـــی حیثیت له پاره خدمت وکړی چی گو یادوی دومره دمو کراتان دی‌چی کارگری گو ندهم زغملی شی ،دلته انقلابی گوند شته ، دلته دمو کراسی شته ،او حکو مت یی تحمل لری ،اوپه دی صورت دخلکو دمو کراتیـــک گو ند غیر فعال اوله انقلا به په څنگ وساتی خوزموږ دگو ند مقصد داوچی دومره وده‌او تکامل وکړ وچی دغو مستبد وار ستو کراتان او فیوډالانو دظلم مانۍ دړی وړی کړو اوپه ځای یی دافغانستان دزیار ایستو نکو خلکوپه نمایندگی او دپر گنو په‌ملاتړ دافغـــانستان دخلکو دمو کراتیك گوند سیا سی قدرت‌واخلی په دغه لاره کی ډیره ستونز موږ و گاللـــی اوپه پای کی خلقی لاره (ترند) بر یا لـــی شوه موږ ویاړ وچی زمونږ خلقی لاری دثور ستر انقلاب راوست او اوس همدغه لاره ده چی زموږ دنورو اقتصادی او اجتما عی‌انقلابونـو لار ښوونه راته کوی .

دپنځه کلن پلان دطرحی په اساس مـــوږ خپله ټولنه دا سی له بیخه بد لوو چــــی پخوانی فیوډالی وراسته روابط له‌مینځه‌یوسو اوپه ځای یی نور داسی نوی اوغښتلی‌روابط ټینگ کړوچی دزیار ایستونکو اوخواریکښو په گټه به وی‌نه دسود خورو مفت خورو او سړی خورو ،داټول کارونه یوازی گو ند نه بلکی دافغانستان دټولو شر یفو زیار ایستونکو خلکو په مرسته اوملاتړ کوی .

دا ټول کارونه یوازی په دی باندی کیږی چی‌زموږ ځوان کـــدرونه اولارښوونـکی لـه خلکو سره ښه چلند اوښه سلوك و کـړی اوله خلکو گوښه اوجلانه شی . دخلکومینه لطف او ملاتړ جلب کړی په دغه صورت کی به دهر چاپه زړه کی ځای ولری اوکه‌داخوان۔ الشیاطین یو سخت گوډاگی هم وی نــــو په خپله زړه کی به زموږ دکا رونو پــــــه ښه والی قانع وی نودپردیو ددال اوچپا تیود پاره چی بیا هرڅه کوی‌کوی‌به‌یی.

داچی ومی ویل داد خلقی ځوانانو دوظیفو

یوارخ وبل اړخ یی دادی چی دوی ته اوس دوه وظیفی ور په غاړه دی هغه داچی ددوی په‌ښی لاس کی باید قلم او په کین لاس کی تو پك وی ،دګوند له ځوانو لار ښوو نکـــو څخه زما مقصد یوازی ملکی ځوانان نه دی

بلکی دوسله وال پوځ زلمیان هم پکی شامل دی دګړ ندله یا دولو څخه زما مقصد ټول او مجموعی ګوند دی ځکه زموږ میړ نیـــو دوسله وال پوځ زلمیانو حتی تر انقلا بـــه وروسته داسی ستر بریالیتو بونه تر لا سه کړی دی چی دزیا تی ویاړ نی وړدی .

باید زموږ دا ملکی ملګری هم توره اوقلم په لاس له هغوی سره څنګ په څنګ ودرـ یږی .

همدا رنګه دوسله وال پو ځ وظیفه هـــم یوازنی دانه ګڼو چی ټو پك په لاس کــــی ولری اوبس بلکی دتوری اوتو پك‌سره دی سیا سی ما غزه سیا سی پوهه او شعـــــور او قلم هم ولری اوکه نه نو لکه چی ښا یی هغسی کارنه شی کولای اوپه دغه تو ګـــــه زموږ ملکی او دوسله وال پوځ ځوا نـــان باید لاس ترلاسه یوځـای یوه لـــوری تـــه روان وی او دثور دانقلاب سیا سی قـــدرت وسا تی .

زه تاسوته زیری درکوم چی او س موږ دننه په هیواد کی دښمنان نه لرو زموږدانقلاب دښمنان هغه کسان دی‌چی‌هغوی‌اصلاددغی‌پاکی خاوری نه‌دی .بلکی خارجیان او دامپر یالیزم ګړ ډاګیان دی امپر یالیستی قوتو نـــــه غواړی چی افغانستان بیرته دخپل ځان کړی او دلته داسی نفوذ وکړی چی افغا نستان دسو سیا لستی نړی په مقابل کی دیـــــوه ستر سنګر په توګه استعمال کړی .خو موږ ورته وایو چی دثور ستر انقلاب دافغا نستان نه‌دامپریالیزم تور او زوړ ټغر دتل‌له‌پاره ټول کړ او بیا دنورو په‌ضد سنګر کیدای نه‌شی دوی هم په‌دی یو هید لی دی نو ځکـــــه زموږ په پاکه خاوره یر غلو نه کوی او زموږ په کورنیو چارو کی ګوتی وهی .

څو ورځی دمخه موږ اعلان وکړ چی پــــه پکتیا کی زموږ په‌څو تاڼو باندی هغــــوی یرغــل کړی دی ددغه اعـلان نـــه دمخـه دوی زموږ په تاڼو او نورو سرحدی ځایونـــو باندی (٦١) ځلی یر غلو نه کړی وو چـــــی زمو ږ غیر تمنو خلکو او وسله وال پو ځ میړ نیو زلمیانو خوله ما توو نکی ځوا بو نه ور کړی وو .

زموږ دګوند مسؤلیت ډیر دروند دی‌داځکه چی له‌یوی خوایی انقلاب راوست اوله بلی خوا دانقلاب ساتل ورپه غاړه دی‌خوددی ټولو په‌څنګ کی ډیره مهمه داده په‌خپلو فعالیتونو اوزیار ایستونوسره اقتصادی‌انقلاب‌روالی کـه اقتصادی انقلاب نه وی نوزموږ هلی ځلی او قربانی دسیا سی قدرت دنیو لو له پاره نه دی بلکی له سیا سی انقلاب څخه زمو ږ مقصد دافغانستان دزیار ایستو نکو دژو ند دمادی شرایطو ښه کول دوی ته ډوډی کور اوکالی پیدا کول وو ستاسو دګونـــــد او دولت یو وروستی بری داهم ؤ چی دلتـــــه په دولت کی صلا حیتونه او مسو لیتونه تشبیه شول او دقا نون له مخی ددولت څیرۀ نوره

دی دروان کال تر پایه پوری په خپله ددغو سودا گرو وله خوا صادره شی .

دوزیرانو شورا تصو یب وکړ چی دبو ټو سهامی شرکت چی دهغه په سلـو کـی ۶۹ با نگه په دولت پوری اړه لری دسودا گری په وزارت پوری وتړ ل شی .

دوزیرا نو شورا دسو داگری دوزارت پـه پیشنهاد دوړ یو دتصدی اسا سنا مه پـــه ۲۳ مادوکی تصو یب کړه .

همدا رنگه دوز یرا نو مجلس دفوا یـــد عامی دوزارت دغه پیشنهاد تصو یب کړ چی اوس دی دکابل دښاردما ستر پلان له مخـی هغه ځای چی د ځر منو دصنا یعو له پاره ټاکل شوی دآهو بوټ جوړ ولو فابر یکـــی له پاره منا سب ځای وټاکل شی په لومړی گام کی دی ددغی فا بریکی دخور ور کولو بر خه ډیر ژر هغه ځای ته ولیږدول شی‌چی دخور ور کو لو دصنا یعو له پاره ټا کـــل شوی ده .

داو بو او بر ښښنا وزارت ته سپارښت‌شوی دی چی ددغی فا بر یکی سره دبر ښښنا پــه غزولو کی مر سته وکړی دوز یرا نو شورا دکر نی او دځمکو داصلا حا تو دوزارت له دغه پیشنهاد سره موافقه وکړه چی دپــلان وزارت دی دیر مختیا یی احتیا طی بود جی څخه د ۲۵ ملیو نه افغا نیو تخصیص دهیواد په ولایا تو کی د ځنگلداری دیو لړ بیلابیلو فعا لیتو نو دتطبیق له پاره دد ښتو پر اختیا سره دمبا رزی په پروژه کی دافغا نی لگښت دتمو یل په غرض ولیږ ی داطلا عا تو اوکلتور وزارت په چو کاټ کی دبیهقی مو ســــــی داتتغا عی تصدی اسا سنا مه دکتا بو نـــو دچا پولو او وارد ولو دلا یحی او دهغی لـــه کی‌تصو یب شوه .

۱۳۵۷-۷-۲۵

دافغا نستان ددمو کراتیك جمهور یـــت دانقلا بی شورا درئیس او صد را عظـــــــم نورمحمد ترہ‌کـــی پـــه مشر دخــــلکو پـــه کور کی غونډه وکړه .

دغو نډی په پیل کی دانقلا بی شورارئیس او صد راعظم دکو رنی او بهر نی سیا ست په سا حه کی په بیلا بیلو اقتصادی ټولیزو، کلتوری ، فرهنگی ، روغتیایی ، عــرفــانـــی او نور وبر خو کی دافغانستان دد موکراتیك جمهـــوری دولت دپنځه میــاشتنیو فعــالیتونو او دحکو مت دکار دپرو گرام په باره کی اوږدی څر گند ونی وکړی چی دانقلا بـــی شو را دغړ ولخوا په چك چکو او دشوره‌ډکو انقلابی ولو لو په څر گند ولو سره بدرگه او تائید شوی .

په دی غو نډه کی دافغانستان دد موکراتیك جمهور یت د بیرغ قا نون تصو یب شو او هم دمهر او د واده دلگښتو نو په باره کـــــی دافغا نستان دد مو کراتیك جمهوری دو لت دانقلا بی شورا اوومه گڼه فر مان چـــــی دهیواد دپیغلو او ځوانا نو ددمو کراتیکـــــو حقو قو دخو ندی کو لو متضمن دی تصو یب او صادر شو .

په تیر وپنځو میا شتو کی ددولت‌دفعالیتونو ربوټ چی زمونږ دگران او انقـلابی مشر -

نور محمد تره‌کی‌لخوا دافغا نستان‌ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا غونډی ته وړاندی شو او دغه راز دبیرغ قا نون اودانقلا بی شورا دواومی ګڼی دفر مان متنو نه‌دافغانستان دخلکو دخبر تیا د پاره در اډیو او ورځپاڼوله لاری خپریږی .

۵۷-۷-۳۰

دوزیرانو شورا دافغانستان دد موکراتیك جمهور یت دانقلابی شو را درئیس او صدراعظم نور محمد تره‌کی تر مشر ی لاندی دخلکو په‌کور کی غو نډه وکړه . دغو نډی په پیل کی دانقلا بی شورا رئیس او صد را عظم دکور نیو او نړ یوالو حالا تو په باره کی اوږدرپوټ وړاندی کړ .

وروسته دصدراعظم مرستیال او د بهرنیو چارو وزیر حفیظ الله امین دکور یا دخلکو ددمو کراتیك جمهور یت دصد راعظم د مر ستیال او بهر نیو چارو له وزیر سره دخپلو خبرو په باره کی دوزیر انو شو راته تو ضیحات ور کړل .

دوزیرا نو شورا دصد راعظم دمر ستیال‌او دبهر نیو چارو دوزیر درپو ټ له اور یدو وروسته دوزارتو نو او دولتی مو سسو په پیشنهاد ونو باندی خپلی خبری پیل کړی او له هغو څخه یی لاندی موضوع ګا نی تصو یب کړی .

دعامل هیات د تصمیم له مخی د مربوط پر سو نل له خوا په آزادی ډول دافغا نی سا ختما نی دستګاه تر جوړ یدو لاندی پروژو د ضرورت وړ تعمیراتی موادو دپیرودلو وکړی .

په باره کی دفواید عامی وزارت‌پیشنهادتصویب شو .

دا فشار داوبو رسو لو دپر وژی داو بو رسو لو او بر یښنا دسا مان آلاتو پیر ودل چی دآلما ن دفد رالی جمهور یت د کر یدت او ددولت دانکشا فی بودجی څخه تمو یـل کیږی تصو یب شول .

دغه راز دوزیرانو شورا دفواید عا مـی وزارت داووه پنځو سم کال دپر مختیا یـی بودجی دسر جمع څخه دبنا یی سا ختما نی دستګاه پا نګی ته دیو سلو لسو ملیو نـو افغا نیو دتعدیل پیشنهاد منظور کړ .

د ما لیی وزارت دپیشنهاد له مخی دافغان ملی بیمی مو سسه دسو داګری له وزارت څخه بیله او دما لیی په وزارت پوری وتـړل شو ه .

دوزیرا نو شورا دمالیی وزارت ته وظیفه ورکړه چی پدی برخه‌کی دیوه قانون مسوده دعدلیه وزارت په همکاری تنظیم او دوزیرانو شو راته یی وړاندی کړی .

همد غه راز در ادیو تلو یزیون وزارت‌په پیشنهاد پر یکړه وشوه چی دما لیی وزارت دی درادیو تلو یزیون وزارت داړتیا و دلری کولو له پاره دتلو یز یون ګرزنده ستد یو دپیر ود لو په غرض یونیم ملیو ن ډا لـــره برابر کړی .

دوزیرا نو شورا در اډیو تلو یز یون‌وزارت ته واك ورکړ چی په وخت دی دشخصی سینما ګا نو اجراات او دهغو دپښو دنــــو دخر نګوالی او دعا یدا تو داندازی څېړ نـــه وکړی .

دچار یکار و او تالقا نو دنسا جی دفابریکو
دمطا لعا تی لگښتو نو له پاره دگر شـک
دنساجی داوه پنځـو سم کال دپنځـه سوه
زره افغا نیو او پنځلس زره ډا لرو دبود جی
او تخصیصا تو د تعد یل په باره کـی
دکا نو ا وصنا یعو وزارت پیشنهاد منظـور
شو .

دوزیرا نو شو را دافغان نندارې په چوکاټ
کی داطلاعا تو او کلتو ر وزارت دمو سیقـی
دمد یر یت نوی تشکیل منظور او دما لیـی
وزارت ته یی لار ښو دنه وکړه چی پد غه
مقصد دری ملیو نه افغا نی تخصیص ولیږی.
دغه راز دوز یـرانو شورا دافغا نستـان
ددمو کراتیک جمهور یت او دبلغاریا دخلکـو
دجمهور یت تر منځ کلتوری قرار داد تصویب
کړ .

۱۳-۸-۵۷

دافغا نستان دخلکو ددمو کراتیک گو ند
دمر کزی کمیټی دعمو می منشی دانقلا بـی
شو را درئیس او صد راعظم نورمحمد تره‌کی
په مشر یدگو ند دمرکزی کمیټی سیا سی
بورو دخلکو په کورکی غونډه وکړه .
لومړی دگو ند دمر کزی کمیټی عمومـی
منشی او دخلکو ستر ښو ونکی دکو رنیـو
چا ر واو بین المللی حالا تو په باب سیاسی
بورو ته رپوټ ورکړ .

ور پسی دځمکو داصلا حاتو دقا نـون
پر مسوده خبر ی وشوی همد غه راز پـدی
غو نډکی دافغا نستان ددمو کرا تیـک
جمهوریت په مالی او بو دجو ی مسا لـو
خبری اتری وشوی اوپه پای کی دبهر نیـو
پو رو نو او دهغو دگټی مو ضو ع چـی
دثور دستر انقلاب نه مخکی موا فقو لـه
مخی ددو ستو دولتو نو له خوا افغا نستان‌ته
ور کړ شوی دی خبری اتری وشوی .

۱۴-۸-۵۷

دافغا نستان ددمو کراتیک جمهور یـت
دانقلا بی شورا درئیس او صدراعظـم
نور محمد تره‌کی تر مشری لاندی دوزیرانو
شورا دخلکو په کور کی غو نډه وکړه .
لو مړی دانقلا بی شورا رئیس او صدراعظم
دکو رنیو حالا تو او نړ یوا لو مسا لو پـه
باب دوز یرا نو شو راته اوږ درپوټ وړاندی
کړ .

ور پسی دښو ونی او روز نی وزیـر
عبدالر شید جلیلی چی پدی ورو ستیـو
وختو کی یی په فرانسه کی دیو نسکو پـه
کلنیو غونډو کی گډون کړی و په دغـه
غونډه وکی دافغا نی هیات رول څر گند کړ
ورو سته دوزیرانو شورا دوزارت خا نواودولتی
موسسو پر پیشنهاد ونو اوطر حو بحث وکـړ
او له هغی جملی څخه یی دغه تصو یبو نـه
وکړل .

دالمان له دمو کراتیک جمهور یت سره
دمخا براتی تجهیزاتو دیوی برخی دپیر ودلو
دتړون په باب دمخا براتو وزارت پیشنهاد
تصو یب شو.

دتلو یز یون دتور واو سپینو سیټو نو،
دثمرقند دغوړیو او نورو استهلاکی ما لو نو

دپیر ودلو په باب دمالیې وزارت پیشنهاد تصویب شو .

دسو داگرۍ وزارت په چوکاټ کې دخلکو دصادراتي او وارداتي اتحادیې دجوړیدو په باب دهغه وزارت پیشنهادمنظور شو .

دږبرو دسکرودکانونو دایستلو داړتیا وړ موادو دپوره کولوپه باب دکانو او صنایعو وزارت غوښتن لیك تصویب شو .

دوزیرانو شورا اموا فقه وکړه چې دسالنگو نو دساتنې او څار نې په شمول دفواید عامې وزارت دکار دقواو قو ما ندانې اودمیخا نیکې ریاست دې دفواید عامې له وزارت څخه جلا او دافغانستان ددفاع له وزارت سره وتړل شي .

دوزیرا نو شورا تصویب وکړ چې دځمکې اصلاحاتو داداري اوسنۍ تشکیل د ځمکو اصلاحاتو اړتیاو ته ځواب نشيویلی له دې امله دې دکرنې اوځمکې اصلاحاتو وزارت پیشنهاد شوی تغییر ونه اصلاحات او ترمیمو نه دې پکې تطبیق شي .

دغه راز تصویب وشو چې دهرات دهوایې ډگروداني دې دزیات کار اخیستنې او دهغې دخرابیدو د مخنیوی له پاره ترمیم شي .

۲۷-۸-۵۷

دخلکو ددموکراتیك گوند د مرکزي کمیټې دعمومي منشي دانقلابي شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کي په مشرۍ دافغانستان دخلکو دد موکراتیك گوند دمرکزي کمیټې سیاسي بورو دخلکو په کور کې غونډه وکړه .

لومړی دخلکو لارښود او ستر ښوونکي دکور نیو اونړیوالو حالاتو په باب سیاسي بورو ته رپوټ وکړاو پدې تر څ کې یې وفر مایل چه دپخوا په شان په ټول هیوادکي امنیت ټینگ دی .

ورپسې دځمکو داصلاحاتو دقانون په مسوده باندې دسیاسي بورو په غو نډه کې خبرې وشوې او دراپوپه اتفاق تصویب شو .

دغه راز دافغانستان دخلکو ددمو کراتیك گوند دمرکزي کمیټې سیاسي بورو فیصله وکړه چې دموضوع داهمیت لەمخې دې دځمکې داصلاحاتو دقانون د مسودې د تصویب له پاره دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند مرکزي کمیټې پلینوم راو غوښتل شي.

۲۸-۸-۵۷

دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نور محمد تره کي په مشرۍ دافغانستان دموکراتیك جمهوریت د وزیرانو شورا دخلکو په کور کې غونډه وکړه .

لومړی دانقلابي شورا رئیس اوصدراعظم دکورنیو او بین المللي حالاتو په شاوخوا کي دوزیرانو شوراته اوږ درپوټ ورکړ ورپسې دسوداگرۍ وزیر عبدالقدوس غوربندی د چکوسلواکیا او مجارستان سوسیالیستي هیوادونو ته دخپل سفر او ماموریت په باب دوزیرانو شورا ته یو رپوټ ورکړ.

دوزیرانو شورا ورپسې د وزارتونو او دولتي مو سسو په پیشنهاد باندې خپلې خبرې پیل او د الاندې پریکړې یې وکړې .

دسو دا ګری وزارت دپیشنهاد له مخـــی فیصله وشوه چې دولت دی دهرات مسلـــخ دغو ښو دصا درا تو له درکه سبسیدی‌ورکړی همد غه راز دسودا ګری وزارت ته اجازه ور کړه شوه چې دهر ټن صادر اتی ممیزو څخه دی سل افغا نی کمیشن واخلی اوفیصله وشو ه‌چی دولت دی له دی فیصلی ورو سته هر هغه ډالر له پاره چې دممیزو دصادراتو له درکه لاس ته راغلی دی په بازار کی دډالر دآزادی بیی په نسبت دوه افغانی زیا تـــی ور کړی .

دبنا یی دستګاه دپا نګی دپیا وړ تیا له پاره دفواید عامی وزارت دپر مختیا یی بودجې له سر جمع نه ددوه سوه ملیو نو افغا نیو دتعد یل په باب دفواید عامی وزارت پیشنهاد منظور شو .

دوزیرا نو شو را تصو یب وکړ چـــی دهلمند دسا ختما نی دستګاه او ددفاع وزارت دسا ختما نی مو سسو پر ته دی دوزار تو نو تولی سا ختما نی دستګاوی دفواید عا می‌په وزارت پوری وتړ لی شی .

ددفاع وزارت دپیشنهاد دله مخی ومنل شوه چې دما لیی وزارت دی دتعمیراتی سا مـــان دپیرو د له په غرض پنځه سوه زره ډا لره ددفاع وزارت په واك کی ور کړی .

دپلان جوړ ولو دچا رو دوزارت په پیشنهاد پریکړه وشوه چې دافغانستان با نك دی دوه سوه شپږ اتیازره او پنځه سوه ډالره دهرات دسمنتو دپر وزود وسا یطو او دهغه ولایت دنو رو صنا یعو درانیو لو له پاره دکا نـــو او صنا یعو وزارت ته ور کړی .

دو زیرا نو شورا پر یکړه وکړه چــــی دحیا تی احصا ئیی دثبت پروژه دی دهغـــی له بود جې او پر سو نل سره دپلان جوړولو دچار و وزارت دمرکزی احصا ئیی له اداری سره وتړله شی .

۱۳۵۷-۹-۵

د افغانستان ددموکـراتیـــك جمهوریـت دانقلا بی شو را درئیس اوصد راعظـــــم نورمحمد تره کی په مشری د افغا نستان‌د وز یرانو شورا دخلکو په کور کی غو نـډه وکړه .

دوزیرانو دشورا غونـډه دکورنیو اوبین - المللی حالاتو په باب دانقلا بی شورا د رئیس ا وصد راعظم په څر ګندونو سره پیــــل شو ه او وروسته بیا په آجنداکی دشا ملـو مو ضوع ګا نو په باب خبری اتری وشوی.

دوزیرانو شورا تصویب کړه چه : دپولی-تخنیك انستیتوت دی د ۱۳۵۸ کال له پیـــل څخه دیو جلا واحد په تو ګه له پو هنتون څخه بیل او را سا دی دلوړو ښو ونو پــــه وزارت پوری وتړل شی .

دکا نو او صنایعو وزارت دپیشنهاد له مخی تجو یز ونیول شو چی .په ۱۹۷۹- ۱۹۸۰ کلو نوکی دی دشمال حوزی دبرمه‌کاری دپروژی

دتمو یل دپاره دولس زره ټنه ډیزل وپیرودل شی .

دغه راز دوزیرانو شورا دبغلان دبوری‌دنوی فا بر یکی دجو ړولو دچا رو او دما شین آلاتو دبرابر ولو او مو نتاژ تړون چی‌دکویټ اوابوظبی دهیواد و له پور څخه تمویلیږی په با لمقطع ډول دری پنځو س ملیو نو امر یکا یی ډالرو له یوی فرانسوی کمپنی سره تصو یب کړ .

دوزیرانو شورا دکابل ښار داته ګو نو پروژو دجو ړولو په باب دکو رنیو چا رو وزارت پیشنهاد تصویب کړدغه پروژی دادی: دخو شحال خان مینی دالف ،ب اوج بر خی، درحمان مینی دج برخه ، د ایوبخان مینی جنو بی او شمال بر خی ، دتا یمنی واټ پروژه ،دآریا نا دکارتی پروژه او دځر خی پله دسا حی دویمه بر خه .

دغه راز دوزیرانو شورا په هیوادکی دغنمو دبیی او اندازی دڅارنی په غرض مالیی وزارت ته دغلی اوپه تیر ه بیا دپوره اندازه غنمو دبرابرو لو په باب لازمی لار ښو ونی وکړی.

۶_۹_۵۷

دافغانستان دخلکو دد مو کراتیک ګو ند دمر کزی کمیټی دعمومی منشی او دافغا نستان ددمو کراتیک جمهور یت دانقلا بی شو را درئیس او صد راعظم نور محمد تره کی په مشری دافغا نستان دخلکو دد مو کرا تیک ګو ند دمر کزی کمیټی سیا سی بورو دخلکو په کور کی فوق العاده غو نډه وکړه . دافغانستان دخلکو دد مو کراتیک ګو ند دمر کزی کمیټی عمومی منشی نورمحمدتره‌کی هغه راپوټ چه دمرکزی کمیټی را تلو نکی پلنوم ته به وړاندی شی دی غو نډی ته وړاندی کړ چی دځینو لاندی ونیو ل شواود غور او خبرونه وروسته درایو په اتفاق‌تصویب شو .

۷_۹_۵۷

دافغانستان د خلکو ددموکراتیک ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی ترمشری لاندی د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت انقلابی شورا دخلکو په کور کی غونډه وکړه دغو نډی په پیل کی دانقلا بی شورارئیس اوصدراعظم‌ملګری نورمحمدتره‌کی داسی راپوټ ورکړ .

ګرانو ملګرو !

دانقلا بی شورا مبارزو غړو !

خو شحا له یم چی نن د ۱۳۵۷ کال دقو س اوومه نیټه دافغانستان ددمو کراتیک جمهوری دو لت دانقلا بی شورا یوه داسی غونډه پرانیزم چی دافغانستان په تا ریخ‌کی ډیره رڼه ځلیږی او داحقیقت پدی کی بر ینبی چی دانقلابی شوراله ورو ستی غونډی څخه یوه میا شت او څو ورځی تیری شوی چی نن بیا دغه تاریخی غو نډه دایر یږی.

سره لدی چی په هغه غونډه کی ددولت دکارونو مفصل راپوټ وړاندی شو بیا هم په لنډ ډول وایم چی پد غی موده کی دولت دډور ډیر تمین انقلاب دتکامل په پرو سه کی ستر ستر ګا مونه اخستی دی .

په هیواد کی دننه دانقلاب دښمنان دامپر_

یالیزم لاس پو څی او دار تجاع نما یند ګان
چی دخلقی دولت دړنګیدلو کنجا یه په‌خوب
وینی ډیر کلك څپل شوی دی بیاد احقیقت
وبریښیدی چی دثور ستر انقلاب نه ما -
تیدونکی او دافغانستان دخلکو دمو کراتیك
ګو ند په شا نه تلو نکی دی .

په لوړ و اوبی شا نه مرا سمو سره‌زمونږ
دخلقی بیرغ پورته کو لو او په ټول‌افغانستان
کی دملیو نو زیار ایستو نکو خلکو پـــه
انقلابی شورا او زوږ سره په دغو مراسموکی
په مینه مینه بر خه اخستلو دامپر یالیـــزم
ار تجاع او دانقلاب ټولو دښمنا نو هغــــه
ډنډوری پو چی ثبوت کړی چی څپرو لی‌یی.

دغو مرا سمو زمونږ دخلقی دولت خلقـــی
قوت ټولو ته په ډاګه وښود .

دشپږم او اووم نمبر فر ما نو دتا ثیرا تو
څپی هری خوا پراخه خپری دی چی زیـــار
ایستو نکو ته یی پوره اطمینان پیدا کړی‌چی
خلقی دولت‌ددوی دپاره دی اوددوی اعتماد یی
ور با ندی ډیر زور کړی دی په ټول هیوادکی
دانکشا فی پروژو کار په بیړه روان دی .

دافغا نستان ددمو کراتیك جمهور یـــت
دحکومت دشپږومیاشتو تجربو وښودله چی له
ډیرو سترو بریالیتوبو سره سره داطلاعاتـــو
او کلتور وزارت او راد یو تلو یز یون وزارت
په کار و نو کی تد اخل وجود لری چـــه
مشکلا ت مینځته راوړی ددی دپاره چی دغـه
نقیصه هم لری شی او پدغی سا حه کی هم
کا رو له ښه په مخ ولاړ شی دراډیو تلویزیون
وزارت دی داطلاعا تو او کلتور وزارت پوری
وتاړه شی چه داطلا عاتو او کلتور وزارت به
دوه میعینان ولری یو داطلا عا تو او کلتـــور
معین او بل دراډیو تلو یز یون معین .

درا ډیو تلو یز یون وزارت به له خپلـــو
ټو لو تشکیلاتو او ټو لی بودجی ســـــره
داطلا عا تو او کلتور په وزارت پوری مربوط
شی اوله هغی لاری به منا سب تغییرات او
اصلا حات پکی راو ستل شی .

په خارجی چارو کی ډیر موثر کارو نـــه
تر سره شو یدی .

افغانستان ته دکور یا دخلکو ددموکراتیك
جمهوریت دصد راعظم مر ستیال او د خارجه
چارو وزیر سفر ډیر په زړه پوری او ګټـــور
و، دقهرمانی کیوبا دخارجه وزیر دیوه هیات
په را س کی افغانستان ته راغی چی دثور
دانقلاب پلو شی یی په خپلو ستر ګو ولیدلی
او لاډیر معتقد شو چه دافغانستان او کیو با
ترمینځ ددوستی او ورور ګلوی داړ یکـــو
دلاډیر پیا وړی کید لو پراخه امکا نـــات
وجود لری .

له هغو خا ثنا نو څخه چی دثور دانقلاب
پر ضد او دخلقی دولت پر ضد دامپر یالیزم
په محوری رول توطئه کښی ښیکـــل و ، او
هیواد ته راستنا نه نه شول‌چی دفرار یا نو
په شان د امپر یالیزم دهدا یت سره ســـم
ژوند کوی نه یوازی دولت او هیواد پاك‌شوی
دی بلکه دافغانستان دخلکو دمو کراتیك‌ګوند
هم دمر کزی کمیټی دپلنوم دتصمیم پـــه
اساس با لکل ور څخه پاك او سپیڅلی دی
دغه غو نډه دتاریخی تصمیم په خا طـــــر
دافغا نستان دخلکو ددمو کرا تیك ګو نـــد
دمر کزی کمیټی دپلنوم دجلسی په تعقیب

دایر یږی او ډیره مهمه داچی دغه غو نـــډه
دداسی انقلا بی فر مان په هکله دتصمیـــم
نیو لو په خاطره دایره شوی چی دافغانستان
د تکا مل په پرو سه کی دوی تاریخی‌دوری
شاته پریږدی .

دغه فر مان دځمکو په هکله دافغا نستان
ددمو کراتیك جمهور یت دانقلا بی شو رااتمه
گڼه فر مان دی چی دافغانستان دمو کراتیك
جمهوری حکو مت په ډ یر غور او دقت ترتیب
کړی او دادی ددی درندی غو نډی دغـــــور
دپاره وړاندی کیږی .

دی غو نډی ته حکو مت ته دپور و او
کر ید تو داخستلو او قرار داد ونو دصلاحیت
دور کو لو قا نون هم دغور دپاره وړاندی
کیږی .

اوس ملگری حفیظ‌الله امین اتمه گڼــه
فر مان او دپو رو نو قا نون تا سی ته‌لو لی
هیله ده چی ملگری پری ښه غورو کړی‌او
هغه تصو یب کړی .

بیا ملگری حفیظ‌الله امین دځمکی پـــه
باره کی دافغانستان ددمو کرا تیك جمهوریت
دانقلا بی شورا اتمه گڼه فر مان چی پــــه
اتو فصلو نو او څلو یښتو ما دو کی تدوین
شوی دی ماده په ماده ولو ست او په یوه
آزاده او دمو کرا تیکه فضا کی په هره ماده
با ندی دغور او خبرو اترو نه وروسته رائی
واخستلی شوی او درا یو په اتفاق دافغا نستان
ددمو کراتیك جمهور یت دانقلا بی شو راد
غړ ودتا ئید وړ و گر ځید .

ور پسی دځمکی په باره کی دافغانستان
ددمو کراتیك جمهوریت دانقلا بی شورا اتمه
گڼه فرمان دیو کل په تو گه رائـــــــی
واخستلی شو ی چی درا یو په اتفاق تا ئید
او تصو یب شو .

پدی وخت کی حفیظ‌الله امین دافغا نستان
ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا دغړ -
ودتولو ملگرو په نما یند گی او دافغا نستان
دخلکو دد مو کراتیك گو ند دټو لو غــړو
په وکا لت خپلی مبارکی دستر ملگـــــری
دانقلابی شورا داتمی گڼی فرمان مبتکـــــر
نور محمد تره‌کی حضور ته وړاندی کـــړی
او دمر ستی ، پور او کریدت داخستلـــــو
دقا نون متن یی چی په اتو مادو کی ترتیب
شوی دی ماده په ماده غو نډی ته ولو ست
چی په هره ماده ئی بحث وشو او تا ئیـــــد
شو او ورو سته له‌دی چی دیو کل په توگه
پری رایی واخستلی‌شوی‌دافغانستان‌ددموکراتیك
جمهوریت انقلابی شورا دغه قا نون هـــــم
درایو په اتفاق تائید او تصو یب کړ .

ورو سته بیا حفیظ الله امین غو نــــډی
ته بلنه ورکړه چی دافغانستان ددمو کراتیك
جمهور یت دانقلا بی شورا درئیس او صدراعظم
گران ملگری نورمحمد تره‌کی پر ریوټ‌باندی
دی چی دغی غو نډی ته وړا ندی شو هــــم
رایی وا خستلی شی .

دافغا نستان ددمو کراتیك جمهور یـــت
دانقلا بی شورا غړیو درایو په اتفاق‌دافغانستان
دخلکو دگران او انقلابی مشر نورمحمدتره‌کی
ریوټ تائید او تصو یب کړ .

دغو نډی په پای کی ملگری‌نورمحمدتره‌کی

وویل : ننني غـونـډه په ربښتیـا سره لکـه چې وویل شول یوه تاریخي او په زړه پورې غونډه ده او ددغه فرمان په تصویب سره مو نوري دوه تاریخي دوری تیری کړی‌او په ربښتیا سره مو دیوی داسی ټولنی دو دانولو له پاره لاره آواره کړه چې دهغی په هیله وواړو یعنی داسی ټـولنه چې په هغی کـــی هر څوك دخپل کار او استعداد په اند ازه گټه اخلی او دهیچا حق نه تلف کیږی.

دافغانستان ددمو کراتیك جمهوری دانقلابی شورا یوه خبر ځای وویل چې دافغا نستان دخلکو دخبر تیا له پاره داتمی گټی دفر مان او دپور او کریدت داخستلو د قانون متنونـه دقوس په نهمه نیټه دپنجشنبی په ورځ پــــه رسمی جر یده کی‌او دغه راز دثور انقلاب‌د ځلانده ورځپا ڼی په لو مړی گټه کی خپاره او نا فذ یږی .

۱۱-۹-۵۷

دافغانستان دخلکو ددمو کراتیك گو نـد دمر کزی کمیټی دعمومی منشی دافغا نستـان ددمو کراتیك جمهور یت دانقلا بـــی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی پــــه مشری دسیا سی بورو غو نډه دخلکو پــــه کورکی جوړه شـوی .

لو مړی دانقلا بی شورا له اتمی گټـــی فرمان څخه دهیواد دشریفو خلکوډتاوده هرـ کلی په باب دافغا نستان دخلکو دستر مشر او ښو ونکی رپوټ و اوریدل شو .

وروسته دافغانستان ددمو کرا تیــــك جمهو ریت دپنځه کلن پلان په‌باب خبـــری وشوی او لازم تصمیمو نه ونیول شول پـــــه پای کی دوست هیواد د شوروی سو سیالیستی جمهو ریتو نو اتحاد ته دافغانستان د خلکـو ددمو کراتیك گو ند در مرکزی کمیټـــــی دعمو می منشی او دهغه دملگری هیات دسفر په پرو گرام خبری وشوی او د سیا سی‌بورو له خوا تایید شو .

همدارنگه هغه نتیجی چې له‌دی سفر څخه به لاس ته راشی دافغا نستان دد مو کراتیك جمهو ریت او دشو روی سو سیا لیستــــی جمهور یتو نو داتحاد تر مینځ دهر اړ خیزی دو ستی دتکامل په گټه په مثبت ډول وڅیړل شوی .

۱۲-۹-۵۷

دهیواد دربښتینی بچی دانقلا بی شورا رئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی تر مشــــری لاندی دوزیرانو شورادخلکوپه کورکی غونډه وکړه. دغونډی‌په‌سرکی دافغانستان انقلابی او گران مشرنورمحمد تره‌کی دکورنیوحالاتو او دنړی والو مسا لو په باب مجلس ته‌یو رپوټ ور کړ .

بیا دکا نواو صنا یعو وزیر انجنیر محمد اسمعیل دانش په هند کی دیر مختیا هیوا دونو دپاره دصنعتی مسا عدی تکنالوژی‌په جرگه کی دخپل گډون نتیجی په لنډ ډول مجلس ته څر گندی کړی .

ورپسی دوز یرانو شورا د وزار تو نودپیشنهاد ونو په باره کی غور وکړ اوله هغو څخــــه یی پد غو موضو عاتو فیصله صادر کړه .

دکندهاردحوزوی دوه سوه اوپنځوس‌بستره‌ـ ایز رو غتون دبودجی دلگښت دتمو یل پــــه باب چې پدی نژدی وختو کی پرانستل کیږی

دعا می روغتیا وزارت پیشنهاد تصو یب‌شو.

دوزیرانو شورا دجرقدق دگاز دکـــان داستخراجی څا گا نو دبرمه کاری په چاروکی دشوروی اتحاد دمتخصصانو دکار ترون ددوو کالو له پاره منظور او تصویب کړ .

دکا نواو صنا یعو وزارت دپیشنهاد پـــه کتنی سره دافغا نستان بانك ته لار ښو ونه وشوه چی دفرانسوی کمپنی سره دبغلان‌دبوری دترون دپا نگی گر نتی په باره کی دمقرراتو او دحساب داصو ل سره سم اقدام وکړی.

او دغه راز دکا نو او صنا یعو وزارت ته لارښو ونه وشوه دخپل اته پنځو سم کال په بودجه کی دشمال دحوزی دامر یت پـــه غاړه د دیارلس سوه دری پنځو سم او دیار-لس سوه اووه پنځو سم کلو نه دیمرج اته څلو یښت ملیو نه افغانی په نظر کی‌ونیسی.

**۱۸-۹-۵۷**

دافغانستان دخلکو دد موکراتیك گو نـــد دمرکزی کمیتی دعمومی منشی دافغا نستـــان دد یمو کراتیك جمهور یت دانقلا بی شورا درئیس او صد راعظم نور محمد تره کی پــه مشری دافغانستان دخلکو ددمو کرا تیك‌گوند دمرکزی کمیتی دسیا سی بورو اودافغا نستان دد موکراتیك جمهوریت دوزیرانو شورافـــوق العاده او گډه غونډه دخلکـــو په کور کـــی جوړه شو ه

لو مړی دافغانستان دخلکو دد موکراتیك گوند دمرکزی کمیتی عمومی منشی اودخلکو ستر ښو ونکی دشوروی سو سیا لیستـــی جمهور یتو نو اتحاد ته ددوی په مشـــری دافغا نستان دد موکراتیك جمهور یت د گوندی او دولتی لوړ رتبه هیات دسفر په باره کـــی اوږ دریوټ وړاندی کړ .دافغا نستان‌دخلکـــو ددمو کراتیك گو نډ دمرکزی کمیتی دسیاسی بورو او دافغا نستان دد یمو کراتیك جمهوریت دوزیرانو دشورا فوق العاده غو نډ ی دغـــه تاریخی سفر ، چی ددواړو دوستو او گاونډیو هیواد وتر مینځ ددوستی او ښه گا ونډیتوب په اړیکو کی نوی پا ڼه پرانیزی او دغـــه راز دگو ندی او دولتی دوستا نه اړ یکـــو په باب یی دصمیما نه خبرو په شمول دهغـه گټور ی‌نتیجی او دترونو نو لاسلیك مثبـــت وځیړل او بوره یی تا ئید کړل .

**۱۹-۹-۵۷**

دافغا نستان دخلکو دستر مشر دافغانستان ددمو کراتیك جمهور یت دانقلا بی شـــوراد رئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی پـــه مشری دوزیرانو دشو را غو نډه دخلکو پـــه کور کی وشوه .

لو مړی زمونږ ستر مشر دوز یرانو شورا ته دکو رنیو حا لاتو او بین المللی مسا لو په باره کی لنډ معلو مات ور کړل او د وزارتو نو په یو لړ پیشنهاد ونو باندی له خبرو ورو سته دوزیرانو شو رادافغا نستان ددموکراتیك جمهور یت په پنځه‌کلن پـــلان باندی خپلو خبرو ته دوام ورکړ

**۱۳۵۷-۹-۲۶**

دوزیرا نو شورا زمونږ دخلکو دستر ښوونکی دافغا نستان دد موکراتیك جمهور یت دانقلابی شو را درئیس اوصدراعظم نور محمد تره کی په‌مشری دخلکو په کور کی غونډه وکړه.

لومړی زمونږ ستر لارښود دکور نیـــو

او بین المللی حالاتو په باب لنډ معلو مات وړاندی کړل .

ور پسی دوزیرا نو شورا په بیلا بیلـــو مو ضو عګا نو خبری وکړی اوله هغـــو څخه یی په دغو موضو عګا نو فیصله صادره کړه دما مورینو ، افسرانو اود ملکی اونظامی کار ګرانو او اجیرانو دکار دوخت بد لـــون سر د۱۳۵۷ کال دقوس له اوو یشتمی نیټی څخه دحوت تر لومړی نیټی پوری دسهار لـه اته نیمو بجو له غر می نه وروسته تردری‌نیمو بجو پوری اود پنجشنبی په ورځو له اته‌نیمـو بجو څخه له غرمی نه وروسته تر یوی بجی پوری تثبیت شو .

دافغانستان ددفاع وزارت په پیشنهاد دکار دقوا نوم دلارو او ډګرو نو جوړ ولو پـــــه موسسه ، تعدیل اودفواید عامی وزارت دسړ-کو نو ریا ست دهغه له‌ټو لو تشکیلا تـــو او بودجی سره پدی موسسی پوری وتړل شو اوپر یکړه وشوه چی دلاروا وډ ګرو نـــو جوړولو مو سسه دی بیخی دپخوا په شــــان دفوا ید عامی په وزارت پوری وتړل شی.

دبهر نیو چارو دوزارت په پیشنهاد دوزیرانو شورا پر یکړه وکړه چی دویتنام دسوسیالیستی جمهور یت په مر کز هانوی اود هنګری‌دخلکو په‌جمهوری مرکز بوداپست کـی‌دی‌دافغانستان ددمو کراتیك جمهور یت سفار تو نه پـــه مستقیمه تو ګه جو ړ شی .

دشو روی جمهور یتونو له اتحاد سره دځه پاسه دری ملیو نو پنځه سوه زره ډا لـــرو په بیه دکا نو او صنایعو دوزارت دکیمیاوی سری دفا بر یکی‌دګتی اخیستلو په غر ض دپرزو ، سامان آلاتو اود موادو دسپارلوتړون منظور شو .

پر یکړه وشوه ،چی دبنا یی ساختما نـــی دستګاه دی دطب دپو هنځی، داوبو رسولواو بر یښنا دپروژی او دمرکزی تو دوخی په شان تخنیکی چاری بشپړی کړی او دلوړ وښوونو وزارت دی په دغه مقصد بنا یی دستګاه تـــه دیر ش ملیو نه افغا نی ولیږ دوی چی دغه کـار د وخت له ضـایع کیدو څخه پرته په ممکنه چټکتیا سره پیل شی .

دلوړو ښوونو وزارت او دکرنی او ځمکو-داصلاحا تو دوزارت دپیشنهاد ونو له مخـــی لاربنو ونه وشوه چی دغه وزا رتو نه دی‌دمالیی او عد لیی وزارتو نو په سلا دلوړ و ښوو نو دوزارت دمطبعی دانتفاعی تصدی اسا سنا مـه او دلر ګیو دپرو سس دصنا یعو د تصدی اساسنامه برابر ه‌او دوزیرا نو شو را ته‌دی وړاندی کړی .

دوزیرا نو شورا داوبو او بر یښنا وزارت ته لار ښو دنه وکړه چی شپاړس میلیو نه او پنځه سوه زره افغانی دی دپنج او آمـــو دغاړ و دتڼینګښت دپروژی ددرا فتو نو بیـــه له خپلو نو رو پروژو څخه تمو یل کړی.

دتیلو ملی مو سسی دشمال حوزی دتیلو او ګاز دجیا لوجی او اکتشا فی او دجیا لوجی دسروی په چاروکی دشوروی اتحاد دماهرانو دخدمت دتړون په باب دکا نو او اوصنا یعـــو دوزارت پیشنهاد تصو یب شو .

دکانو او صنا یعو وزارت په پیشنهاددعرادو او ماشین آلاتو دسو ون دموارد و د مقـــرری اته څلو یښتمه ماده تعد یل شوه .

په پای کی داطلاعات اوکلتور دوزارتد تشکیل تعدیل چی راډیو تلویزیــــون ور پوری تړل شوی دی منظور شو .

۲-۱۰-۵۷

دافغانستان دخلکو ددمــو کــراتیک گــونــد دمرکزی کمیتی داراله‌نشا‌آ خبر راکوی چـــی دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گو نددمرکزی کمیتی دعمومی منشی دافغانستان ددمو کراتیک جمهور یت دانقلا بی شورا درئیس اوصدراعظم نورمحمد تره کی په مشری دافغا نستان‌دخلکو ددمو کراتیک گو ند دمرکزی کمیتی دسیاسی بورو غو نډ ه‌دخلکو په کور کی وشوه

دغو نډی په پیل کی‌دافغانستان‌ددموکراتیک جمهوریت دانقلا بی شورا داتمی گنی پـــــه فرمان پوری مربوط دلو مړی گنی مقر رات وڅیړل شول او دتا ئید وړو گرځیدل .

ور پسی دافغا نستان دخلکو ددمو کراتیک گو ند دلو مړی کنگری دڅوار لسمی کالیزی دنما نځنی په باب چی د ۱۳۵۷ کال دجدی دیوو لسمی سره سم چی د ۱۹۷۹ کال‌دجنوری له لومړی نیټی سره سمون خوری خبری‌وشوی او پر یکړه وشوه چی دافغا نستان دخلکـــــو ددموکراتیک گوند دلومړی کنگری څوار - لسمه کا لیزه دی په دی منا سبت دمر کزی کمیتی دعمومی منشی دستر مشر دگو نـــــد دپیاوړی بنسټ ایښو دونکی دپیغا م پـــــه خپرولو سره دگو ندی کمیټو له خوا پـــــه ټول هیوادکی په میټنگو نو او کنفرانسونـــو سره په پر تمینه تو گه ونما نځل شی.

۳-۱۰-۵۷

دخلکو دستر مشر دافغانستان دخلکـــــو ددمو کراتیک گو ند دمرکزی کمیتی دعمومی منشی دافغانستان‌ددموکراتیک‌جمهوریت‌دانقلابی شو را درئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی په مشری دوزیرا نو شورا دخلکو په کور کی غونډه وکړه .

دغو نډی په سر کی دافغانستان دخلکـــــو ددموکراتیک گو ند دمرکزی کمیتی عمومـــی منشی دانقلا بی شو را رئیس او صد را عظم دکونیو حالاتو اونړی والومسئلوپه باره کـــی دوزیرانو شوراته لنډ رپوټ وړاندی کړ .

ورپسی د وزارتونو او ادارو په پیشنهاد - ونو با ندی خبری اتری پیل شوی .له هغـــو څخه په دغو موضو ع گا نو پریکړی‌وشوی.

دسو داگری دوزارت په پیشنهاد د هـــرات دمیوی او سبو شرکت دکر نی اوځمکـــــو داصلا حا تو له‌وزارت څخه بیل او دسوداگری په وزارت پوری وتړل شو . اود ۱۹۷۹ کــال لپاره دافغا نستان اوچکوسلواکیادسوسیالیستی جمهوریت تر مینځ دسوداگری دما لو نـــو درا کړی ور کړی پرو تو کول منظور شو.

دکر نی او ځمکو داصلا حاتو وزارت دځمکی په باب دافغانستان ددمو کراتیک جمهور یت دانقلا بی شورا داتمی گنی فر مان دلو مړی گنی مقررات دوزیرانو شوراته وړا ندی کړل چی په هغو باندی له خبر واتر و وروستـــــه دغه مقررات منظور اولار ښو دله وشوه چی‌په رسمی جر یده کی دی له خپر ید و وروسته نافذ وبلل شی .

دکر نی او ځمکو داصلا حا تو دوزارت‌په پیشنهاد دوزیرا نو شورا پر یکړه وکړه دهغو نا قلینو دځمکی بیه چی دځمکو سا حه یـــی

له پنځه جریبه لو مړی درجې ځمکې یادهغی له معادل ځخه زیا ته نه شی او متصرف پخپله د بز گر په تو گه په ځمکه کی کاروکړی دپخوانی ویشل شوی ځمکی دپا تی بیو له ور کړی ځخه دی معاف شی .

دکو رنیو چارو دوزارت په پیشنهاد پریکړه وشوه چی دځر خی دپله رو غتون دی دخلکو دخارندوی د خد متو نو په آمریت پوری وتړل شی او لار ښوو دنه وشوه چی دښار والیو مربو طی سینما گا نی دی بیر ته پخپله ښار والیو ته ور کړی شی چی داطلا عا تو او کلتور دوزارت له پا لیسی سره سم فعا لیت وکړی البته دفلمونو راوړل داطلا عاتو اوکلتور دوزارت په انحصار کی دی .

دوز یرانو شورا دعامی روغتیا وزارت ته لار ښوو ونه وکړه چی دوزیراکبر خان‌روغتون دمر کزی تو دوخی په فعا لو لو کی دی‌چی دو خت په تیر یدو سره پرز واو دځینو سامان آلاتو نوی کولو ته اړه لری اقدام وکړی‌او دهغی لگښتو نه‌دی له خپلو پر مختیا یی پروژو ځخه تمو یل کړی .

دمخا براتو وزارت پخوا دخپلو پر مختیایی پروژو دسا مان آلاتو دپیر ودلو لپاره له یوی جا پا نی کمپنی ځخه آفر اخیستی وو،دوز یرانو شورا لار ښوو ونه وکړه چی دغه سا مان آلات دی له دغی کمپنی ځخه وپیر ودل شی.

دوز یرانو شورا دکا نو او صنا یعو وزارت ته لار ښوو ونه وکړه چی دافغا ن تر کا ڼی دتیر و کلو نو گټه دی دهغی دزیاتی پیاوړتیا لپاره ددغی تصدی پر پا نگه ورزیا ته شی.

سر بیره پردی دکا نو او صنا یعو دوزارت‌په پیشنهاد پر یکړه وشوه چی دمزار شر یف دسر ی دفا بریکی داړ تیا وړ دوه ملیو نه او شپږ‌لکه کځوړی دی له یوی انگلیسی‌کمپنی ځخه چی دمخه یی ټیټ آفر وړاندی کړی وواخیستلی شی .

دکانو او صنا یعو دوزارت په‌پیشنهادپریکړه و شوه چی دسو داگری وزارت دی په را تلو نکی کال کی له بهر ځخه سمنټ‌راوړی اوو دی ویشی .

داویو او بر ښنا دوزارت دغو ښتنی له مخی پر یکړه وشوه چی دسلما دزیر می دبند دپروژی دکار گرانو او مو ظفینو لپاره دی په سلو کی دیر ش سیمه ایز معاش ور کړی شی .

په پای کی دتلو یز یون د ستگاه‌دسمبالو لواو بشپړو لو په غرض داطلا عا تو اوکلتور وزارت په پیشنهاد دو زیرانو شورا پر یکړه وکړه چی دتلو یزیون ضروری وسا یل دی ددفتری او اداری پړاوو نو له تیر ولو پر ته وپیرودل شی .

١٠-١٠-٥٧

دافغانستان دخلکو دښو ونکی ،دافغانستان دمو کراتیك جمهوریت دانقلا بی شورا درئیس او صد راعظم نور محمد تره‌کی په مشری دوزیرانو شورا دخلکو په کور کی غو نډه وکړه .

دغو نډی په پیل کی زمو ږ ستر مشر دوزیرا نو شوراته دهیواد دکور نی حا لت او بین المللی حالاتو په باب لنډی ځرگندونی‌وړا ندی کړی .

ور پسی دبیلا بیلو مو ضو عگا نو پــه باب چی ددا یرو او مو ســو لخوا پیشنهاد شوی وی خبری پیل شوی او له هغو څخــه ددغو موضوعگـانو په باب پریکړی وشوی .

دسوداگری دوزارت په پیشنهاد چـــــی دټلو یز یون راوړل ددولت په انحصار کړدی دسوداگری دوزارت دبهر نیو سو داگـــری ریاست ته وظیفی ورکړی شوه چی دټلویزیون په راوړلو او ویشلو اقدام وکړ ی .

سره بیره په دی دسو داگری وزارت دمځکنی ترانسپورتی وسایطو دگرځیدواوفعالیت دتنظیم قانون دوزیرانو شو راته وړاندی کړ چـــی دغه قانون په یوپنځوس مادوکی منظور شو.

دوزیرا نو شورا دکا نواو صنا یعو دوزارت په‌پیشنهادپریکړه وکړه‌چی وزارتونه دی خپل ټول داغمه فلزی مواد دکا نواو صنا یعــو وزارت ته وسپاری اودغه وزارت دی دغــــه شان مواد له تصد یو او آزاد و پلوور نکو څخه په منا سبو بیو وپیر وی او په منا سب ځای کی دی دهغو دسا تنی تر تیبات ونیسی چی دو یلی کولو او حلاجی په بټی کی چـــی په نژدی را تلو نکی وخت کی پیر ودل‌کیږی او درو ل کیږی له دغو موادو څخه کـــار واخیستل شی .

سر بیره پردی یو لړ هغه تړ و نو نه‌چی پخوا دکا نو او صنا یعو وزارت دخپلو مربوط تصدیو داړتیا وړ سامان آلاتــو دپیـرود ــ لو په باب له دوستو هیواد ونو سره لاس‌لیك کړی وو دشو روی ما هرانو دخد مت دمودی داو زدیدوله ټرون سره هوزیرانو دشو را پرو نی غو نډه کی منظور شول .

دلوړ و ښو ونو دوزارت په پیشنهاد پریکړه وشوه چی دننگر هار پو هنتون تشکیل او بودجه دی دکابل پو هنتون دتشکیل اوبودجی له بر خی څخه جلا اود ۱۳۵۸ کال له پیـل څخه دی دلوړ و ښو نو دوزارت دتشکیل او بود جی دیوی برخی په توگه ددوهم وا حـد په ډول وپیژ ندل شی .

دوزیرانو شورا دافغانستان بانك تــه لار ښو ونه وکړه چی لس ملیو نه شپږ سوه اواتیازره ډالره دی دپورپه ډول د (ډی، سی) نوی الو تکی دپیر ود لو دتمو یل لپـاره دآریا نا هوا یی شرکت ته ور کړی .

دوزیرانو دشورا په غونډه کی د ښوونـی او روزنی دسا ختما نی مو سسی له‌بود جی څخه دسلو ملیو نو افغا نیو مالی تعد یــل منظور شو .

سر بیره پردی دما لیی اوپلان جوړو لـو وزارتونو ته لارښوونه وشوه چی دکورنیــو چارو دوزارت د ضـــرورت وړ پیســی پـه تعد یلی تو گه له پر مختیا یی بود جـــی څخه ور کړی .

دکو رنیو چا رو وزارت دهو یت دتذکری نوی نمونه دوزیرانو شو راته وړاندی کړه‌چی دغه تذکره منظور او پریکړه وشوه چـــی دهغی له مخی دی چاپ او وویشلی شی .

دعد لیی وزارت د ۱۳۳۳ کال دخپری‌شوی عسکری مکلفیت داصو لنا می دشپاړ سمـی مادی دپنځمی فقر ی دملا حظا تو دخلور رم بند د الف او ب جزء دتعدیل مسوده دوزیرانو شوراته وړا ندی کړه چی دغه مسوده لــــه غور ورو سته تصو یب او لارښو ونه وشوه

چې دافغانستان دموکراتیك جمهوریت دانقلابي شورا له تائید اوپه رسمي جریده کې له خپریدو وروسته دې نافذه وبلله شي.

داوبو او برښنا دوزارت په غونډه کې چې دبرښنا مو سسه دې لو مړۍ خپل د۱۳۵٦ کال بیلانس بشپړ او له دې وروسته دې دهغې مو سسې دتیر و کلو نو بیلانس بشپړکړي او دمالیې وزارت ته دې یې وسپاري پریکړه وشوه چې ټول هغه وزار تو نه ، تصدۍاو مو سسې چې دخپلو تیرو کلو نو بیلانسو نه یې ندي بشپړ کړي تر ټو لو دمخه خپل د۱۳۵٦او ۱۳۵۷ کلو نو بیلا نسو نه بشپړاوله هغې وروسته دې دتیرو کـلونو بیلانسونه ترتیب او دمالیې وزارت ته وسپاري .

په پای کې دفوایدعامې دوزارت پـه پیشنهاد لار ښوونه وشوه چې دترافیکو دزیاتوالي اودرنښت له امله دې دکابل پروان اوسنۍ سړك له یوې خوانه پراخه او دغه واټ دې سور ور شي .

۱٦ـ۱۰ـ۵۷

دافغا نستان دخلکو د دموکراتیك گوند دمرکزي کمیټې دارالانشاء خبر راکوي چې دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گو نـد دمرکزي کمیټې دعمومي منشي دافغا نستان ددموکراتیك جمهو ریت دانقلابي شـــورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کي پــه مشرۍ دمرکزي کمیټې سیاسي بو روغونډه دخلکوپه کورکې جوړه شوه، لومړۍ دکورنیو دسیمې او دنړۍ دحالاتو په باره کې دخلکو دستر مشراوپیاوړي ښوونکي دمرکزي کمیټې دعمومي منشي رپوټ و اور یدل شو اودتائید وړ وگر ځید .

ور پسې دگو ند دسا زماني چارو او دهغو دښه سمون په باب خبري وشـــوې او لازم تصمیمو نه ونیول شول .

۱۷ـ۱۰ـ۵۷

دافغانستان دخلکو دستر لار ښود ، اوانقلابي قهرمان ،دافغانستان ددمو کرا تیك جمهوریت دانقلابي شورا درئیس او صد راعظم نورمحمدـ تره کي په مشر ی ،دوزیرا نو دشورا غو نډه دخلکو په کورکې جوړه شوه دغو نـډې په پیل کې دافغانستان دخلکو دد مو کراتیك گو ند دمر کزي کمیټې عمومي منشي ،دانقلابي شو را رئیس اوصد راعظم نور محمد تره کي دوزیرانو شو راته دکو رنیو حالا تو او بین ـ المللي مسا لو په باب لنډ رپوټ وړا نـدې کړ.

ور پسې دښوو نې او روزنې وزیر پوهنوال ډاکتر عبدالرشید جلیلي دویتنام سوسیالیستي جمهوریت او دشوروي جمهوریتو نو اتحادته دخپل ورو ستي سفر په باره کې توضیحات ور کړل چې دمینې وړ وگر ځیدل .

ور پسې دوزیرانو شورا دوزار تو نـــو او مو سسو په پیشنهاد نو باندې خپلې خبـــرې پیل کړې او ددغو موضو عگا نو په باره کې پر یکړې وشوې .

دسوداگرۍ وزارت په پیشنهاد دواټ دترانسپورت دتصدۍ اسا سنامه په دوه دیر شو مادوکې منظور شوه .

دکا نو او صنا یعو وزارت په غو نډه کې دمو سسې او دایرې دي

دجنګلك په فابريکه کی له جوړو شو يو واټر پمپو نو څخه کار واخلی دغه راز له شو روی اتحاد څخه دسری او بر ښنا دکمياوی موادو د پيرودنی تړون اوله بهر نيو کمپنيو څخه دکند هار دسپنسينو نسا جی درنګو نو ،کيمياوی او کو مکی مواد وپيرودل تصو يب شول .

دشاکر دچينی جوړولو دپه تپه دريدلی فا بر يکی دخا وندانو په غو ښتنه دکا نو او صنا يعو وزارت ته لار ښو و نه‌وشوه چی دغه په تپه دريد لی فابر يکه وپير ی او فعا له دی کړی .

سر بيره په دی له خصو صی تشبثا تو څخه ددولت دملاتړپه غرض دکانو او صنايعو وزارت ته لار ښوونه وشوه چی دجبل السراج دسمنتو دفابريکی دپراختيا په خاطر زياته همکاری وکړی .

دشرکت يا نورو مو سسو دما مو رينو درتبو دتعد يل په باره کی ددولت دماموريتو دقانون دريمه ګڼه ضميمه تائيد او دورو - ستيو پړ اوو نو دتير ولو په غرض انقلا بی شورا ته وړاندی شو ه .

په پای کی دفوايد عامی وزارت پيشنهادوکړ چی دهغه وزارت دښار ی او تعميراتی پروژو اداره دی دښاری او تعميراتی پروژودانستيتوت په تو ګه دانتفا عی تصدی په بڼه بد له شی او فعا ليت دی وکړی چی دغه‌پيشنهاد دوزيرا نو دشور اله خواو منل شو .

۱۹-۱۰-۵۷

دافغانستان دخلکو دستر مشر اوپياوړی ښو ونکی ، دافغانستان دخلکو دد موکراتيك ګوند دمر کزی کميتی دعمومی منشی دافغا نستان ددمو کراتيك جمهور يت دانقلابی شورا درئيس او صد راعظم نور محمد تره کی په مشر ی دوزيرا نو دشورا فوق العاده غونډه دخلکو په کور کی جوړه شوه دافغا نستان ددمو کراتيك جمهور يت دوزيرانو دشو راپه دی فوق العاده غونډه کی دايران په کور نيو جر يا نا تو خبری وشو ی.

د افغانستان د دموکراتيك جمهوريت دوزيرانوشورا دايران‌کورنی وروستی جريانات دهر اړخيزو خبرو او تحليل لاندی ونيول‌او دايران دورو نو خلکو دستو نزو په وړاندی يی خپله ژوره اند يښنه څر ګنده کړه .

دوزيرانو شو را دايران په کور نيوچاروکی دلاس وهنی له امله دهغه دخلکو ددښمنانو په هلو ځلو اند يښنه څر ګنده کړه او دايران دخلکو په کور نيو چا روکی چی په خپله په هغوی پوری اړه لری دپرديو هر ډول لاس وهنه په کلکه محکو موی .

دافغا نستان ددمو کراتيك جمهور يت دوزيرانو شو را د ورو ر هيواد ايران کورنی جريانات په غور سره څاری او دايران‌دخلکو دنيکمر غی او دملی حا کميت دټينګښت هيله لری .

دوزيرا نو شورا دافغا نستان ددمو کراتيك جمهور يت دانقلا بی وظيفو داسا سی کرښو او په سيمه او نړی کی له سو لی سره دعلا قمندی له مخی دايران دخلکو په حقو قو با ندی هر ډول تير ی او دايرانی ورو نو په کور نيو چا روکی لاس وهنه دايران‌دخلکو

دگټو ضد او دسیمې او نړۍ دسو لې په خلاف اقدام په تو گه څیړی .

۲۴-۱۰-۵۷

دخلکو دستر لار ښوددافغانستان‌ددموکراتیک جمهوریت دانقلا بی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی په مشری دوزیرا نو شورا دخلکو په کور کی غو نډه وکړه .

دغو نډی په پیل کی دافغانستان دخلکو ددمو کراتیک گو نډ دمر کزی کمیټی عمومی منشی نورمحمد تره کی دهیواد دکور نیو حالاتو او نړیوالو مسا لو په باب دوزیرانو شو را ته لنډ معلو مات وړاندی کړل .وروسته دوزیرانو شو را دوزار تو نو او دایر وپر پیشنهاد ونو خبری وکړی .

لومړی دما لیی وزیر عبد الکریم میثاق ددولت د ۱۳۵۸ کال دعواید واو لگښتو نو دبود جی په باب مفصل تو ضیحات وړاندی کړل چی په دی برخه کی دوز یرا نو شورا دصد راعظم دمر ستیال او دبهر نیو چارو دوزیر حفیظ‌الله امین ، دعامی رو غتیاد وزیر او دپلان جوړولو دچارو وزارت دوکیل ډا کتر شاه ولی او دما لیی دوزیر عبدالکریم میثاق په گډون یو کمیسیون په هغی باندی دغور او څیړنی له پاره وټا که او سپار ښتنه یی وکړه چی دغه کمیسیون دی خپل نظر دوزیرانو شورا ته وړاندی کړی .

دوزیرانو شورا دعواید عامی دوزارتد پیشنهاد له مخی پر یکړه وکړه چی دلو یو واټو نو له منځنی برخی څخه دی دواړه خوا وی ددیر شو متر وپه واټن دواټ دحر یم په توگه ددولت ملکیت وپیژند ل شی.

داطلا عا تو او کلتور دوزارت دپیشنهاد له مخی د دولتی مطبعو دزنگوگرافی او دافغانستان دخلکو دراډیو تلو یز یون دعاجل ضرورت وړ سا مان آلاتو خر یداری منظوره شو ه .

دښوونی اوروزنی دوزارت پیشنهاد چی دهیواد دفرهنگی چارودعمرانی کارونودتکمیل لپاره دی دښوونی او روزنی ساختمانی دستگاه په دغه وزارت پوری وتړله شی دوزیرانوشورا دتائید وړوگرزید، دکانو او صنایعو دوزارت په پیشنهاد دکارپه یو لړبین المللی مقاوله نامو کی دافغا نستان الحاق تصو یب شو .

۳۰ر۱۰ر۱۳۵۷

دافغا نستان دخلکو دډمو کراتیك گوند دمرکزی کمیټی دار لانشا خبر را کوی چی دافغا نستان دخلکو دډموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی او دافغانستان ددموکراتیك جمهور یت دانقلا بی شو را درئیس او صدرا عظم نورمحمد تره کی په مشری دمرکزی کمیټی دسیا سی بورو غونډه دخلکو په کور کی جوړه شو ه .

لو مړی دخلکو ستر مشر او لار ښودسیاسی بورو ته دکور نیو او بین المللی حالا تو په باب لنډ رپوټ وړاندی کړ .

ورو سته بیا سیا سی بورو دا فغا نستان دد مو کرا تیك جمهور یت په نوی پنځه کلن پلان باندی خبری وکړی او په دی برخه کی لازم تصمیمونه ونیول شول .

دغه را ز سیا سی بورو دځمکی داصلاحاتو دپرو گرام په تطبیق باندی بحث وکړ اوداسی

یې وخیږ له چې دانقلاب د شورا داتمی ګڼې فرمان له مخې دهغه کار دافغا نستان دزیـار کښو بزګرانو په فعال ګډون په مطلو بـه چټکتیا سره پرمخ ځي .

په پای کې دګو ند په تشکیلاتـــــي موضوع ګا نو خبری وشوی او مسوو لـــــو ګوندی مراجعه ته لازمی لارښوونې صادرې شوې.

۱۱/۱/۱۳۵۷

زموږ دپیا وړی مشر دانقلاب د شورا درئیس او صد را عظم نورمحمد تره کی په مشــــرې دوزیرا نو شورا دخلکو په کور کې غونډه وکړه .

لومړی زموږ انقلابی لارښود دافغــانستان دخلکو دد موکراتیک ګو ند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلاب د شورا رئیس اوصدراعظم نور محمد تره کی دکور نیو چارو اوبین المللی مسالو په باب دوزیرانو شوراته لنډ معلومات ور کړل .

ور پسې دعامې روغتیا وزیر اوډپلان جوړولو دچارو دوزارت وکیل ډا کتر شا ولی دهیواد دپنځه کلن پلان په باب دوزیرانو شو راته ځر ګندونې وړاندې کړې .

دکرنې او دځمکو داصلا حا تو وزیرډاکتر صا لح محمد زیری دځمکې په باب دافغانستان دد مو کراتیک جمهوریت دانقلاب د شورا داتمی ګڼې فرمان دتطبیق په باب معلومات ور کړل وې ویل چې :

تراوسه پورې نژدې نهو زرو بې ځمکـــو بزګرو کورنیو ځمکې اخیستې دی اوبې ځمکو بزګروته دوړیاځمکې دویشلو لــړی په ځینو ولایاتو کې روانه ده .

ور پسې دسوداګرې وزیر عبدالقدو س غور بندی چې د (۷۷) ډلې دآسیا یـــــې غړ یو دسو داګرې دوزیرانو په غو نډه کې دانکتا دپه جرګه کې دواحد عمل دسترا تیژې او پرو ګرام دغور ه کولو په غرض چـــــې تیا کل شویده دمې په میاشت کې دفلپیـــن په مرکز مانیلا کې وشې دګډون نه ورو سته هیواد ته راغی دوزیرانو شوراته دخپل سفـر ریوټ وړا ندې کړ .

دوزیرانو شو رادد ایرو او وزارتو نو پـــه پیشنهاد ونو باندې دخبرو په پیل کې دافغان ملی بیمې قانون چې دعد لیې وزارت پـــــه همکاری دمالیې وزارت له خـوا تـرتیب شوی تر ځیړنې لاندې ونیو هغه یې تصویب او لار ښودنه یې وکړ چې دغه قانو ن دورو ستنیو پړاونو دتیرولو لپاره دافغانستان دد موکراتیک جمهوریت انقلا بې شو راته وړاندې شي .

بر سیره پردې دوزیرانو شورا دما لیـــې وزارت دپیشنهاد له مخې پر یکړه وکړه چې یو پر بل باندې ددولت دتصد یو او دایـــرو طلبات دې دغه مو سسې او دایرې دد خـــل اوخــرج پــه تــوګــه معامــلــه اوتصفیه کړي .

په دې برخه کې لارښو ونه وشو ه چـــې مو سسې ،تصدی او وزارتو نه دې په کلکه پا ملر نه ولرې چې ددوی حسا بو نه پــــه راتلو نـکې کـې لکه دپـخوا په ځیر بـــې تصفیې پا تې نه شي .

دښو ونې او روزنې دوزارت په پیشنهـــاد دخیر خانې مینې په پروژه کې دوړ کتـــون

دودانی لپاره دیوی اندازی پیسو تعد یـــل منظور شو .

۱۳۵۷ر۱۱ر۸

زمونږ دستر اتل او انقلا بی مشر دانقلابی شورا درئیس اوصدراعظم نور محمد تره‌کــی په مشری دوزیرانو شورا دخلکو په کور کی غو نډه وکړه .

دغو نډی په پیل کی دخلکو ستر مشــر دافغانستان دخلکو دد موکرا تیك گو نـد دمر کزی کمیټی عمومی منشی دا فغا نستان ددمو کراتیك جمهور یت دانقلا بی شـــورا رئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی دوزیرانو شو راته دکور نیو مسا لو او بین المللـــی موضوع گانوپه باب لنډ توضیحات ورکړل .

ورپسی دلو ړو ښو ونو وزیر پو هانــد محمود سو ما دالمان دموکراتیك جمهو ریت ته دخپل وروستی سفر په باب دوزیرا نـــو شوراته لنډ رپوټ وړاندی کړ .

وروسته بیا دوزیرا نو شو رادوزار تو نو او دایرو د پیشنهاد ونو په باب خپلی خبری پیل کړی اودغه پریکړی یی صادری کــړی

دلر گیو دصنایعو او پرو سس دتصدی اسا سنا مه چی دکرنی او ځمکی اصلا حاتو دوزارت له خوا په ۴۳ ما دوکی تر تیــب او وړاندی شوی وه دوزیرانو دشورا لخـــوا تا ئید شو ه.

دپلان جوړولو دچارودوزارت په‌پیشنهاد کوچنیو صنا یعو دمقر ری دشپږمی مادی تعد یـــل او دافغا نستان بانك له خوا دکابل دسپینسیو ور یشلو دفا بر یکی دما شین آلا تـــو دپور په سلو کی اتیا تضمین تصو یب شو.

دغیر دولتی مطبعو دبیی دور کولو په باب داطلاعاتواو کلتوردوزارت په‌پیشنهادخبری وشوی پر یکړه شو ه چی دد غو مطبعو بیه دی‌ددولتی مطبعو له عایدا تو څخه ور کړ له شی اوپه بیلا نس کی دی حسا ب شی .

دکا بل دپا یو جوړولو دفا بریکی داړتیا وړ سا مان آلاتو دپیر ود لو او دپلخمـــری دپا یو جو ړولو ددستگاه دپیرود لو په برخه کی داوبـــو اوبریښنا دوزارت پیشنهادونـــه منظو ر شول او لار ښو ونه وشوه چی ددغو دستگاه وو سامان آلات دی له المانی کمپنیو څخه وپیر ودل شی .

په پای کی دکا نو او صنا یعو دوزارت په غوښتنه پریکړه وشوه چی دا غمه اووسپینیز موادی تر نورو شپږ ومیا شتو پوری پـــه مر بوطو مو سسو کی وسا تل شی .

۱۳۵۷ر۱۱ر۱٤

دافغانستان د خلکو دد موکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دارا لانشاء خبر را کـــوی چی دافغا نستان دخلکو دد موکرا تیك گوند دمرکز ی کمیټی دعمومی منشی دافغا نستـان ددموکراتیك جمهوریت دانقلا بی شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی په مشـــری دسیاسی بورو غونډه دخلکو په کور کـــی جوړه شوه .

لومړی دخلکو پیا وړی مشر او لار ښـــود دکورنیو او بین المللی مسالو په بـــا ب لنډ رپوټ سیا سی بو رو ته وړا ندی کړ .

ور پسی دافغا نستان دخلکو دد مو کراتیك گوند دمر کزی کمیټی سیا سی بورو پـــه مالی موضوع گانو اودافغانستان ددموکراتیك

جمهوریت دنوی پنځه کلن پلان په ارتباط ددولت دعواید ود زیاتوالی په لارو چارو خبری وکړی او لازم تصمیمو نه یی ونیول.
دغه راز سیاسی بوروداففانستانددموکراتیک جمهوریت دنوی پنځه کلن په موضوعګانو خبری وکړی او په دی برخه کی یی لازم تصمیمو نه ونیول .
دغو ناستو په پای کی دثور دستر او زغور نده انقلاب دکالیزی دلو مړی جشن په منا سبت دسیاسی بورو لار ښوونی دسیاسی بورو له خوا تصو یب شوی .

۱۳۵۷/۱۱/۱۵

دوزیرا نو شو را دخلکو دستر ښوونکی دافغا نستان دخلکو دد موکراتیک ګوند دمرکزی کمیتی دعمومی منشی دانقلابی شو را درئیس او صد راعظم نور محمد تره‌کی په‌مشری دخلکو په کور کی غو نډه وکړه.
دغو ناستی په پیل کی دخلکو ستر مشر دافغا نستان دخلکو ددمو کراتیک ګو ند دمرکزی‌کمیتی عمومی‌منشی‌دانقلابی شورارئیس او صد را عظم نورمحمد تره کی دوزیرانو شو راته دهیواد دکور نیو او بین‌المللی حالاتو په باره کی لنډ معلو مات ورکړل.
وروسته دکانو اوصنایعو وزیر دیپلوم‌انجینر محمد اسما عیل دانش تا یلند ته دخپل سفر رپوټ چی په بنکاک کی دا سکا پ دسیمی دهیواد ونو دصنایعو دوزیرا نو داد هاك دپلی په جرګه‌کی ګډون کړی وو دوزیرا نو شورا ته وړاندی کړ .
ور پسی دوزیرا نو شورا دوز ارتو او دایرو په پیشنهاد دونو باندی خبری وکړی
دد غو موضوع ګا نو په باب یی پر یکړی صادر ی کړی .
دلوړو‌ښوونو دوزارت دپیشنهاد له مخی سپار ښت وشو چی دهما مطبعی بیه دی دهغی خا وند ته ور کړل شی .
له شوروی اتحاد سره دبر یښنا رسو لو دسکیم دپروژی جوړولو تکمیلی تړون چی داوبو او بر یښنا وزارت له خوا وړاندی شوی وو منظو ر شو .
سربیره پردی داوبو او بر یښنا وزارت‌ته سپا رښت وشو چی دمنځنیو او کو چنیو پروژود سروی‌او ډیز این په پروژه کی‌زیاته برخه واخلی ، ددغی پروژی مالی بنسټ پیاوړی کړی .
په پای کی داطلا عات او کلتور دوزارت پیشنهاد چی دچا پان دګو شوی کمپنی‌څخه دخلکو دتلو یزیون دسملا سی ضرورت وړ سا مان واخیستل شی دوزیرانو دشو را لـه خواو منل شو .

۱۳۵۷/۱۱/۲۲

دافغانستان دخلکو دستر مشر دافغانستان دخلکو دد مو کراتیك ګوند دمرکزی کمیتی دعمومی‌منشی دانقلابی شورادرئیس اوصدراعظم نورمحمد تره کی په مشری دوزیرا نو شورا دخلکو په کورکی غو نډه وکړه .
دغو ناستی په پیل کی دخلکو پیاوړی‌مشر دافغانستان دخلکو دد موکراتیك ګو نـد دمر کزی کمیتی عمومی منشی دانقلا بی شو را رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دکورنیو حالاتو او بین المللی مسا لو په‌باب دوزیرانو شوراته لنډ معلو مات ورکړل .

وربسی دکر ئی او دمحکمو داصلا حا تـو کړد باختر آژانس او دکوریا دمرکزی خبری وزیر ډاکتر صالح محمد زیری په مستحقو بز گرانو باندی دځمکی دویش په باب چی په بری سره روان دی دوزیرانو شوراته رپوټ ورکړوی ویل، په بی ځمکواوبې ځمکی بزگرانو باندی دځمکی دویش له پیل نه د ۱۳۵۷ کال دد لوی تر ۲۱ نیټی پوری په دیرش زره یوسلو څلورویشتو بزگرو کورنیو باندی دری سـوه اته زره اووه سوه اوئهه جریبه ځمکـه پـه وړیا توگه ویشله شویده .

ورو سته دوزیرا نو شو را په آجندا کی دشا ملو مو ضو عگا نو په باب خپلی خبـری پیل کړی او ددغو مسا لو په باب یی پریکړه صادره کړه .

دمالیی دوزارت په پیشنهادلاربنوونه وشوه چی دما لیی وزارت دی دبر یښنا بسو نو پروژه پرانیزی او ددغی عام المنفعه پروژی دسبسا یدی په برخه کی دی اقدام وکړ ی .

سر بیره پـه دی دنـورو ادارو پـه گـډون دبریښنا بسونـو د پرو ژی ددوهـم پړاو پـه بـرخـه کـی څیړنـه وکړی .

دوردگو او غزنی دکلیو دپرمختیا دپـرو ځونو لرونکی پروژه چی دبین المللی موسسو په مر سته تمو یلیږی دپلان جوړولو دچارو دوزارت دپیشنهاد له مخی منظور شو ه.

داطلا عات او کلتور دوزارت دغو ښتنی له امله دسو ئی له کمپنی څخه دهغه دآفر لـه مخی چی وړاندی کړی یی دی دافغا نستان دخلکو دتلو یزیون دد ستگاه دسملا سـی اړتیا ؤ سا مان آلاتو پیر ودل منظور شول. سر بیره پردی دوزیرا نو دشورا په غونډه آژانس ترمنځ دخبرو نو درا کړی ور کړی او گډی همکاری تړون منظور شو .

دسینما گا نو دتیرو لگښتو نو په بر خه کی د وزیرا نو شورا لار ښوو نه وکړه چی مو ضوع دی له حسا بی نظـــره دصدارت دمحاسباتو ددیوان او دمالیی دوزارت د یوه حسابی هیات له خــوا دحساب داصولـو پـه بنسټ وڅیړله شی او تصفیه دی شی پدی برخه کی داطلاعات او کلتور وزارت مکلف کړای شو چی په راتلو نکی کی دسینما گانو عوا ید او ددولت نور عایدات ددولت دوار داتو په حساب تحو یل کړی .

دښوو نی او روزنی دوزارت دپیشنهاد لـــه مخی د ۱۹۷۹ او ۱۹۸۰ کلو نو دپاره دیونسکو په مو سسه کی دافغا نستان ونډه تا ئیـد شوه او لار ښو ونه وشو ه چی دغـــــه ونډه دی ورکړی شی .

په پای کی داوبو او بر یښنـــا دوزارت دپیشنهاد له مخی دخیا بان په سیمه کـــی دهغه وزارت دو دانی په برخه کی کا بـل ښار والی ته لار ښو ونه وشو چی دغه ځمکه دی دښاروالی په ذمه دبر یښنا دمحصـــول دغو ښتنی په بدل کی داوبو او بر یښنـــا دوزارت په واک کی ورکړی خپل حسا بو نه دی تصفیه کړی .

۱۳۵۷،۱۱،۲۸

دافغا نستان دخلکو دد موکرا تیک گو ند دمرکزی کمیټی دارا لانشاء خبر راکوی چی دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دافغانستان ددموکراتیک جمهور یت دانقلا بی شورا درئیس او صدراعظم

نورمحمد تره‌کی په مشری دمرکزی کمیټې دسیا سی بورو غونډه دخلکو په کور کې وشوه .

لو مړ ی دخلکو پیاوړی لار ښود او مشر دکورنیو مسئلو او بین المللی حا لاتو په باب سیا سی بورو ته لنډ معلو مات‌ورکړل.

ور پسې په هیواد کی دځمکو اصلا حا تو دکار دپر مختګ په باب خبری و شوی او وپتییل شوه چی دهیواد په یو شمیر ولایاتوکی دانقلا بی شورا داتمی ګڼی فرمان له تطبیق څخه دلاس ته راغلو تجر بوپه رڼا کې دی کم ځمکو او بی ځمکو بز ګرو ته‌دځمکی دویش کار چټک شی .

په پای کی دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند اصلی او آزما یښی غړیو ته دګوند دغړیتوب دکارت دویشلو په باب خبری وشوی او لازم تصمیمو نه ونیول شول .

۱۳۵۷/۱۱/۲۹

دخلکو دستر مشر دافغا نستان دخلکو دد مو کراتیک ګوند دمرکزی کمیټې دعمومی منشی دانقلا بی شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی په مشری دوزیرا نو شورا دخلکو په کور کی غونډه وکړه .

لو مړی دخلکو ویاړ لی لارښو د دافغانستان دخلکو دد موکراتیک ګوند دمرکزی کمیټې عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دکور نیو حالا تو اوبین المللی مسا لو په باب دوزیرانو شو راته لنډ معلو مات ورکړل .

ورپسې دوزیرانو شورا دوزارتونو او دایرو په پیشنهادونو باندی دخبرو په ترڅ کی ددغو مسا لو په باب پریکړی وکړی .

دسوداګری دوزارت د پیشنهاد له مخې دترا نسپور تی وړلو را وړلو دکرا یې دسنجولو لایحه دعمومی ترانسپورت دکنترولرانو نوی تشکیل او بود جی سره تصو یب شوه ،د چکو سواکیا له دولت سره د هرات دحرارتی بریښنا دد ستګاه تړون چې پخوا دا فغا نستان او چکو سلوا کیا تر منځ لاس لیک‌شوی ؤ او دپروژی دجوړ ولو چاری یی په نږدی وخت کی پیل کیږی د اوبو او بر یښنا دوزارت دپیشنهاد له مخی منظور شو .

داطلا عا تو او کلتور دوزارت دغو ښتنې له مخی دوزیرانو شورا پر یکړه وکړه چې دهرات دبین المللی پروژی داړتیا وړ سامان آلات دهغه آفر له مخی چی له یوی انګلیسی کمپنی څخه غوښتل شوی وړه با لمقطع توګه دی وپیرودل شی .

سر بیره پردی دخلکو دراډیو تلو یز یون دسملاسی اړتیا وړ سا مان آلات دی دزیمنس دکمپنی له آفر سره سم برابر کړی شی.

دلیبیا له دولت سره داقتصادی ،تخنیکی او دسودا ګری دهمکاری موافقه لیك چې پخوا دپلان جوړولو دچارو دوزارت او لیبیا یی‌لوری تر منځ لاس لیك شوی و دوزیرانو دشو را په غونډه کی تائید شو .

دفواید عامی وزارت دخپلو دلارو او ډګرونو جوړولو دپروژو داړ تیا وړ قیر پخوا له انګلیسی اسکس له کمپنی څخه آفر غوښتی او له هغی کمپنی سره یی تړون لاس لیك

کړی و چی دوزیرا نو شورا په هغه غونډه کی تا ئید کړ .

دښوو نی او روزنی دوزارت په پیشنهاددد کابل دتخنیکم دځوار لسمو ټو لگیـــو زده کو ونکی چی دعملی تجر بی دزده کولو دکار له عینی چا پیر یال سره دبلدتیا پــــــه غرض تولیدی موسسو ته لیږل کیږی دوزیرانو شو را پر یکړه وکړه چی دغه مو سسی دی دهغوی دخو راك ،ترا نسپورت ، دکار دجامو او مدد معا ش په بر خه کی دښوو نی‌اوروزنی له وزارت سره همکاری وکړی .

دچا رو دښه والی په مقصد دکر نی‌اوځمکو داصلا حا تو دوزارت دکر نی درواجو لـــو او پر مختیا لوی ریا ست دکرنی دروا جو لو او تو لیداتو دریا ست په نامه یاد اود کرنی دکو پرا تیفو نو در واجو لو اوددولتی‌فارمونو ریا ستو نه دهغه ترا ډر لاندی منظور شول.

۱۳۵۷،۱۱،۳۰

دافغانستان دخلکو دستر مشر دانقلابـــی شو را رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره کی‌په مشر ی‌دوزیر انو شورا دخلکو په کور کـــی فوق العاده غو نډه وکړه اود هغی په تر څ‌کی یی دویتنام دسو سیالیستی جمهوریت په‌خاوره با ندی دپر دیو وسله وال تیری دبحث لاندی ونیو او دغه اعلامیه یی صادره کړه .

دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت پـــه خاوره باندی دچین‌دولـتی جموریـت دوسله‌وال تیری په باب د ۱۳۵۷ کال دد لوی د ۲۸نیټی خبر دافغانستان دد مو کراتیك جمهوریت‌د ژوری خوا شینی سبب شو .

دخپل هیواد دخپلو اکی او دنړ یوالی سولی ددفاع دپاره دامپر یالیزم په خلاف‌دویتنام‌دخلکو په ویاړ لو مبارزو کی دهغوی له اتلو الرول څخه دنړی ټول مترقی او سو له دوست قوتونه ملاتړ کوی .

دویتنام دزړ ورو خلکو دمیړنی مقاومت په مقابل کی دامپر یالیزم له شرمه ډکه ماتی، دویتنام بیا یو والی ، له ورو نو سوسیالیستی هیوادونو اوله نړ یوال کار گری انقلا بـــی نهضت سره دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت خلل نه منونکی پیو ستون او دهغه هیواد بیا جو ړیدل ، په ټوله نړی کی دسو لـــی ، دمو کراسی او ټو لنیز پر مختګ په گټه او دامپر یالیزم جګړه غو ښتونکو او دسو لـــی ددښمنانو په زیات او ژور زیان تمام شو یدی.

دافغا نستان دمو کراتیك جمهوریت دقهرمان ویتنام په خاوره کی هر ډول وسله واله لاس وهنه محکو موی او دهغه له میړ نو خلکـــو څخه په پوره ملاتړ سره په غو څه توګه غواړی چی ټول پردی پو ځی قو تو نه دویتنام‌دسو-سیا لیستی جمهوریت له خاوری څخه ووزی چی دجگړی خطر له منځه لاړ شی، په هغه سیمه کی سو له بیا منځ ته راشی اودویتنام ټو له ځمکه له هر ډول تیری نه خو نـــدی او سی او دهغه اتل خلك دخپلی اتلوالی‌مبارزی ارز ښتو نوته تکامل ور کړی .

دامپر یالیزم دتیر یو کنو والی بیر تـــه آبادی کړی او دبی طبقو ټو لنی دجو ړو لو په خاطر ددوی هلی ځلی له تیری څخه قربان نشی .

٦_١٢_١٣٥٧
زموږ ګران لار ښود دکابل ښار ۲۵ کلن
تصویب شوی ما ستر پلان لاسلیک کړ .

دخلکو ستر مشر دافغانستان دخلکـــو
ددمو کراتیک ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی
منشی دانقلابی شورا درئیس او صد را عظم
نور محمد تره کی په مشر ی دوزیرا نوشورا
دخلکو په کور کی غونډه وکړه .

دغونډی په پیل کی دثوردستر انقلاب لارښود
د افغانستان د خلکو د د مو کر ا تیک
ګوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلا بی
شورا رئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی
دوزیرا نو شورا ته دکو رنیو مسا لو اوبین-
المللی موضو ع ګانو په باره کی لنډ معلومات
ور کړل .

وروسته بیاد وزیرا نو شورا دو زارتو نو
په پیشنهاد شویو موضوع ګانو باندی دخبرو
په تر خ کی دکابل دښار ۲۵ کلن ما ستر
پلان چی کابل ښار والی دوزیرا نو شو راته
وړاندی کړ وکوت اوپه دی برخه کی یی د
کابل ښاروال دمفصلو څرګندونو له اورید -
لوورو سته دغه ماستر پلان تصویب کړ.

ور پسی دخلکو ستر مشر دافغانستان‌دخلکو
دد موکراتیک ګو ند دمر کزی کمیټی‌عمومی
منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظـــم
نورمحمد تره‌کی دکابل دښار ۲۵ کلن‌ماستر
پلان پخپل لاسلیک ښکلی کړ او کابـــل
ښار والی ته‌یی لار ښوو نه وکړه چـــی د
۱۳۵۸ کال له پیل څخه دی دهغه په تطبیق
پیل وکړی .

دوزیرانو شورا داو بو او برښنا دوزارت‌په
پیشنهاد دپنج او آمو دغاړو دټینګښت دپروژی
دکار دپر مخ بیو لو دپاره دیوی اندازی پیسو
تعد یل منظور کړ .

دغه راز دوزیرانو شورا په پرو نی غونډه
کی له شو روی اتحاد څخه دسودا ګـــری
دوزارت مر بوط ددری ګو نو بندر و نـــو
دسمبا لوولو داړ تیاوړ پرزو پیر ودل تا ئید
کړل .

۱۲ر۱۲ر۵۷

دنړ یوالی سو لی ساتنه او ټینګښت یـــوه
ستره مسا له ده .

دافغا نستان دخلکو دد موکراتیک ګو نـد
دمر کزی کمیټی دارلانشاء خبر را کوی‌چـــی
دافغا نستان دخلکو دد موکرا تیک جمهوریت
دانقلابی شورا درئیس او صد راعظم‌نورمحمد
تره‌کی په مشری دسیاسی بوروغونډه دخلکو
په کورکی جوړه شوه .

دغو نډی په پیل که دافغانستان دخلکـــو
پیا وړی مشر او لار ښود دبین المللی حالاتو
او کور نیو چا رو په باب لنډ رپوټ سیاسی
بوروته ورکړ .

ورپسی دنړیوالی سولی دساتنی او پیاوړ -
تیا دمر بوطو مسئلو په‌باب خبری وشوی‌او
داسی نتیجه واخیستله شوه چی دنړ یوا لی
سولی ساتنه او ټینګښت له‌ستر وفوق العاده
مسئلو څخه ده چی دبشریت په وړاندی پرتـه
ده له دی امله باید دنړ یوالی سو لی‌دلاری
ټول مبارز قوتو نه په متحده توګه دهغـــی
په ټینګښت کی هڅه وکـــړی اوپری نـږدی

چی دجګـــړه مارو قدرتونو دفعـالیتونو لـــه امله دجګړی خطر دبشریت په سر نو شت باندی سیوری وکړی

دغو ئلوی په پای کی دګو ندی غړیتوب دکار تونو دصدور او ویش په باره کـــــی دافغا نستان دخلکو دد موکرا تیك ګو نـد دمرکزی کمیټی دسیاسی بورودمصوبی مسوده تر څیړنی لاندی ونیو له شو او دسیا ســـی بورو له خوا تصویب شو .

۱۳ر۱۲ر۱۳۵۷

دخلکو دستر مشر دافغـانستان د خلکـــو دد موکرا تیك ګو ند دمر کزی کمیټی دعمومی منشی .دانقلابی شورا درئیس او صد راعظـــم نورمحـــد تره‌کـی په مشـری د وزیـرانــــو شورا دخلکو په کورکـی غونډه وکړه .

دغونډی په پیل کی دافغـانستان دانقـلاب لار ښود دافغانستان دخلکو دد موکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شو را رئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دوزیرانو شو راته دکور نیو مسا لو او بین المللی‌حالاتو په با ره کی لنډ معلو مات ورکړل .

وروسی دوزیرانو شـورا دوزارتونو او دایـــرو دپیشنهـــادونـــو پـــه تر څ کـــی ددغـــــو موضوع‌ګانو په باره کی پریکړه وکړه .

داوبو اوبریښنا دوزارت د پیشنهاد له مخی دپلخمری ددریمی بریښنا دپـروژی دچـــارو د جوړونی اودګورګان چاردری دپروژی دجوړ ــ ښت دپا تی کارو نو د څارنی تړون دسویسی موتور کولمبـوس له کمپنــی ســره منظـــور

شو

دوزیرا نو شورا دکا نو او صنا یعو دوزارت په پیشنهاد باندی دخبرو په تر څ کی دهرات په ولایت کی دځر منی دتو لید دپروژی‌د تخنیکی او اقتصادی څیړ نو او دکند هارد‌میوی دفا بریکی دڅیړنی پراختیا او سمون دپاره له بلغاریا سره دبلغاریایی ما هرانو داستخدام تړ ونونه منظور کړل .

په پای کی دکلیمد افغان شر کت اساسنامه چـی دکـانو او صنایعو وزارت د وزیـــرانـــو شورا ته وړاندی کړه دخبرواو غورنه وروسته تا ئید شوه .

۲۰ر۱۲ر۱۳۵۷

دافغا نستان دخلکو دستر مشر دانقلا بـی شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کـی په مشر ی دوزیرا نو شورا دخلکو په کورکی غو نډه‌وکړه .

دغو نډی په پیل کی دثور دستر انقلاب لار ښود دافغانستان دخلکو دد موکراتیـــك ګو ند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دکورنیو او بین المللی موضوع ګا نوپه باره کی دوزیرانو شوراته لنډ معلو مات ور کړل وروسی دکـــرنی او ځمکـــو داصلاحاتو وزیر ډاکتر صالح محمد زیری په مستحقو بزګرانو با ندی دځمکی دویش در پوړپه ترڅ کـــی وویل :

زموږ دستر مشر دلو مړی او دویمی ګڼی فرمانونو له مخـــی بی ځمکـــو او کـــم ځمکـــو بز ګرا نوته په وړ یا تو ګه دځمکی ویش

روان دی اوپه دی برخه‌کی دکـــار له پیـــل
څخه د ۱۳۵۷ کال دحوت تر نو لسمی نیټــــی
دشنبی تروریخی پوری په پنځه اویازره مستحقو
کورنیوباندی اووه سوه شپږدیرش‌زره شپږسوه
نهه اویا جر یبه ځمکه ویشله شویده .

ور پسی دوز یرانو شورا دوزارتو نو پـــــر
پیشنهاد ونو باندی دخبر وپه ترڅ کی ددغو
موضوع ګانو په باره کی پر یکړه وکړه

دبهر نیو چارو دوزارت دپیشنهاد له مخــــی
دافغا نستان دد مو کراتیك جمهور یت او د
شوروی سو سیا لیستی جمهور یتو نو داتحاد
تر مینځ ددوستی ښه ګاونډ ی توب اوهمکاری
تړون چی د ۱۳۵۷ کال دقوس په څوارلسمه
نیټه دافغانستان او شوروی اتحاد دمشرا نوله
خوا په مسکو کی لاس لیك شوی وو تصو یب
شو او لار ښو دنه وشوه چی دغه تړ ون دی
انقلابی شورا ته وړاندی شی .

دو ګــــړو داحوال دثبت قانون چی دکورنیو
چا رو دوزارت له خوا نوی شوی او دوزیرانو
دشورا ددرو غونډی ته وړاندی شـــو تصویب
او دو ور ستیو پړاوونو دتیرو لو دپاره انقلابی
شوراته وړاندی شو .

دپلان جوړ ولو دچا رو وزارت دبلغاریــــا
ددولت دکرِ یدت او افغا نستان ته دنړی وال
بانك د پر مختیا دبین المللی اتحاد یـــــی
دکر یدت دیو ویشت ملیو نو ډالرو موا فقی
دوزیرانو شورا ته وړانـــــدی کـړ ی چـــی
تا ئید شوی .

داطلا عاتو او کلتور دوزارت د پیشنهادلـــه
مخی دافغا نستان دد موکراتیك جمهور یــــت
او دپو لند دخلکو دجمهوریت تر مینځ‌دفرهنګی

او علمی همکاری دپرو ګرام نوی متن تصویب
شو .

سربیره پردی داطلاعاتو او کلتور دوزارت
دجلا پیشنهاد ونو له مخی دهرات دبین المللی
پرو ژی چا رو دلازیات او چټك په مخ بیو لو
په غر ض یولړ ګټو ری پر یکړی و شوی
او داطلا عاتو اوکلتور وزارت ته لار ښو ونه
وشوه چی دخلکو دتلو یز یون داړ تیا وړ
او بی ، وان دستګاه دی دهغه افر له مخی
چی تر لاسه کړی یی دی و پیر ی .

دکو رنیو چا رو دوزارت دپیشنهاد پــــه
اساس او دکابل ښار دما ستر پلان دې پـــر
ژر تطبیق دپاره دکابل دښار دپنځه ویشـــت
کلن پلان دښار ی پر وژو دمیشته کیدومقرره
دوزیرانو دشــورا پــه غــونـډه کــی منظــوره
شوه .

دسودا ګری وزارت پیشنهاد وکړ چــــــی
افغا نستان بانك دی دسو داګری دفعا لیتونو
دپرمخ بیو لو دپاره لس ملیو نه ډالره ددورانی
پور په تو ګه دخلکو دصا دراتی او وارداتی
اتحاد یی په واك کی ور کړی چی دغـــــه
پیشنهاد تا ئید شو او لازمی لار ښو ونــــی
و شوی .

دسودا ګری دوزارت دپیشنهاد له مخی له
شوروی اتحاد څخه د ۱۹۷۹ـ ۱۹۸۳ کلو نو
دپاره ملکی عادی استعمال وړ مالو نو دسپارلو
موا فقه اوله شوروی اتحاد سره د ۱۹۷۹ـ
۱۹۸۰ کلو نو دپاره دما لونو در اکړی ورـ
کړی پرو تو کول منظور شو

په پای کی په نمونه وی کانی ډبرو باندی

دتکنا لوژی او انا لیتیکی څیړ نو تړون چې دشوروی اتحاد له کر یدت څخه تمو یلیږی تصو یب شو او دګا نو او صنا یعو وزارت ته لاربښو ونه وشوه چې دغه تړون له شوروی اتحاد سره لاس لیك کړی .

۱۳۵۷٫۱۲٫۲۲

زمو ږ دستر مشر دافغا نستان دخلکو ددمو کرا تیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلا بی شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی په مشری دوزیرا نو شو را دخلکو په کورکی په فوق العاده تو گه غونډه وکړه .

دوزیرانو دشورا په دغه فوق العاده غونډه کی دافغا نستان دد موکرا تیك جمهوری‌دولت د ۱۳۵۸ کال عادی او پر مختا یی بود جه دپنځه دیر شو ملیار دوا ووه سوه پنځلسو ملیو نو او دوه سوه څلور دیر ش زره (۳۵۷۱۵۲۳۴۰۰۰) افغانیو په سرجمع تصویب شوه .

ددولت د ۱۳۵۸ کال عادی بود جه اتلس ملیارده یو سلو نهه اویا ملیونه او شپږ ـ سوه دوه دیرش زره (۱۸۰۷۹۶۳۲۰۰۰) افغانی ده چې له دی جملی څخه دوزارتو نو او دولتی دایر ولګښتو نه دوولس ملیارده دوه سوه نو لس ملیونه اودوه دیرش‌زره (۱۲۲۱۹۰۳۲۰۰۰) افغانی او ددولت ۱۳۵۸ کال دبودجی دموازنی په قلمونو کی شامل لګښتو نه پنځه ملیارده نهه سوه شپیته ملیونه شپږ سوه زره (۵۹۶۰۶۰۰۰۰۰) افغانی اټکل شویدی .

په ۱۳۵۸ کال کی ددولت پر مختیا یی بودجه داوولس ملیارد و پنځه سوه پنځه دیرشو ملیونو شپږ سوه دوه زره (۱۷۵۳۵۶۰۲۰۰۰) افغا نیوپه سر جمع تثبیت شو یده چې له‌دی جملی څخه اووه ملیارد ه افغانی له کورنیو منا بعو څخه اولس ملیارده پنځه سوه پنځه دیرش ملیو نه او شپږسوه دوه زره (۱۰۵۳۵۶۰۲۰۰۰) افغا نی له بهرنیو منا بعو څخه دپو رونو او پرو ژو دمر ستو په ګهون دی .

په ۱۳۵۸کال کی دافغا نستان ددموکراتیك جمهوریت دولت ټو لو عادی او پر مختا یی بو دجه پنځه دیر ش ملیارده اووه سوه پنځلس ملیو نه دوه سوه څلور دیر ش زره (۳۵۷۱۵۲۳۲۰۰۰) افغا نی تثبیت شو یده چې د ۱۳۵۷ کال دبودجی دا نډ ول له مخی‌ددوو ملیارد و پنځه دیر شو ملیو نو څلور سوه شپږ و زرو پنځه سوه اته ویشتو (۲۰۳۵۴۰۶۵۲۸) افغا نیو تز ئید یا په سلو کی ٤۰٫٦ ښیی.

ددولت د ۱۳۵۸ کال دعادی او پر مختا یی بودجی بیلانس په لاندی اساس اټکـل شویدی.

له کور نیو منا بعو څخه حقیقی عا یدات شپاړ س ملیارده څلور سوه څلور شپیته ملیو نه نهه سوه زره (۱٦٤٦٤۹۰۰۰۰۰) افغانی .

له کور نیو فرعی منا بعو څخه دمر ستی عا یدات اته ملیا رده اووه سوه څوار لس ملیو نه اوه سوه دوه دیر ش زره (۸۷۱٤۷۳۲۰۰۰) افغانی .

له بهر نیو منا بعو څخه عایدات (پو رو نه) او پروژی مرستی لس ملیارده پنځه سوه پنځه دیرش ملیونه شپږ سوه دوه زره

(۱۰۵۳۵۶۰۲۰۰۰) افغا نی تر لی پنځه ملیونه دوه سوه څلور دیر ش زره(۳۵۷۱۵۲۳۴۰۰۰) افغا نی .

له دی امله دافغانستان دد مو کرا تیـک جمهوریت ددیارلس سوه اته پنځوسم کـــال دعادی او پر مختیایی بودجی عا یـــدات‌او لګښتونه د ډاډ اوباور وړ‌اټهول څرګندوی .

دافغا نستان دد مو کراتیك جمهوریت د وزیرانو شورا پخپله فوق العاده غـونډه‌کـی دافغـانستـان د د مـو کـر ا تیك جمهوریت (۱۳۵۸_۱۳٦۲) کال پوری دلو مړی پنځه‌کلن پلان دلو مړی کال پلان په هغو دقیقو لار ښو ونو سره چی دپنځه کلن پلان دلو مړی کال دګټور تطبیق له پاره باید وزار تو نه‌او ټولی دولتی دایری او موسسی یی په پام‌کی ونیسی تصو یب کړ .

دوزیرا نو شورا دپلان جوړولو دچا رووزارت ته لار ښو ونه وکړه چی دافغانستانددموکراتیك جمهوریت داقتصـــادی او ټـولنیزی پرمختیا د

لو مړنی پنځه کلن پلان عمومی لار ښو دنی دثور د بریالی انقلاب دلو مړی کا لیزی‌په را نژدی کیدو سره اوددغه پلان تفصیلات د ۱۳۵۸ کال دسنبلی تر پنځلسمی پوری ترتیب او دوزیرانو شو راته دتصو یب له پاره‌وړاندی کړی .

دافغا نستان دد مو کراتیك جمهور یـــت دلو مړی پنځه کلن پلان دلو مړی کال پلان د ۱۳۵۸ کال عادی او پر مختایی بود جـــی انقلابی شو راته دتا ئید او تصو یب له پاره وړاندی کیږی .

۲۴ر۱۲ر۱۳۵۷

دافغا نستان دخلکو دد مو کرا تیـــك ګو ند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی‌دافغانستان دمو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورا درئیس او صد را عظم نورمحمد تره کی په مشری دافغا نستان دخلکو دد مو کرا تیك ګو ند دمر کزی کمیټی سیا سی بورو دخلکو پــه کور کی غو نډه وکړه لومړی یی دافغانستان دد موکراتیك جمهوریت دلو مړنی پنځه کلن پلان لومړی پلان دهغه له پر مختیا یی بودجی سره تر ژورو خبرو لاندی ونیو او تا ئید یی کړ . وروسی یی دانقلابی شورا او حکو مت دوظیفو دتنظیم قا نون او دقا نون جو ړو لو طر ز العمل دجرایمو دکشف او لو مړنی‌تحقیق قا نون او دهغه په قا نو نیت او تطبیق باندی دڅارنوالی څارنه دانقلابی شورا دریمی ګڼـی فر مان داوو مو او اتمو ما دو تعد یــــــل دافغا نستان دخلکو دوسله وال پو ځ عمومی اصولنامی کـورنی خدمتونه ، دګـــارنیزیون او قـــراول او دسپلین د خـدمتونـو طرحی یی وڅیړلی او تا ئید یی کړی او دهغو د قانونی پـړاوونو لـه تیریـدلـو سـره یی مـوافقـــه وکړه .

وروسی دافغانستان دخلکو دګران لار ښود دانقلابی شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی په مشری دوز یرانو دشو را غونډه دخلکو په کورکی وشوه او ددغو قوا نینو او اصولنامو دطرحـو پـه بـاره کـی یـــی چـی پخو اویشل شوی وی . اوږدی خبری و کړی اوهغه یی له ځینو تعد یلو نوسره تائید او تصو یب کړی .

## دافغانستان د دموکراتیـــــك جمهوریت دانقلابی شورا غونډه:

۱۳۵۷ر۱۲ر۲۶

دهیواد دستر او انقلابی مشر، دافغانستان دخلکوددموکراتیك ګوندمرکزی کمیتی دعمومی منشی دانقلابی شورا درئیس او صدر اعظم نورمحمد تره کی په مشـــری دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت انقلابی شورا دخلکو په کورکی غونډه وکړه .

لو مړی دافغا نستان دخلکو پیاړی لارښود دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمدتره کی ارزښتناکه ویناوکړه وی ویل :

ګرانو او مبا رزو ملګرو !

دافغا نستان ددمو کراتیك جمهور یتدانقلابی شورا غړو !

خو شحاله یم چی پههیواد کیدلو یـــو بریالیتوبونو راوړونکی د ثور دانقلاب د څپو د پراخه خپر یدلو په فضا کی بیا دافر هـــــت میسر شو چی دافغانستان دخلکو دموکراتیك ګوند (دهیواد دکار ګری طبقی دمخکښ)پـــه ستر ویاړ دانقلابی شورا دغه له برمه ډکـــه غو نډه پرانیزم .

دانقلابی شو رادتیری جلسی څخه دیرومبنیو فعا لیتو نوپه تعقیب پههیواد کی دزیار ایستو- نکو خلکو په ګټه ستر ستر له ویاړه ډك کا رونه ترسره شوی دی .

دشو روی اتحاد دکمو نست دګوند دمرکزی کمیتی دعالی شورا درئیسه هیات او دحکو مت په بلنه هغه هیواد ته زموږ ددوستی او ورو - ګلوی سفر هغه ځلیدونکـی پیښه ده چی په دلاس پو څو مر تجعینو او ستمګرو فیوډالانو دغی موده کی سرته رسید لی چی په هغـــی کی زموږ ددواړو هیواد ونو تر مینځ خوږه دوستی ډیره ښه وبر یښیدله اود منطقـــی او نـړی دســولی په ټینګیدلو کی ډیر اثــر لری او ددواړو هیواد وتر مینځ دلاډیریهمکاری او یوله بل څخه دلاډیر ژور ملا تړ لـــــه پاره یی پوره پوره اطمینان پیدا کړی دی.

هغه تر ټو لو مهم څه چی په دغه سفرکی تر سره شو هغه ددوستی اوښه ګا ونــــډ یتوب معاهده دهچی دافغا نستان ددموکراتیك جمهور یت ا و دشوروی اتحاد تر منیځپهدغه سفر کی دما سکو په ښار کی لاس لیـــــك شو ه. دغه معا هده به داسی ځلیږی چـــی دهغی په رڼا کی به ددواړو هیوادو نو دشپیتو کلو له مینی ډك ښه ګاو نډ یتوب ټو لـــی نړی ته دډ یرښه ژوندی مثال په توګه ښکاری اوپه بیړه بیړه لاډیر ښه پخیږی ، دوستـــی او ورو ګلوی یی وده کوی .

زموږ دخارجی سیا ست دفعا لیت مثبـــت تا ثیرات دنړی دسو لی له پاره با لکـــــل محسو س دی او دنا پیلتوب د نهضت دپیاوړی کید لو له پاره مو مؤثر ګامو نه اخستی دی. زموږ ګران هیوا دته دځینو دوستو هیوادونو دمهمو شخصیتو نو او دهیا تونو له را تګ څخه ښه استقبال شوی اوپه زړه پوری خبری شوی دی او ګټوری موافقی مو ورسره لا س لیك کړی دی .

په ګران هیواد کی دچټك پرمختك پـــــه لړ کی تر ټولو دمخه دامپر یالیزم دیر دیو

ددسیسو او تو طئو سره سره دافغا نستان‌زیار ایستو نکو بز گرانو او کو چیا نو ته دوړیا ځمکی‌ویش په‌بیړه‌روان دی‌اوپه دوومیاشتو کې دزیار ایستونکو بزگرو اوبی وزلـو کوچیانـو د(۸٦٤٦۳) ځخه زیاتو کورنیو ته (۸۳۷۰۸۹) جریبه ځمکه په وړیا توگه ورکړ شوی ده.

دځمکی دوړ یا ویش ډیر پراخه او په بیړه روان نهضت دی چی دزیار ایستو نکو خلکـــو دښمن یی را پا رولی دی . چی دافغا نستان په کور نیو چارو کی یی په مداخله لاس‌پوری کړی دی . خو زمـوږ میړنی خلـك په بیـړه په مخ ځی او دخپل خلقی انقلاب پـــــه خو شحا لیو کی بوخت دی .

زموږ په وطن مین خلك همدا اوس دلوړ دپرتمین انقلاب ددښمنو مـرتجعینـو عنـاصرو (اخوان الشیاطین ) په‌ضد جهاد په ځنگ کـی دخپل بل ستر دښمن یعنی بیسوادی په ضد جهاد هم په ډیره هو ښیاری او ډیره زړ ورتیا په مخ بیایی . نن تر اوولکو ډیر میـړنـــی وطنوال دبیسوادی په کور سو نو کی دلیـــك او لو ست په زده کوولو لگیا دی‌او دمترقی وطنپا لونکو له خواپه داوطلبا نه توگه درس ور کول کیږی .

تعلیماتی او کلتوری چاری په ښه ښان روانی دی او وده کوی چی دکلتوری انقـلاب دډیر ښه زیری خبرو ر کوی دلوړو خپرونو په کتا رکی (دلوړ انقلاب) ورځپانه هم رون ځای لری چی زموږ دخلقی دولت دمرکــــزی اورگان په حیث تاسیس شوی ده .

دهیواد په تعمیراتی، مالی دبرښنـا او اوبو لارو، کانو او صنایعو ، تجارتی اومخابراتـی پروژی او چاری په‌ښه شان په مخ ځی .

دخاوری دساتنی ، له انقـلاب ځخه دفـــاع دامنیت ټینگښ ساتلو ، اودانقلاب ضد عناصر او خارجی گــــوډاگیـانو د توطئـو په شنډولو اوله منځه وړلو کی زموږ میړنی قهر مان‌خلقی وسله وال پو ځ ډیر ښه رول لوبولی چـــــی خپل اید یا لوژیکی او محا ربوی وسا یل‌یی دخپلی خلقی او دولتی رهبری له لارښـوونـی سره ډیر په زړه پوری په‌کار اچو لی دی.

دارتجـاع او دامپریالیـزم د تالـی ځټـو ځالی په هیواد کی ړنگی شوی .او په بیړه لـــــه منځه ځی .

نوز موږ دخلقی اردو دډیر سمبا لښت لـــه پاره دادی دری اصو لنامی هم دحکومت له‌خوا انقلابی شوراته وړاندی کیږی چی دتصو یب په هکله یی‌له ځیړ نو وروسته تصمیم ونیسی.

همدا ډول په هیواد کی دهغی له مینی او ورور گلوی او آزادی ځخه ډك ژوند ســــــره برابر دانقلابی شورا، حکومت دوظیفـو دتنظیم قانون اودقانون جوړولو طرزالعمل دافغانستان ددمو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورا ددریمی گڼی فرمان د ۷او۸ مادی تعدیل او دجرایمو دکشف او لو مړنی تحقیق او دهغه دتطبیق په قا نو نیت باندی دځار نوالی دځارنـــــی قا نون دانقلابی شورا روانی غو نډی ته دپراخ بحث‌ځخه ورو سته دتصو یب په هکله دتصمیم په خاطر دحکو مت له خوا وړ اندی کیږی.

هغه ځه چی دافغانستان دمو کراتیك جمهوری دولت دانقلابی شورا داوسنی غو نډی دهدفونو

عمده برخه تشکیلوی دافغانستان دد موکراتیک جمهور ی دولت د(۱۳۵۸) کال عادی بود جه او دلو مړنی پنځه کلن انکشا فی پلان‌دلومړی کال پلان اوبودجه‌ده چی دحکومت‌له‌خوا ترتیب شوی او دڅورو څیړ نو په خاطر او دهغو په هکله دتصمیم نیو لو له پاره انقلا بی‌شورا ته وړاندی کیږی .

انتظار لرم زما گران ملگری دانقلابی شورا غړی دافغانستان دزیار استو نکو خلکو دگټو دساتلو دواقعی ساتونکـو په نماینـدگـی به په ډیره مینه وروگلوی او آزادی سـره دټـولـو کارگـری دمـوکـراتیکـو اصولو پـه نظر کی نیو لو سره پراخ ژور او هرا ړ خیز بحث ور باندی وکړی او زیار به‌کاږی چـی په‌منطقی دلایلو ، واقعی شـواهـدو او علمی اصو لو برابر یو بل ته قنا عت ورکړی اوهر ملگری به پوره پوره حق ولری .چی له خپل در ك سره سم نظر ورکړی دا هم ښکاره‌ده.

ددغو ټو لو مطالبو اسا سی بنسټ‌دافغانستان دزیار ایستو نکو خلکو گټی دی ددغو گټـو دخوندی کولو او تکامل په بنیاد زموږ‌دگران گوند دافغانستان دخلکو دموکراتیك گو نـد (دهیواد دکار گری طبقی مخکښ )تر رهبری لاندی زموږ خلقی دولت دانقلابی شورا لـــه تصو یبو نواو تصمیمو نو سره سم کار کوی او پر مخ ځی .

اوس له ملگری حفیظ الله امین‌څخه غوښتنه کوم چی دافغانستان ددمو کراتیك جمهور یت دحکومت پورتنی مطالب یوپه بل پسی انقلابی شو راته ولو لی او دانقلابی شورا غړی به په خپل وار وربـانـدی نظرورکوی اوقانونی طرز-العمل به جریان ولری .

وروسی دافغانستان دخلکو دد موکرا تیـك گوند دمرکزی کمیټی منشی، دصـــدراعظـــم مر ستیال او دبهر نیو چارو وزیر حفیظ‌الله‌امین لنډی خبری وکړی وی ویل :

دافغـانستان دخلکـو د دروند او گـــران لاربښود اودمبارزو ملگرو په اجازه :

دافغانستان مبارزو، زړوروميړنيو، زیارکښو اوپه خپلی خپلواکـی مینو خلکو ، دخپلـــو وینو په تویولو او سربښندنی سره دهیـــواد دخپلو اکی دفاع کړی او دټورو خلکو خپلواکی ته یی هم په درنه سترگه کتلی دی له‌همدی امله دافغا نستان خلکو په نړی کی له ټولونه مخکی دشوروی اتحاد بری او خپلو اکـــــی په رسمیت وپیژند له شوروی اتحاد هم پــــه نړی کی ترټـولـو مخکـی زموږ خپلواکی په رسمیت وپیژند له .

له هغه وخته تر ننه پوری چی یو شپیته کاله تیر شوی دی ددواړو هیواد ونو تر مینځ دو ستی پر مختیا کړی او په دی موده کـــی د دواړو هیواد ونو تر منځ اړیکی په ژوره‌توگه ټینگ شوی دی .

هغه تړون چی زموږ دستر لاربښوددافغانستان دخلکو ددمو کراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی د انقلابی شورا رئیس‌اوصدراعظم او دشوروی اتحاد دکمو نست گوند دمر کزی کمیټی دعمومی منشی ، دعالی شورا درئیســـه هیات دصد رله خوا په مسکو کی لاس لیك شو .ددواړو هیواد ونو تر منځ دغه دو ستی یی دوروری په سویه پراخه کړه .

دغـه دی همـاغـــه تـــړون دافغـانستـــان

دد موکرا تیك جمهور یت دانقلا بی شورا
دی غو نډی ته وړاندی کیږی چی پر هغـه
باندی داسی ژوری خبری وکړی . چی زموږ
ستر لار ښو دیی لار ښو دنه کړی ده.

ور پسی دصد راعظم مرستیال او دبهر نیو
چا رو وزیر دافغانستان دد موکرا تیـــك
جمهوریت او دشوروی سو سیا لیستـــی
جمهـوریتـونـو د اتحـاد تر منځ ددوستـی ښه
ګاونډ یتو باو همکاری دتړون متن چـــی
د ۱۳۵۷ کال دقوس په څوار لسمه نیټه چی
د ۱۹۷۸ کال دد سمبر له پنځمی نیټی سره
سمون خوری دمسکو په ښار کی زموږ دګران
مشر دافغا نستان دخلکو دد مو کرا تیـــك
ګو ند دمر کزی کمیټی دعمومی منشـــی
د افغا نستان دد مو کراتیك جمهوریت دانقلابی
شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی
او دشوروی سو سیا لیستی جمهور یتو نو
داتحاد دکمو نست ګو ند دمرکزی کمیټـــی
دعمومی منشیاودعالی شورادرئیسه هیات دصدر
لیونیـدبـریـژنف له خوا لاس لیك شویدی
ولوست . چی هـره مـاده یی له رایی اخستلو
ورو سته درایو په اتفاق تصو یب شوه .

ورو سته دافغا نستان دخلکو په وسله وال
پوځ ، په کورنیو خدمتونو دګارنیـزیـــون
او قرا ول په خد متونو او دسپلین پوری‌مربوطی
دری اصو لنامی او دغه راز په پنځو فصلو نو
او دیرشو مادو کی دانقـلابی شورا ، حکومت
دو ظیفو او دقا نون جوړ ولو دطرز العمـــــل
دتنظیم قانون دافغا نستان دد موکراتیـــــك
جمهوریت دانقلابی شورا ددر یمی ګڼی فرمان
داوومی او اتمی مادی تعدیل ، او دجرمـونـو
دلو مړنی کشف او تحقیق او دهغه دتطبیـق
پر قا نو نیت باندی دڅا رنوالی دنظارت قانون
دصد راعظم دمرستیال او دبهر نیو چا رود
وزیر حفیظ الله امین له خواماده په‌مادوه ولوـ
ستل شواو دهغه هره ماده له غور او خبـــرو
ورو سته چی په دمو کراتیکه توګه را یـــه
واخیستله شوه په یولړ تعد یلو نو ســـــره
د رایو په اتفاق تصویب شوه .

دافغا نستان دد موکراتیك جمهور یـــت
دانقلابی شورا غونډه‌نن هم جوړ یږی .

۲۸ر۱۲ر۵۷

انقلابی شورا دراء یوپه اتفاق د ۱۳۵۸کال
عادی او پر مختیا ئی بودجه تصو یب کړه
دخلکو دګران مشر دافغانستان دخلکـــو
د دموکرائیك ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی
منشی دانقلابی شورا درئیس او صد را عظـــم
نورمحمد تره کی پـــــه‌مشر ی دافغا نستان
دد مو کراتیك جمهوریت انقلابی شورا دخلکو
په کور کی له یوو لسو بجو څخه دغر مـــی
تر دوولس نیمو بجو پوری غو نډه وکړه لـه
خبر واتر و وروسته یی دافغا نستان‌ددموکراتیك
جمهوری دولت دپنځه کلن پلان دلو مړی کال
پلان اود ۱۳۵۸ کال عادی او پر مختیا یـــی
بودجه تصو یب کړه .

لو مړی دانقلابی شورا رئیس او صدرا عظم
دغونډی پرانیستل اعلام کړل وی ویل :

ګرانو ملګرو دانقلابی شورا غړیو !

ویا ړم چی دانقلابی شورا دد ویمی ورځـی
غو نډه پرانیزم دغه غو نډه د ۱۳۵۸ کا لد
عادی او پر مختیا یی بودجی په باره کـــی

ده چې ملګرې به پر هغې باندې خبرې وکړې او همدا رنګه به دافغا نستان دد مو کرا تیك جمهوریت داقتصادي او ټولنیزې پرمختیا د لومړی پنځه کلن پلان دلومړی کال پلان تاسوته ولو ستل شې اوکه لازمه وبولې هر ډول بدلو-نو نه چې وغو اړې په هغه کې یې راو ستلای شې .

وروسته دصد راعظم مرستیال او دبهرنیو چــــــا رو وزیر حفیظ‌الله امین دافغا نستان دد مو کراتیك جمهور ی دولت دپنځه کلن پلان دلو مړی کال پلان اود ۱۳۵۸ کال دعادی او پر مختیا یی بودجې په باره کې په لنډه تو ګه معلومات ورکړل .

وریسې دعامې روغتیا وزیراودپلان جوړولــــو دچا رو دوزارت وکیل داکتر شاه ولی ددولت پنځه کلن پلان دلو مړی کال پلان او دعادی او پر مختیا یی بودجې په باره کې دار قاموپه وړاندې کولو سره معلو مات ورکړل چــــې دافغانستان دد مو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورادغړیوله خواپه پوره آزاده اودموکراتیکه فضا کې په پوره پا ملر نه سره تر غــــــور او څیړ نې لاندې ونیو له شوه او درا یو په اتفاق تصو یب شوه .

دغو نړې په پای کې دخلکو انقلابی‌لارښود دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم‌نورمحمدتره‌کی وویل !

زما ملګرو هغه مهم قانونونه او فرمــانــونه تصو یب کړل چې ټول دافغا نستان دخلکوپه سر نو شت او دهغوی په‌مادی او معنوی ژوندکی زیاته اغیزه لری . دا زموږ دانقلاب یو بــل خصوصیت دی هر څومــره چې پر هغه بانــدی وخت تیر یږی په هما غه اندازه دپوخوا لی او قا نونیت پر لوری پر مخ ځی . موږ داځل تر ټو لو دمخه دقوا نینو تصو یبولو ته پرا خ اقدام وکړ او زیات قانونونه مــو تصـــویــب کړل دغه کار ددی څر ګند وی‌دی چې موږ دقانون پــرلــور په بیــړه روان یــو او داهــم دانقلا بی شورا یوستر بر یالیتوب دی زه نه یوازی انقلابی شوراته بلکی دافغا نستان خلکو ته هم دد غو قا نونو دتصو یبو لو مبارکی وایم .

پوره باور لرم چې‌په راتلو نکو غو نډو کې به بیا هم زیات قا نونو نه تصو یب کړو او هغه څه چې ګټور وبولو ملګرو ته به یــــی پیشنهاد کړو په یقینی توګه به یی ملګری‌هم په غور سره وڅیړی او دهغو په باره کې به په یوه پوره دمو کراتیکه او ازاده فضا کــی خبری وکړی .

دافغا نستان دخلکو ستر مشر دخپلو خبرو په پای کې دغو نړی پای ته رسید ل اعلام کړل .

د افغانستان ددموکــــراتیك جمهوری دولت د ۱۳۵۸ کال عادی او پر مختیا یی بود جه دمخه دافغا نستان دخلکو دد مو کرا تیك‌ګوند دمر کزی کمیټې له سیا سی بورو څخه‌تیره شوی او د وزیرانو د شورا له تصو یب‌وروسته دافغا نستان دد مو کرا تیك جمهوریت انقلابی شوراته وړاندی شوه چې درا یو په اتفاق تصو یب شوه .

۲۸ر۱۲ر۱۳۵۷

دانقلابی شورا او حکو مت دوظیفو دسمون‌قا نون او د قانون جوړولو طر زالعمل

انقلابی شو را :

لومړی فصل

لو مړی ماده :ــ

دافغا نستان ددمو کراتیك جمهوریت‌انقلابی شورا دهیواد ستر دولتی قدرت دی .

دافغا نستان دمو کراتیك جمهوریت انقلابی شو را په دغه قا نون کی دانقلابی شورا په نامه یاد یږی .

دوهمه ماده :ــ

انقلابی شورا : دانقلابی شورا دریاست په مقام کی دخلا دپیدا کیدو په صورت کی پــه لو مړی غو نډه کی دخپلو غړ وڅخه یو تن دانقلابی شورا درئیس په توګه ټاکی .

دریمه ماده :ــ

له حکو مت سره دانقلابی شورا ار تباط دانقلابی شورا دد فتر له لاری تا مینیږی .

څلو رمه ماده ــ

انقلابی شورا دغه صلا حیتو نه اووظیفی لری .

دافغا نستا ن دد مو کرا تیك جمهور یت داساسی قانون تصو یبول .

ددولتی او حکو متی ستر و چارو دسر ته رسو لو په باب دفر مانو نو صادرول .

دحکو مت دکړ نلاری تصو یبول اواعلامول.

دانقلابی شورا درئیس په پیشنهاد دصدراعظم دټا کلو منظوری .

ــ په هیواد کی دپو څی مقر راتو داعلام تصو یبول .

ــ له هیواد څخه بهر دخلکو دوسله وال پوځ دقطعا تو لیږل .

ــ دهغو ارګانونو جوړول چی دانقلا بی شورا په وړاندی مسؤولیت لری .

ــ ددولتو نو تر منځ دتړ ونونو تا ییدول.

ــ له بهر نیو دو لتو نو اومؤسسو سره‌د موا فقو او تړو نونو تایید ول . او حکومت ته ددغه واك لیږدول .

ــ دپیسو د خپرولو اجازه .

ــ ددولت دکلنی بودجی تصو یبول .

دقوانینو تصویبول .

ــ دهیواد داقتصــادی او ټــولنیــزی ودی په باب ددولتی پلانونو تصو یبول .

پنځمه ماده ــ

انقلا بی شورا په کال کی دوه عادی‌غونډی هرکــال دسنبلــی او حــوت په میاشتو کـــی لری چی هره‌غو نډه لږ تر لږه دشپږ وور څو له پاره دوام کوی او دضرورت په صورت‌کی تر پنځلسو ور ځو پوری دوام کولی شی.

فوق العاده غونډی دانقــلابی شورادرئیس په تصمیم یا انقلابی شورا دغړ یو ددر یمی برخی په پیشنهاد جو ړ یږی .

شپږمه ماده ــ

دعادی غونــډو تر منځ په واټنونو او پـــه هغه صورت کی‌چی فوق العاده غو نډه جوړه نه کړای شی حکو مت کولای شی دسملاسی چا رو دسمو ن له‌پاره تقنینی فر مانو نـــه

تر تیب کړی دغه فر مانو نه دانقلابی شورا درئیس دمنظوری ورو سته نا فذ یږی .

تقنینی فرمانونه د تصویب له پاره د انقلا بی شورا دلو مړی غو نډی په اجنداکی دا خلیږی .

اوومه ماده ـ

دانقلابی شورا دغونډو نصاب دغړ یو دد وو بر خوپه حضور بشپړ یږی .

اتمه ماده ـ

له هغو موادو څخه پرته چی قانون بل ډول تصر یح کړی وی دانقلابی شوراتصو یبونه دغونډی دحاضرو غړیو ددوو ثلثوپه اکثریت کیږی .

نهمه ماده ـ

دانقلا بی شورا تصو یبو نه دانقلا بی شورا رئیس له منظوری ورو سته دبا ور وړ دی.

دوهم فصل

دانقلابی شورا درئیس صلا حیتو نه .

لسمه ماده ـ

په دفاعی چا روکی دافغانستان دخلکودوسله وال پوځ اعلی مشر تابه دجګړو او اوربند اعلان .

یوو لسمه ماده ـ

دصدراعظم ټا کل او دحکو مت غړ یو منظوری .

دو لسمه ماده ـ

په تقنینی چا روکی د قوا نینو او تقنینی فرمانونو توشیح او دهغو دانفاذ اعلام .

دتقنینی فر ما نونو صادرول .

دمجا زاتو کمښت او بخښل .

دیار لسمه ماده ـ

دانقلابی شورا له غړیو څخه دانقلابی شو را درئیس دمر ستیال یا مرستیال لانو ټاکل .

څوار لسمه ماده ـ

په قضایی چارو کی ، دقضا دعالی شورا دغړیو وټاکل .

دقا نون دحکمو نو له مخی دقا ضیا نو دخلکو دوسله وال پو ځ دمنصبدارا نو او مامورینو ټاکل ، تقاعد اوعزل .

پنځلسمه ماده ـ

په بهر نیو چا روکی .

په بهر نیو هیوادونو کی دافغانستان دد مو کراتیك جمهوریت دسیا سی نمایندګیو دمشر انو ټا کل په بین المللی مؤسسو کی دافغا نستان د دایمی نما یند ګا نو ټاکل ، او دبهرنیو سیاسی نمایندګان د باور لیکو نو منل .

شپاړلسمه ماده ـ

دانقلابی شورا دفوق العاده غو نډ وجوړول.

او ولسمه ماده ـ

دقانون له حکمو نو سره سم دنښانوورکول.

دریم فصل .

حکو مت

اتلسمه ماده ـ

دافغانستان دمو کراتیك جمهوری حکو مت داجرائی دوېری لوړی قوی په تو ګه دی د صد راعظم دمر ستیال یا مر ستیا لانو او وزیرا نو څخه متشکل دی .

نو لسمه ماده ـ
حکومت دانقلابی شورا په وړاندی مسوولیت لری .
شلمه ماده ـ
حکومت دغه وظیفی او واکونه لری.
ـدقوانینو او مقرراتو وضع کول .
ـددولت دبودجی ترتیب او تنظیم .
ـدبهرنیو دولتو نو او موسسو سره دخبرو کولو او تړونونو او موافقو لاسلیك کول.
ـدعامه نظم او امن دټینګښت په لاره کی دلاز مو تدبیرو نو نیول .
ددولت دما لی حالت تنظیم او دهیواد د اقتصادی ، ټولنیزی او فرهنګی ودی دچټکتیا په لاره کی دپر مختیا یی پلانونو جوړول.
ـدصادر شویو قوا نینو او فر مانو نـو تطبیق او دمحکمو دغو څو پر یکړو تطبیق.
ـدهغو نورو وظیفو سرته رسول چی دانقلابی شو را له خوا حکومت ته سپارلی کیږی.
یو ویشتمه ماده ـ
په هغه صورت کی چی قا نون بل ډول نه وی تصر یح کړی دوزیرانو دشورا تصویبونه د صدراعظم له منظور ورو سته داعتبارو ړ دی.
څلورم فصل
دقانون جوړولو طرز العمل .
دوه ویشتمه ماده ـ
دافغانستان په دموکراتیك جمهوریت کـــی دقانون جوړولو واك په انقلابی شورا پوری‌منحصر دی .
درو یشتمه ماده ـ
۱ـ انقلابی شورا دټولنیز اقتصادی اوسیاسی او بین المللی اړیکو په بر خوکی دمهمو او اوږدی مودی دمسا لو دتنظیمو لو په‌مقصد قوانین وضع ، تعدیل یالغوکوی .
۲ـ انقلابی شورا دټولو دولتی او حکومتی ستر واو سملا سی مسا لو دتنظیم او تطبیق‌په مقصد انقلابی فر مانونه صادر وی .
څلور ویشتمه ماده ـ
دافغانستان دد مو کراتیك‌جمهوریت‌دوزیرانو شورا صلا حیت لری چی :
۱ـدقوا نینو تصو یب تعدیل یا لغو ه‌کول انقلا بی شوراته پیشنهاد کړی .
۲ـدانقلابی شورا دفر مانونو او د هیوادد نافذ شویو قـــوانینو داحکـامـــو ســره سم او دهغو په حدود وکی مقر ری او اسا سنامی وضع یا تعد یل کړی .
دقا نون جوړو لو طرز العمل .
پنځه ویشتمه ماده ـ
۱ـ دقـوانینـو ، مقـررو او اسـاسنـامــو دتصویب ،تعدیل او لغـــوه کو لو پیشنهاد دعدلیه وزیرله خـــوا دوزیرانو شوراددارالانشا له لاری ، دوزیرانو شورا ته وړاندی کیږی .
۲ـله هغه طرز العمل څخه پر ته چی په دی ماده کی یا دونه شوی هیڅوك یا اداره نشی کولی دقوا نینو او مقر رو تصو یب‌تعدیل یا لغوه کول دوزیرانو شورا او انقلابی شوراته پیشنهاد کړی .
شپږویشتمه ماده ـ
دانقلا بی شورا قوا نین او فر مانو نه له

تعدیلو نواو ضما یمو سره . چی دد غـــه قانون له مخی یـــی پراوونه سرتـه رسیدلـی وی دانقلابی شورا درئیس په فر مان ســـره حکو مت ته ابلا غیږی .

اوه ویشتمه ماده ـ

قوانین ، فرمانونه او مقرری له تعدیلونـو او ضما یمو سره چی دد غه قا نون له مخی یی پراوونه سرته رسیدلی وی دصـــدراعظـم یاد صدراعظم دمر ستیال په لاسلیک دعد لیه وزیر په نامه رسمی جریده کی دخپر یدو د پاره لیږل کیږی .

پنځم فصل

متفر قه حکمو نه

اته ویشتمه ماده .

۱ـ په هغه صورت کـی چـی د قـوانینـو فرمانونو ، مقررو او اساسنامو په متن کی بل ډول نه وی تصر یح شوی دهغو حکمو نه په رسمی جر یده کی دخپرید وله نیټی څخـــه نا فذ یږی .

۲ـ په رسمی جریده کی دقوانینو ، فرماـ نونو ، مقررو او اساسنامو په متن کی دهغونوـ رو قوانینو فر مانو نو مقر رو او اسا سنا مو حکمو نه چی له هغو سره تو پیر ولری لغوه کیږی .

۳ـ قوانین ، فرمانونه او مقرری په رسمی جر یده کی له خپر یدو ورو سته دټو لـــو د خبر تیا په مقصد دهیواد په مطبو عا توکی خپر یږی .

نهه ویشتمه ماده :

ددغه قانون په ما دوکی هر ډول تعد یـــل زیا توالی یا کمو الی دحکو مت پـــــــه پیشنهاد دانقلابی شورا په تصویب او دانقلابی شو را درئیس په منظوری کیږی .

دیر شمه ماده :

دغه قانون په رسمی جریده کی له خپریدو ورو سته نا فذ یږی .

۱۳۵۸٫۱٫۷

دافغانستان دد موکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا په فوق العاده غو نډه کی «دوطن ددفاع عالی شورا »قانون در ایو په اتفاق تصو یب شو .

دافغا نستان دخلکو دستر مشر دانقلا بـــی شورا درئیس نورمحمد تره‌کی په مشـــــری دافغا نستان دد مو کراتیك جمهور یت‌انقلا بی شورا په فوق العاده تو گه دخلکو په کورکی غو نډه وکړه ،دافغا نستان په دمو کرا تیـك جمهور یت کی‌یی دوطن ددفاع دعالی شو را قانون او د انقلابی شورا او حکو مت‌دوظیفـــو دسمون دقانون اودقانون جوړولو دطـرزالعمل دتعدیل متن یی په‌شپږومادوکی تصویب‌کړـ کړ

دافغانستان ستر او انقلابی مشر دافغا نستان دخلکوددموکراتیك‌گوندمرکزی کمیټی‌عمومی او د انقلابی شورا رئیس نور محمد تره کـی دغه راز دانقلابی شورا په دغه فـوق العــاده غونډه کی دصدراعظم مرستیال او دبهر نیـــو چـــارو وزیـــرحفیظ الله امین دافغا نستان ددمو کراتیك جمهوریت دلو مړی وزیر پـــه توگه وټاکه ،چی دانقلابی شورا دغړ یوله خوا

یی په پر له پسی چکچکو هر کلی و شــــو او تائید شو .

دافغانستان دستر او گران مشر دانقلا بی شورا درئیس نورمحمد تره‌کی دهغه یت لــــه مخی دنوی حکو مت دغړ یو تر ټا کلو پوری دوزیرانو دشو را اوسنی غړی خپلو وظیفو ته دوام ور کوی .

دانقلابی شورادفوق العاده غونډی په پیل‌کی دخلکو پیا وړی لار ښود دانقلابی شوراړئیس نورمحمد تره‌کی ارزښتناکه مطالب بیان‌کړل ویی فرمایل .

گرانو ملگرو !

دافغا نستان د دمو کراتیک جمهور یـــت دانقلا بی شورا غړو !

خو شحا له یم‌چی بیاله خپلو مبارزو ملگرو سره یو ځای دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند په وياړ دانقلابی شورا غونډه پرا نیزم دا دافغا نستان دد مو کراتیک جمهور یـــت دانقلابی شورا فوق العاده غونډه ده .

په افغا نستان کی دثور دپر تمین انقلاب بر یالیتوب په افغانستان ، په دی منطقه او نړی کی‌چی دزیار ایستو نکو خلکو د دوستانو نظر جلب او لاپراخه ملاتړیی ترلاسه کړ،دهغو دښمن هـم وخوځیـدل ، وبیریـدل او دثـور دبر یالی انقلاب په ضد یی لاسو نه ســــره

دبر یالی انقلاب په ضد یی لاسو نه ســــره

ور کړل او په توطئو او دسیسو یی لاس پوری کړ .

دامپر یالیزم ،بین المللی ار تجاع اوکینو افراطیونو د توطئـو پـراخـوالی دی تەورسید، چـی په افغانستان کـــی یـی دنـــا آرامیو د پیدا کو لو په خاطر دافغا نستان‌ددموکراتیک جمهوریت په کور نیو چارو کی په لاس وهلو لاس پوری کـــړ. په افغانستان کی دایران د متعصبو مذهبی رهبرانو او دپاکستان لـــه لوری دتورو مر تجعینو په نامه دبین المللـی ار تجاع ،امپر یالیزم او کینو افرا طیو نـــو لاس وهنی دافغا نستان میړنی خلك دی تـــه اړکړل چی دوطن دنا موس او پت دسا تنی په خاطر دخپلو زړوروپلرونو او نیکونو پـــه شان بیا تیری کوونکو ته دکلك گوزارور- کولو دپاره په‌عملی اقداما تو لاس پوری کړی او دجدی مبـــارزی او د قربانی په ډگـــر کی دتو دو احساسا تو دښکاره کولو په خاطر تر تیبات ونیسی .

زموږ دثور دستر خلقی انقلاب دگټو دساتلو مسئولیت دی ته اړ کړ وچی دخلکو دو طنپالنی اوله خپل خلقی نظام څخه دملاتړ په انقلابی بهیرسره دتوافق په خاطر دفاعی تیاری‌ونیسو همدا وه چی حکو مت دافغا نستان ددموکراتیک جمهوریت (دوطن ددفاع عالی شورا) دجوړولو طرح تر تیب کړه او ددی له پاره چی پـــه قا نونی قدرت سره په عمل کی‌په کار واچوله شی.

دانقلابی‌شورا ددغی فوق العاده غونډی دایر ید لو صورت وموند ددی طر حی په تائیدسره به په افغا نستان کی دزیار ایستو نکو خلکو دوطنپا لنی اوله وطن څخه دد فاع نهضت پـــه قا نونی او قاطعه توگه رهبری شی او دزیار ایستونکو دد‌ښمنـــو د تـــوطئـــو د شنـهولو

او زموږ په کور نیو چارو کی دلاس وهنـــی دمخنیوی له پاره به ستر اقدامات وشی .

او س له ملگری حفیظ الله امین څخـــه غواړم چی دغه طرحه دانقلابی شورا دغـــی فوق العاده غونډی ته وړا ندی کړی چـــی دآزادو نظرونو په ورکـــولـــو ســره تصمیم ور با ندی ونیسی .

دهیواد دپیا وړی ښوو نکی او انقلابی مشر دانقلابی شور ادرئیس نور محمد تره کی لـه څرگند ونو وروسته او مړی وزیر حفیظالله امین دافغانستان په دمو کراتیك جمهوریت کی دوطن ددفاع دعالی شورا د قا نون متن چی په څوار لسو مادوکی تدوین شوی دی ولو ست چی په هره ماده یی په جلاتو گه بحث اوخبری وشوی او درایو په اتفاق تصو یب شو .

ورپسی دافغانستان دخلکو گـــران مشـــر دافغا نستان دخلکو د دموکراتیك گوندمرکزی کمیټی عمومی منشی او دانقلابی شورا رئیس نور محمد تره کی دانقلابی شورا او حکو مت دوظیفو دسمون په قانون او دقا نون جوړو ل په طرزالعمل کی ځینی تعـدیلـونه انقـلابی شور اته وړاندی کړل او دهغو په ار تباط یی وفر مایل .

گرانو ملگرو !

په گران افغانستان کی دفر دپه واسطـــه دفرد له استثمار څخه دپا کی ټو لنی دجوړولو په لور دوطن آبا دولو ، دافغا نستان دسیاسی انقلاب په ادامه داقتصادی او کلتوری انقلابونو تکامل او د افغا نستان دزیار ایستو نکـــو خلکو دد ښمنانو په ضد زموږ دمیړ نیـــو خلکو دمبارزو رهبری کولو مسؤلیت دا ضرورت پیښ کړچی دانقلابی شورا او حکومت دوظیفو دتنظیم او دقا نون جوړولو دطرز العمل پـــه قانون کی ځینی داسی تعد یلات واقع شی چی دافغا نستان دد موکراتیك جمهور یت دانقلابی شو را رئیس په ښه شان دحکو مت چاری رهبری کړی او دوطن دا بادولو او پر مختگ دفعا لیتو نوې یر ښه جریان او سمون تــــه او دپلانونو په طرح اوتطبیق کی ښه لار ښوونه وکړی تر څو دثور دستر انقلاب تکامل دداسی ټولنی دجو ړولو په لور مطلو ب سر عت ولری چی هر څوك وکړای شی دخپل کار په اندازه گټه تر لاسه کړی همدا ډول دانقلابی شورا رئیس وکړای شی چی داو سنیو شرا یطـــو دغو ښتنو په اسا س په هیواد کی ددفا عـــی چا رو په تنظیم او رهبری کی مؤ ثر رول ولوبوی . تقنینی فعالیتونو ته ښه لارښوونـه وکړی او د قضا یی چارو په زړه پوری ترتیب او جریان کی ښه تاثیر وارد کړای شـــی نو ځینی تعد یلات تر تیب شوی چی لـــه ملگری حفیظالله امین څخه غو ښتنه کوم چی دانقلابی شورا دژور غور او تد قیق له پاره یی وړاندی کړی چی تصمیم ور با نـــدی ونیسی چی دهغو په رڼا کی دانقلابی شو را رئیس ددولت پههر اور گان کی په تدریـــج سره دمسؤلو کسانو په ټاکلو سره خپـــل مسؤلیتو نه ښهتر سره کړای شی .

دافغانستان دخلکو دستر مشر له څرگند ونو وروسته دصد راعظم مر ستیال او دبهر نیو چا رو وزیر حفیظ الله امین دانقلابی شورا او حکومت دوظیفو دسمون په قانون او د قانون جوړولو په طرز العمل کی دتعد یل متن پـــه

شپږ ومادو کی او ددغه قانون ددوهم فصـــل
په پیل کی دیو پرا گراف په زیا ټو لو سره
غو ښتل ته ولو ست چی‌په هره ماده یـــــی
دانقلا بی شورا غړیو په جلا جول بحث او خبری
وکړی او دغه تعد یلو نه‌یی دړایو په اتفاق
تصو یب کړل .

ملگرو !

نن دحمل اووم‌دی‌دهری میاشتی اوومه زموږ
دپاره ډیره یوه مبارکه اونیکه‌ورځ ده. دثــــور
په اوومه موږ ستر انقلاب وکړ اونن دحمل‌په
او ومه موږ داسی عالی دفاعی کمیټه جــــوړه
کړه چی واقعا دهغه انقلاب ددفاع په لاره کی
ډیر ښه اوپه زړه پوری خدمتو نه وکـــــړی
اوداخدمتونه به دافغانستان دخلکو دسعادت د
پاره ډیری په زړه پوری نتیجی راوړی ، په
تیره دهغی ټولنی دجوړولو دپاره چی زموږ
او ستا سو ارمان دی . دا ارمان به‌تر ډیره
دوام ونه کړی ځکه چی دا ارمان به پوره شی
او ډیر ژر به پوره شی .

یعنی دبی استثماره ټولنی دجوړولو دپاره
به‌ډیری هلی ځــلی‌وشی اوددی کمیـــتی پــــه
لارښو ونه او دافغا نستان دخلکو په ملا تـړ
او ددوی دمیړ نو مبا رزینو په واسطه بــــه
زموږ دا مقصد ژرسرته ورسیږی ځکه دحمل
په اوومه مو لکه دثور ستر انقلاب دغسی یوبل
اوچت گام واخیست چی هغه البته دانقلاب‌د
سا تنی دپاره دی .یوبل انقلاب شمیر ل کیږی.

بله خبره د اچی موږ دغه تعد یلو نـــــه
راوستل له هغه ځخه هم یومقصدلرو، مقصد
مودادی چی په افغانستان‌کی داد دولت شکل
لږ تر لږه نه بلکی بیخی دمو کرا تیـــک

شی یعنی دد مو کراسی خوا ته نور هـــــم
گا مو نه او چټ شی او ددولت ددر یو ارگانو
په مینځ کی داپولـــی لږ ځه نوری هم مشخص
او سره جلا شی او دهغو دپاره او دهغو پــــه
راس کی داسی کسان راشی . یعنی کاریی
وکړی چی نتیجی یی واقعا دخلکو په گټـــــه
تمام شی . نوددی مقصد دپاره مخصوصا په
اجرائیه قوه کی چی موږ غوا ړو نوره هـــم
فعاله‌شی او نور ه‌هم پر مخ ولاړه شی ضرورت
لیدل کیږی . چی‌ددی دپاره لومړی وزیر باید
ره وټا کم .

ددی کار له پاره ما ملگری حفیظالله امین
چی زموږ پخوانی ډیر زړور او پیا وړی ملگری
دی .په نظر کی نیو لی دی.

ملگری حفیظ الله امین تر انقلابه دمخــــه
هم په حزب کی له موږ سره ښی‌همکاری کړی
دی اوښی مبارزی یی کړی دی .

واقعا دغسی همکاری او مبارزی ټولو ملگرو
کړی دی ، په‌دی کی شك نه‌شته امادم هـــم
پـه دی لاره کـــی ستـره برخـه اخیستـــی ده
په تیر ه بیـــا لــــه ا نقـلا بـــه د مخه ا و
همدارنگه دانقلاب په‌ورځ هم، حزب قومانده
دده په واسطه ورکړه او البته دا انقلاب عملی
شو. دا می ځکه یاده کړه چی یو گروپ
اشرافیان هم له موږ سره وو .چی هغـــــو
ویل چی موږ هم‌په ار دوکی کار کوو مگـــر
هغوی په هغه شپه په تی خانه کی پټ پراته
وواوچای یی ځښلی خوزموږملگری حفیظ الله‌ـ
امین په هغه وخت کی چی دځو سا عتـــــو
دپاره خلاص ؤ هغه دگوند لارښوونه په ډیره
میړانه او جرات سره عملی کړه ده له‌انقلابه
دمخـــه هم ښه همکاری کـــړی او دانقلاب په

جریان کی یې هم دگوند دلار ښو نو په
اساس ښه اقدامات وکړل .

بیا له انقلابه وروسته هم واقعاً تر دا
او سه پوري یې داسي کارونه کړی دی چی
دستا ینی وړدی .

دا ملگروته هم معلو مه ده اوماته هم
معلومه ده چی په دغه موده کی یی ستونزوته
ښه اوږه ورکړی ده او ددولت دچا رو په
پر مخ بیو لو کی یې له موږ سره ښه پوره همکاری
کړی ده ،نو ځکه چی زموږ او ستا سو
پوشعار دادی چی هرچاته داستعداد او دهغه
دکار په اندازه نودده پخوا نیو کارو نو په
ده باندی زموږ باور او اعتماد ډیر کړی دی.

زه ښه باور پری لرم او ماد خپل باور په
رڼا کی ده ته داوظیفه وسپار له . زه هیله لرم
چی که پخوا غوندی به داوظیفه په ښه توگه
اجرا کړی دگوند ټول ملگری او دولتی ټول
ار گا نونه به هم له ده سره ښه پوره همکاری
وکړی البته موږ او تا سو ټول یو موټی
او یو لاس یواو دثور دانقلاب دنتیجو د لاس
ته راو ستلو دپاره مخ په وړاندی ځو او زموږ
دوړاندی تگ په لاره کی البته ډیر خنډونه
هم اچول کیږی ډیری دسیسی جوړ یږی خو
هیڅوک ددی ستر سیلاب مخ نه شی راگرځولی
اودافغانستان خلك به هیڅوخت هیڅکله بیا
داسی ونه کړی چی دمر تجعینو ښکار شی
اودامپریالیستانو په دام کی بیا دپخوا کلو -
نو غوندی ښکیل شی پخواهم په افغانستان
کی یو لړ نهضتونه را پیدا شوی وخو هغه
نهضتونه دامپر یا لستانو لخوا شنډ شول او
توره ارتجاع دلته راغله ، توره ارتجاع داسی
ده لکه توره لنډی .

لنډی داسی یومارده چی که هرڅوك وچیچی
هغه ایری کیږی ، دااخوانیان دامتعصبین
هما غسی توره لنډی دی . چی دا فغا نستان
ملت یی چیچلی ؤ او واقعاً دډیر وخت له پاره
یی ددوی دپر مختگ مخه ونیو له خود اگل
دالنډی په اصطلاح اوده شوی ده . او دلته
داسی گو ند او داسی دولت منځ ته را غلی
دی ، چی دا ماران یعنی دغه مضر اشخاص
نور نه شی کولی چی دافغا نستان خلــــك
ایری کړی. دافغانستان خلك به مخ پهوړاندی ځی
اودثور دستر انقلاب په رڼا کی اوخپل گوند اوخپل
دولت په لار ښو ونه چی البته دولت دگو ند
له خوا رهبری کیږی هغسی کارونه به
وکړی چی دافغانستان خلك په دی پوه شی چی
دثور داووم انقلاب او دگوند دتا سیس او
دانقلابی شو را پر یکړی واقعاً ددوی دسعادت
او نیکمر غی دپاره ستر گا مو نه وه او دا
گا مو نه به واقعاً په سر وزرو سره دافغانستان
په تاریخ کی ولیکل شی . زه ملگری امین ته
بیا ستا سو دټولو په وکالت هم تبر یـــك
وایم او هیله من یم چی خپله وظیفه اشغال
کړی او دمقرراتو سره سم کابینه جوړه کړی
او او سنی وزیران صاحبا ن به تر هغــــو
پوری چی نوی کابینه جوړ یږی خپلو کارونه
دوام ورکړی ، کوم وخـت چی نـوی کـابینه
جوړه شی هغه وخت به هر څوك خپل کار په
غاړه واخلی دافغانستان دخلکو دستر او انقلابی

مشر دانقلابی شورا درئیس نورمحمد تره کی له خر گندونو وروسته لومړی وزیر حفیظالله امین یوه وینا وکړه زیاته یی کړه .

دخپل ستر او ویاړلی لارښود په اجازه .

خر نګه چی موږ ټول ستا سو درهبری او لار ښوونی په رڼا کی پاخه شوی یواومخ په پخوالی روان یو او دا مو افتخاردی چی ستا سو هدا یتو نه، دستورو نه او لارښوونی مود خپلی استعداد او توان په اندازه عملی کړی دی .

موږ چی هرڅه بر یالیتو بونه لاس ته راوړی دی ،تر ټو لو لومړی ستا سو دخلاقی اوله افتخاره ډکی لار ښوو نی څخه الهام اخلی او په هغی باندی متمرکز دی او دا زموږ افتخار دی چی ستا سو اعتماد له ځان سره لرو ،داستا سو اعتماد په موږ باندی موږته داجرأت راکوی او دا قوت را بخښنی چی ستاسو له ارمان سره سم دافغانستان خلکو ته خد مت وکړ واو ستا سو لار ښو ونی په عمل کی پلی کړو .

زه په ډیر افتخار سره دا څر ګند وم چی دافغا نستان خلك نیکمرغه دی چی دغسی یوه عالم دتجربو خاوند اودپوره اطمینان وړ لارښود لری چی یوه نه هم هیڅ ډول تشویش وجود نه لری ، نه یی در لود او په را تلو نکی کی دداډول تشو یش امکان نه شته .

زموږ له پاره تاسو داسی تکیه یاست لکه چی پښتانه وایی «په غره باندی تکیه لرو» او ستاسو ترلارښوونی لاندی په ستاسو پخوانی ملګری ، ستاسو پخوانی پیروان ، ستاسو وفاداره شاګردان په زړورتیا سره شو له .ددی ختم اعلانوم ، مګر دابه په مخ باندی ځی څکه چی ستا سو لارښوونی، ستاسو رهبری ددوی لاررڼاکړیده او رڼا کوی یی .

نوزه ستا سو له حضوراو دانقلا بی شورا دپیاوړ اومبارزوګرانو ملګرو سره تعهد کوم چی ستا سو له ار مانو سره به سم زه د افغا نستان دخلکو دخد مت په لاره کی دژوند یو بخرکی هم ونه سپموم او بیا هم ډیر ویاړم چی له همد غی شیبی نه لکه چی پخوا موستاسو لارښودنو څخه استفاده کړی ده په راتلو نکی کی به هم ستا سو له لار ښو ونو سره سم حرکت کوم همدغسی می چی پخوا وفا دار ی ښو دلی ده هما غه شان به په راتلو نکی کی هم وفا داری ښیم او بیا په دی ویاړ م چی دشلو کلو نو څخه په زیات وخت کی تاسو زما استاد یاست او ستا سو اعتمادمی درلود په آینده کی به هم ستا سو دغسی اعتماد له ځان سره سا تم او عمل به پری کوم .

دلومړی وزیر حفیظ لله امین د څرګندونو وروسته ستر لارښود وفرمایل :

ډیر تشکر ستا سو په کار او ستا سو په بریالیتوب زه یقین لرم او زما پری باوردی .

که می باور نه لرلای داکار می نه کاوه زه یقین لرم چی ما غلط نه، بلکی سم ګام اخیستی دی هروخت چی می سم ګام اخیستی دی ښه نتیجه به ورکړی ده داسم ګام می هم چی اخیستی دی ښه نتیجه په ورکړی .

دا تاریخی غونډه دحمل په اووم دادهتشکیل

دافغا نستان د خلکو په تاریخ او خاطر اتوکی تل ځلانده وی اولکه دثور اوومه ، دحمـــل اووم به هم داسی په یاد لری البته موږ پــه دا یوه کال کی خو را ډیری ښی ورځـــی تیری کړی دی .

پهدغه یوه کال موځینی ورځ ورځ با اهمیتــه وه مثلا پــه لســم دثورپه افغانستان کی یو بیساری دولت منځ ته راغی هغه دافغانستان دموکراتیک جمهوریت و دغه کار دافغا نستان په تاریخ کی ساری نـــه در لود .

دا دولت دلو مړی ځل دپاره په دغه ورځ کی تا سیس شو ،بیا هغه کارو نه چی دلتــه دولت او گوند وکـړل هریو یی نه یـــوازی زموږ دویاړوړدی ، نه یوازی دافغانستان دزیار ایستونکو دویاړ وړدی ، بلکی دټولـی نړی د زیار ایستو نکو دویاړ وړدی .

هر فرمان چی تاسو واخلی مثلا شپږم، اووم اتم فرمانونه او دا اوسنی قانون او ځینی نور قوانین چی منځ ته راغلی دیداواقعادافغانستان دټولنی په وده کی ستر اثر لری او دافغانستان دټولنی وده ده او موږ او زموږ خلك دنړی ټولو زیار ایستونکـو ته وعده ورکـوو چـــی دافغــانستان زیار ایستونکـــی خلـك به تـل ددوی سره دورورگلوی او حتی دملگـــری په څیر په یوه لیکه کی ودر یږی او دټو لـــو ارتجاعی او امپر یالیستی قو تو پرضد بهداسی مبارزه وکړی لکه دوی چیېی کوی اد لکـه هرمترقی انسان چی یی کوی . دامبارزه هـم زموږ دمفکوری په اساس ده اوهم زموږددولت دپروگرام په اساس ده اوهم زموږ دگـونـد دمرام په اساس ده .

دافغانستان دد مو کراتیك جمهوریتدانقلابی شورا فوق العاده غونډه چی په یوه پـــوره دمو کرا تیکه فضا کی وشوه دانقلابی شـورا دغړیو داحساساتو په ځرگندولـو او چکچکو سره پای ته ورسید ه .

۸ر۱ر۱۳۵۷

## دافغا نستان ددمو کرا تیــــك جمهوریت دهیواد ددفاعدعالی شورا قانون :

دامپر یالیستی هیواد ونو، دبین المللیاو داخلی ارتجاع دگوډاگیانو او عناصرو ورا ـ نکاری دفعالیت دتجدید پهپام کی نیو لوسره دداخلی اوبین المللی وضعیت تحلیل ، دخلکو دوسله والو قواو ود سر حدی او ځارندوید قوتونو دغوخ استعمال، او دسفربری داحضار ـ اتو دمسا یلو دحل ،دعسکری نویو قطعا تـــو دتشکیل او دقطعا تو دمادی او تخنیکـــــی دتا مینا تو ، پوره په وخت او زمان کی یی دتخنیك اونوی محاربوی وسلیدتامین اوبرابر ـ ولو او دهغو دما هرانه استعمال او داحضاراتو په دایمی اوږده حالت کی دهغو دسا تنـــی، د محا ربوی فعا لیتو نو دسیمو دتا سیساود ټول هیواد له زیر مونه داستفاد ی په مقصد دتد بیر ونو نیول ایجا بوی چی زموږ دگران وطن افغانستان ددفاع او دهیواد دزیار کښو خلکو دگټو څخه ددفاع لپاره ، او دافغانستان په کورنیو چارو کی دهر ډول لاس وهلواوبه هیواد باندی دبهرنی تیری د دفع کو لو او رټلو په مقصد ، اوبه گران هیواد کی دهـر ډول انقلابی ضد حر کتو نو دله منځ نه وړلو په خاطر دافغانستان ددمو کراتیك جمهور یت

انقلابی شورا (دافغانستان په دموکراتیک جمهوریت کی دوطن نه ددفاع عالی شورا ) تشکیل تائید او تصویبوی چی ترکیب اووظیفی یی په لاندی ډول دی :

لومړی ماده :

دافغانستان پهدموکراتیک جمهوریت کی دوطن ددفاع عالی شورا) په نامه یادیږی .

دوهمه ماده :

دافغا نستان دموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا رئیس دوطن ددفاع دعالی شورا رئیس هم دی .

دریمه ماده :

دوطن ددفاع دعالی شورا دغړی وشمیر ټاکل دهغو ګمارل او بدلول دوطن ددفاع دعالی شورا د رئیس صلا حیت دی .

څلورمه ماده :

دوطن ددفاع دعالی شورا رئیس ، دوطن ددفاع دعالی شورامرستیال یامرستیالان ټاکی .

پنځمه ماده :

دوطن دفاعی قدرت دوطن ددفاع دعالی شورا رئیس له خوادافغانستان دخلکودوسله - والو قوا وود اعلی سر قو ماندان په حیث تمو یلیږی .

شپږمه ماده :

دبرید جنرال اودهغه نه په لوړورتبو دخلکو دوسله والو قواوو دافسرانو ټاکل اوبدلول دوطن ددفاع دعالی شورا درئیس صلاحیت دی .

اوومه ماده :

دامنیت دسا تلو او دانقلابی ضد فعالیتونو دټکو لو لپاره دافغانستان دخلکو دوسلهوالو قوا وونه استفاده دوطن ددفاع دعالی شو را درئیس صلا حیت دی چی بل شخص یا مقام ته هم لیږدول کید لای شی .

اتمه ماده :

دوطن ددفاع عالی شورا دخلکو دوسله والو قواوو دګونډی او محاربوی ارګانونو کو ښینونو دیو راز کولو لپاره لازم اقدامات کوی .

نهمه ماده :

دوطن ددفاع عالی شورا دافغانستان دخلکو په وسله والو قوا ووکی دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند د مرکزی کمیټی دتصمیمونو قوانینو او دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا دفرمانونو ، دانقلابی شورا درئیس دفر مانونو او دوزیرا نو دشورا دپر یکړ و پرځای کول او سر ته رسول څاری .

لسمه ماده :

دوطن ددفاع عالی شورا داردو دپر ونیو محاربوی احضاراتو ، دمرکزیت دیو موټی - توب دټینګښت ،دخلکو دوسله والو قواوو

دافسرانو ورو ضابطـــانو ، سر بــازانــو او ټولو کار کوونکو دسیا سی او معنوی روحیی دلوړولو په هکله او دقطعا تو او جزو تامونو دقو ماندانانو او سیا سی فعالیت کوونکو ډېر زیات تکامل لپاره لازم ترتیبات او تد بیرونه نیسی .

یوولسمه ماده :

دوطن ددفاع عالی شورا داردو ګذارشات چی په‌عادی او فوق العاده غونډو وکی ددفاع دوزیر یالوی درستیز اود افغانستان دوسلـــه‌ والو قوا وو دسیاسی چارو دلوی رئیس له خوا وړاندی کیږی مطالعه او تحلیلوی او په دی هکله لازم تصمیمو نه نیسی چی دافغا نستان دخلکو دوسله والو قوا وو په منظور ی عملی کیږی .

دولسمه ماده :

دوطن ددفاع عالی شورا دافغانستان داردو کلنی بودجی او پنځه کلن پلان تصو یبو ی چی ددولت په بود جو کی یی دانسجام لپاره دمالیی او پلان جوړولو وزارتو ته وړانـــدی کیږی .

دیارلسمه ماده :

دوطن ددفاع عالی شورا دلزوم په صورت‌کی دنظم دتامین او ددفاعی چارو ډېر ښه فعالیت لپاره مقررات تصو یبوی چی دانقلابی شوراپه منظوری داعتباروړ دی .

څوارلسمه ماده :

دغه قانون په رسمی جریده کی له‌خپریدو وروسته نا فذ یږی .

۸ر۱ر۱۳۵۸

## دانقلابی شورا اوحکو مت دوظیفود سمون اوقانون جوړولو دطرزالعمل په‌قانون کی تعدیل.

۱ـ دقا نون په متن کی‌دی صدراعظم پـــه (لومړی وزیر) بدل شی .

۲ـ په دوهم فصل کی‌دی (دانقلابی شــــورا درئیس صلاحیتونه)

تر عنوان لاندی لومړی دغه مطلب زیـــات شی:

دانقلا بی شورا رئیس‌دافغانستان‌ددموکراتیک جمهوری ددولت په راس کی‌دی .

او ددغه قانون او نورو قوانیو له حکمونو، او لاندی صلاحیتو نو سره سم دولتی ټو لـــو ار ګا نونوته لار ښوو نه‌کوی .

۳ـ یوولسمه ماده دی داســی تعـــدیـــل‌شی:

یوولسمه ماده :

دلو مړی وزیر ټاکل ، دوزیرا نو دشورا دغړ یو منظور ول ، دهغوی عزل او داستعفا منل .

٤ـ اتلسمه ماده دی داسی تعدیـــله شـــی:

اتلسمه ماده :

دافغانستان دمو کراتیک جمهور ی حکومت ډېری ستری اجرا ئیه قوی په توګه چـــی دلومړی وزیر ،دلومړی وزیر مرستیال یـــا مرستیا لانو او وزیرا نونه جوړه شوی ده‌چی دانقلابی شورا درئیس تر لارښو ونی اوامرونو

لاندی وظیفه پای ته رسوی .

٥ـ نونسمه ماده دی داسی تعدیل شی :

نونسمه ماده :

حکومت دکل په توگه انقلابی‌شوراا‌ودانقلابی شورا رئیس ته اوهم دحکو مت هر غړی په مستقیمه توگه دخپلو وظیفو دپای ته رسولو په ارتباط دانقلابی شورا رئیس ته مسؤلیت‌لری.

٦ـ یوویشتمه ماده دی داسی تعدیـل‌شی:

یوویشتمه ماده :

که چیری قانون بل ډول نه‌وی ځر گنده‌کړی دوزیرانو دشورا تصویبونه دانقلابی شـوراد رئیس له منظوری وروسته داعتبار وړدی.

یادونه: دغه تعدیل په‌رسمی جریده‌کی له خپر یدو وروسته نافذ یږی .

۲٦ر۱ر٥۸

دوزیر انو شورا دکابل ښار دتفصیلـــی پلان پروژه داستملاك اوپلو رلو قانون تصـــو یب کړ .

دخلکو دستر مشر دافغانستان دخلکـــــو ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی د عمومی منشی او دانقلابی شورا درئیس نورمحمدتره‌کی په مشری دوزیرانو شورا دخلکو په کور کی غونډه وکړه .

دغو نډی په‌پیل کی دخلکو ستر مشـــر دافغا نستان دخلکو دد موکراتیك گو نـــد دمرکزی کمیټی عمومی منشی او دانقلا بـــی شو را رئیس نورمحمدتره کی دهیواد دکورنیو حا لاتو او بین المللی مسا لو په‌باب دوزیرانو شورا ته لنډ رپوټ ورکړ ورپسی دوزیرانـــو شو را دهغو موضو عگا نوپه باب دخبرو پـــه

ترخ کی چی د دایرو او وزارتونو له خـــوا پیشنهاد شوی وی ددغو مسئلو په باب‌پریکړه وکړه .

دپلان جوړولو دچا رو دوزارت دپیشنهاد له

امله پریکړه وشوه چی دانحصار اتو کوپراتیف ارزاقو اوعامه اړتیا وو ریا ستو نه دی چی

دسو داگری فعالیت لری دهغو دتشکیل او بودجی سره دسودا گری په وزارت پـــوری وتړل شی .

دوزیرانو شورا دعد لیی وزارت دپیشنهـــاد له مخی د ۱۳٥۷ کال دماستر پلان په اساس دکابل دښار تفصیلی پروژو داستملا ك اوپلورلو قا نون تصویب کړ چی دانقلا بی شورا درئیس دحضور له منظوری ورو سته د تقنینی فرمان په توگه په رسمی جریده کی خپریږی .

د ترانسپورت دوزارت دپیشنهاد له املـــه

دوزیرانو شورا پریکړه وکړه چی دما لیـی وزارت دی دانفرادی ترانسپور تو نو دپورورو دولتی موسسو له تخصیصو څخه مر بو طـــی پیسی دترانسپورت وزارت ته ولیږ دوی چـــی

ډیر ژر دهغو انفرادی ترانسپورتونو حقو ق ور کړی چی انفرادی ترانسپور تونه پـــه داړ ه زړه او ددولت په همکاری سره خپلـــو فعالیتو نوته دوام ور کړی .

دغه راز دوزیر انو شورا په‌خپله غو نـډه کی دیو لړ نورو مو ضو عگا نو په باره کی تصمیم ونیو اومربوطو وزا رتونو ته ئـــی لارښو ونه وکړه .

سفرت

نور محمد تره کی

منشی عمومی کمیتهٔ مرکزی حزب دموکراتیک خلق افغانستان رئیس شورای انقلابی و صدراعظم

جمهوری دموکراتیک افغانستان به

اتحاد جماهیر شوروی سوسیالیستی

استبداد اوبی عدالتیو څخه دخلکودخلاصون او ددوی لپاره دښه ژوندانه دبرابریدلو په خاطر د سیاسی گوندونو اهمیت اوگټور توب بیا ن شوی و د (انگار )دجر یدی په تعقیب د (وطن )او (ندای خلق) جر یدی هم را وو تلی چی ورو سته یی په خپلو نو مونو سره دگو ند نو دجو ړید لو رول ولو باوه.

په دغی موده کی چی سیاسی فعا لیتو نه په هیواد کی سر ته رسید ل مخصو صاً دویښی زلمیا نو اثر په هیواد کی ډیر خپریده په‌پا ر لمان کی هم دآزادی غو ښتو نکو دمبا رزو اثر پیدا شو او دافغانستان دد غی مودی په تاریخ کی دملی شورا دا وومی دوری رو ښنا نه نوم پا تی شو .

دغدار نا در کورنی دغو مره آزادی هم زمو نږ په خلکو باندی نه لورو له ،نود ظاهر او داود بل ټکمار تره شاه محمود استعفاوکړه او ستمگر داود صد راعظم شو .

په دی وخت کی لو مړی (بغداد )او بیا (سنتو) چی دامپریالیزم تیری کوونکی نظامی پکتونه دی په غوره کی وو او هغو هیواد ونو چی په امپر یا لیستی نظامی‌پکتونو کی نه وو ، دامپر یالیزم منا سبی مر ستی یی نشو ای تر لاسه کولای دافغانستان دولت مجبور شو چی داقتصادی ودی لپاره له دوستو سو سیا لیستی هیوا دو څخه مرسته واخلی، څرنگه چی دغه مر ستی بی له قید او شرط څخه وی او مؤثری واقع کید لی ، نو په هیواد کی څه ناڅه‌لو یی لاری جوړی شوی، تر بیوی مؤ سسی منځ ته راغلی او تو لیدی قوا وو هم نسبی وده وکړه .

په افغا نستان کی دتو لیدی قوا وووده‌ید کار گری نهضت دپیا وړی کید لو او دکار- گری گوند د جوړیدلو له پاره نسبی مادی شرایط برابر ول دغه وخت‌نورمحمدتره‌کی په ډیر ژور کار سره ډیر متر قی اد بیات خپاره کړل چی دځوانانو او وطن پا لو نکو روښنفکرانو پام یی طبقاتی مبارزی ته وروا ړ اوه . په هیواد کی ورځ په ورځ دکار- گری طبقی دوران جوړ ونکی ایډیا لوژی ته ځوانا ن جلبید ل دلته بیا امپر یا لیزم په تو طئو لاس پوری کړ اوله سلطنتی در باره سره په داسی معا مله کی راغی چی با ید افغانستان ته د سوسیالستی هیوادو دبشر- غو ښتنی مطا بق مرستو مخه ونیو له شی، نو یی دد مو کراسی په نامه تغییر منځ ته را وست .

## ددمو کراسی په‌نامه تحول

له یوی خوا داودی استبداد او اختناق ،له بلی خوا دتو لید ی قوا وو نسبی وده او د کا رگری گوند دجو ړ ید لوله پاره دمادی‌او ذهنی شرا یطو دبرا بر یدلو په نتیجه دظاهر داودرژیم پداسی توطئه‌لاس پوری‌کړچی داود استعفا وکړه او غو لوو نکی دمو کرا سی منځ‌ته راغله چی په اقتصادی چارو کی بیرته دامپر یا لیزم خوا ته مخه شوله او پلان شوی- اقتصادی ذهنیت هم ډیر ضعیف کړای شو .

دظاهر داود رژیم او امپر یالیزم دا سی چال جوړ کړی وچی دد مو کراسی‌په نامه بدلون سره دا سی شرایط منځ ته راوړی چی دکپیتا لیستی ودی له رنځو نو ډکه اوږده‌لاره

با ندی لاړ شی او هغه امکا نات چی دکار گر ی طبقی دگو ند جوړ ید لو له پاره منځ ته راغلی وو له منځه یو سی، ترڅو خپل فا میلی او طبقاتی تسلط لا ډیر پسی اوږ دکړی ، دد مو کرا سی په نامه بد لون د ۱۳٤۲ کال په لومړیو وختو کی منځ ته راغی . دداود داستعفا او دموکراسی په نامه اعلان سره سم نورمحمد تره‌کی په افغا نستان کی دکار گری طبقی د گو ندپه جوړ ولو لاس‌پوری کړ .مترقی رو شنفکرا نو او ځوا نا نو دکار گری طبقی او دبز وگرانو دگټو له مدا فعا نو سره یی لید نی کتنی شروع کړی او حتی چی دهغوی په روز نه کی یی ډیر کو ښښونه وکړل چی ددیروهلو ځلو په نتیجه کی یی وکړای شول چی یو شمیر متر قی شخصیتو نه په هیواد کی پیدا او دکا رگری گو ند دجو ړولو له پاره یی سره را ټول کړی .

په دغی موده‌کی مختلفو عناصرو او محافلو دخپلو طبقا تی گټو دسا تلوپه خاطر په ډلو ټپلو لاس پوری کړ . دظا هر له در بار څخه نیو لی‌تر کمپراد وری حلقو پوری هر یوه زیا ر ویست چی خپل گوند ونه جوړ کړی نورمحمد تره کی چی دکار گری طبقی دوران جوړونکی مشعل یی په لاس کی و، تل یی په علمی سو سیا لیزم باندی دځوا نا نو دسمبا لو لو په خاطر هلی ځلی کو لی‌ډیر جلب او جذب یی درلود او دټو لو سیا سی مخالفانو په نسبت یی په خلکوکی گرانښت په بی ساری توگه زیا تید ه .

د دغه وخت دانتقا لی حکو مت په دوه‌کلنه موده کی نورمحمد تره کی دډیرو شخصیتونو سره وکتل چی دکار گری طبقی د گو ند دجو ړو لو لپاره یی تشو یقو ل او ډیرو ځوا نا نو ته یی دکار گری طبقی دوران جوړو نکی ایډیا لوژ ی ور کړه .

خو یو تعداد به‌یی چی جلب اوجذب کړل څه به بیرته منحرف شول ، که به یی یو- شمیر دعلمی سو سیا لیزم رڼا ته راوکښل، ځینی به یی د کار گری طبقی دد ښمنا نو او استثمار کو ونکو له خوا منحر ف کړی شول .

ځینو به ددی له پاره چی په انقلا بی او طبقا تی مبا رزه کی نورمحمد تره کی ته ما یوسی پیدا کړی ورته به یی ویل چی :«ته دچنگښو من جو ړوی !چی څوټولوی نوری در څخه ټوپ وهی !» خو نورمحمدتره‌کی په پوره انقلابی روحیه او کلك عزم دطبقاتی مبا رزی او دکار گری طبقی په ایډیا لوژی باندی دځوانانو ، کارگرانو ، بزگرانو او نو روزیار ایستو نکو تیا رولو او سمبا لو ته ادامه ور کړه او هم ځینی متر قی افغا نی ځوانان چی دهیواد څخه دبا ندی وو،دنورمحمد- تره‌کی له نظره نه وو غور ځید لی ، چی له ځینو سره یی ډیر کلك ارتباط در لود .

لنډه داچی په دغه انتقالی موده کی د نور محمد تره کی هلو ځلو دا سی نتیجه ور کړه چی دمتر قی انقلا بی ځو انانو داسی حلقی جو ړی کړی چی دکار گری طبقی دایډیا لوژی په اسا س هر څه تحلیل اوپه

خپلو منځو کی منظمی لید نی او کتنی شروع
کړی او عملا یی دکار گری طبقی گو نـــد
ددغو حلقو په موجود یت سره تا سیس کړ.
کله چی په افغانستان کی دعلمی جهان ـ
لید په اسا س گرو پونه او حلقی منځته راغلی
او ملگری نور محمد تره کی دافغانستان دخلکو
ددموکـراتیک گـوند عملا تاسیس کــړ نو
پدی فکر کی شو چی څنگه دغه دکار گـــری
طبقی دگو ند کا نگره جوړه کړی ؟

با ید وویل شی پدغه وخت کی له هیواد
څخه دبا ندی ځوا نان چی دمتر قی پرنسیپونو
په اسا س دنظر وړ وو، هم ددغه شان گروپو
په څیر دنورمحمد تره کی په نظر کی وودلته
هم د دغه پیا وړی مبا رز زیار او تکلیف داسی
نتیجه ور کړه چی په یوی کار گری گو ندی
کا نگره کی ددغو ټو لو گو ندی حلقـــــو
او گرویو نو دیوځان کیـدلـو نهضـت ورځ
په ورځ پراخه کیده دغه وخت نورمحمدتره کی
مطئمن شو چی اوس نو دکار گری طبقــــی
دگو ند کا نگره جوړ ولای شی .

نورمحمد تره کی دغه ټولی گونـدی حلقی
داسی ترتیب او تنظیم کړی ، چی دکار گری
طبقی دگوند دکا نگری له پاره نما یند گان
وټاکی ،داکار هم دنور محمد تره کی پـــه
خلاقه او ابتکار ی لار ښوو نه سر تـــــه
ور سید او ددیر شو کسو په شا او خـــوا
ددیر شو حلقو څخه چی هره حلقه یی۷ـ۱۰
کسو پوری وه ،دگو ند دکا نگری دجو ړولو
له پاره نما یند گان وټا کل شول .نورمحمدـ
تره کی سر ه له دی چی تل خپل داعتماد وړ
هغه ملگری چی په خارج کی وو ، پـــــه
نظر کی در لودل ،دکا نگری ورځ یی وټاکله
او دغه نما یند گان یی ورو بلل .

## دافغانستان د خلکو د دموکراتیک گوند لومړی کانگره :

د ۱۳۴۳ کال دجدی په ۱۱ نیټه د (۱۹٦٥
عیسوی کال دجنوری په لومړی ورځ) دکابل
دښار په شیر شاه مینه کی دنور محمدتره کی
په کورکی دافغانستان دهغو متر قی ځوا نانو
نما یند گان دکار گری طبقی ددوران جوړونکی
ایډیالوژی په اساس سره را ټول کړی شول
او دکار گری طبقی دگوند لو مړنی کانگره
یی جوړه کړه .

پدغی کانگره کی لومړی مؤقت رئیس وټاـ
کل شو . بیا دکا نگری غړ و ځا نو نه معرفی
کړل .دافغا نی ټو لنی په هکله یی خپـــــل
نظر یات وو یل او دکار گری طبقی دایډیاـ
لوژی پهاساس یی دگو ند دجوړولو پـــــه
باره کی خبری وکړی . په دغی غو نډ ه کی
تر ټو لو ډیرمؤ ثر شخصیت دگو نـــــد
موسس نور محمد تره کی وچی هر غړی ته
روښانه بریښیده ، هریو دهغـه پهسیاســی
تقوا ،له ویاړه ډکی سا بقی ،انقلا بی اومترقی
آثار واو داوږدی مودی سیا سی تجر بـــی
باندی ښه پوه و. پهدغه کانگره کی ملگری
نور محمد تره کی دملی او بین المللـــــی
مسا یلو پهشاو خواکی مفصله وینا وکړه

اوپه همدی وخت کی ملگری تره کی سور بیرغ دکا نگری پر تر بیون وغو ړاوه چی دټو لو غړ وله خوا په‌خو را تو دو چکچکو استقبال شو .

له دی ورو سته کا نگری دګو ند دجوړولو دتا ریخی ضرورت په اسا س دګو نـد ستر اتیژیك او غایی هد فو نه وټا کـل او دمر کزی کمیټی له پاره یی دګو نـد دسترا تیژیك مرام دجو ړولو په خا طـر لارښوونی تصو یب کړلی ،چی ددغو پـه اسا س دګو ند سترا تیژیك هدف پـه افغا نستان کی دملی دمو کرا تیك انقلاب داسی سر ته رسو ل ووچی دغیر کپیټالیستی ودی دلاری په ټاکلو سره غایی هدف ، یعنی دسو سیا لستی ټو لنی ودانو لوته ور سیږی همدا ډول یی په سیاسی ، اقتصادی ،اجتماعی او کلتوری چاروکی دمرکزی کمیټـی لـه پاره‌لارښوونی وکړی ددی له پاره چـی دکار ګری طبقی ګوند په قانونی ډول اودمترقی علمی جهان لید په اساس فعالیت وکړی‌دګوند داساسی مقر راتو (اسا سنا می )دجو ړو لو له پاره یی داسی لارښوونـی وکـړی چـی دهغو په اساس هم ګوند خپل فعا لیـت‌ته دوام ور کولی شو او هم مرکزی کمیته یی‌له کوم تردد او شـك څخـه دګـوند مفصلـه اسا سنا مه جوړولی شی .

کا نگری دپو رتنیو لار ښوو نوسره سـم دګو ند نوم (دافغانستان دخلکو دمو کرا تیك ګو ند )تائید کړ خو باید وویل شی چـی تل دملگری نورمحمد تره‌کی او ببرك کارمل تر منځ دغه اختلاف ؤ چی ملگری نورمحمد تره‌کی به ویل چی د ګو ند نوم‌دی(دافغانستان د خلکو دمو کراتیك ګوند )وی او ببرك‌کارمل هغه نه‌مانه اوویل به‌یی‌چی (دافغانستان مترقی ګوند )دی وی .

چی خبره د (خلکو )په سروه تر څو چـی کا نگری هم په دی هکله دملگری نورمحمد تره کی نظرو مانه او هم کا نگری‌پـه دمو کرا تیکو پټوا نتخابا تو سره دمر کزی کمیټی لـه پاره اووه اصلـی او څلـور علی‌البدل غړی وټا کل په دغو انتخا با تو کـی یـوازی ملګـری نورمحمد تره‌کـی درایو په اتفا ق دمرکزی کمیټی په غړ یتوب بانـدی وټاکل شو . دمرکزی کمیټی نور ټول غـړی د رایو په اکثریـت وټـا کـل شـول نـه درایو په اتفاق ور پسی د کنگر ی دنوروغړو په مخکی ، مرکزی کمیټی لو مړی پلینـوم دایر کړ چی په هغه کی هم ملګـــری نورمحمد تره کی درایو په اتفاق دافغا نستان د خلکو د د مو کر ا تیك ګو ند د مرکزی کمیټـی د عمـو مـی منشـی په تـو ګـه وټا کل شو .

له دی وروسته دافغا نستان دخلکـو دمو کراتیك ګوند دملګری نورمحمدتره کی تر مشری لاندی طبقاتی مبا رزه په مخ‌بو تله او دکار ګری طبقی دد وران جوړ ونکـی ایډیا لوژی په مطابق یی خپلو فعالیتو نو ته دوام ورکړ .

## دافغانستان د خلکو ددموکراتیک گوند له لومړی کانگری وروسته:

کله چې لومړی کانگره پای ته ورسیدله دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند مرکزی کمیټی دخپل عمومی منشی ملگری نورمحمد تره کی تر مشری لاندی د گوند دپراختیا علمی سو سیا لیزم دخپرو لو اوطبقاتی مبارزی دتشدیدولو په خاطر په جدی مبارزو یا ندی لاس پوری کړ .

ددی مقصد له پاره یی داسا سنا مه در طرحه کولو داقدام سره سم دمرکزی کمیټی نور ار گا نونه لکه دتیوری کمیسیون، دکنترول کمیسیون، مالی کمیسیون اود تشکیلاتو کمیسیون هم جوړ کړل .

دا سا سنا می طر حه ،ملگری تره کی ولیکله چې یو ټاکلی کمیسیون وکتله او غور یی ور باندی وکړ اوله هغی سره سم دهیواد په ولایا توکی گوندی ساز ما نونه عیار یدل دگو ند مرکزی کمیټی په هره هفته کی یو ځل خپلی غو نډی کولی .

دگو ند دجو ړید لو آوازی پور ته شوی او خپرو نو یی دهیواد په داخل او خارج کی انعکا س ومو ند .

گو ند په خپلو فعا لیتو نو او مبا رزو کی بوخت و، چې دولسی جرگی دولسمی دوری له پاره په ۱۳۴٤ کال کی انتخابات را ورسیدل ملگری نورمحمد تره کی دمرکزی کمیټی عمومی منشی هم دغزنی دمقر دناوی په انتخا با تی حوزه کی کاندید شو .ډیر نور ملگری دهیواد په مختلفو انتخا با تی حوزوکی کاند ید شول . په انتخا باتو کی ددولتدډیری بی شر می څخه ډکی او خا ینا نه مدا خلی له امله دملگری تره‌کی دبر یالیتوب مخه ونیو له شوه دملگر ی حفیظ الله امین د بر یالیتوب مخه همونیو له شو ه چې دپغمان په حوزه کی کا ندید ؤ .

ملگری عبدالحکیم شرعی چې دجوز جان ولایت دسر پل په انتخا باتی حوزه کی کاندید و، هم پری نښودل شو چه بریالی شی ، یوازی ببرك کارمل دکابل په ښارکی، نور احمد نور دکند هار په پنجوایی کی او دننگرهار د روداتوپه حوزه‌کی فیضان ـ الحق اوپه کابل کی ډاکتره اناهیتا، که څه هم چې هغه وخت دگو ند غړ یتوب یی‌نه درلوډ خو گوند دفاع ور څخه کو له بر یالی اعلان شول . په دی ډول پار لمانی مبارزه‌کی دافغانستان دخلکو دمو کراتیك گوند ډیره موثره اوفعا له بر خه واخیستله ځکه خپله دگو ند دمرکزی کمیټی عمومی منشی ملگری نورمحمد تره‌کی هم کاندیدو، په همدی لحاظ دپارلمانی مبارزی په چوکاټ کی دخلکو دطبقاتی مبارزی دپر اختیا له پاره ډیره گټه واخیستله شو ه .

د۱۳٤٤ کال په ورو ستیو ور ځو کی دملگری نورمحمد تره‌کی د ډیرو کلکو هلو ـ ځلو په نتیجه کی دگو ند مرکزی کمیټی دگوند دیوه مرکزی نشراتی ار گان له خپرو لو سره موافقه وکړه په مرکزی کمیټه کی ملگری تره کی ددغه شان ارگان په لر لوډیر ټینگار او ببر ك کارمل کلك مخالفت ورسره کاوه ، ترڅو چې دملگری تره کی ابتکار تائید شو .

مرکزی کمیتی وپتیبله چی ددغه نشراتی مرکزی ارگان نوم دی (خلق) وی دخلق‌مرام چی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك مرام و ، ملگری تره کی ولیکه چی دډیرو بحثو نــو څخه ورو سته دمرکزی کمیتی لخوا تائـبد او وروسته بیا په گوند ی کنفرانس کی دغه مرام طرحه شـــو او داوږ دی مبـاحثی پـه نتیجه کی دگو ندی کنفرا نس له خوا تائید شو .

د۱۳٤٥ کال دحمل دمیا شتی په ۲۲د(خلق) دخلید ونکی جریدی لو مړی او دوهمـــــــی گڼی سره یو ځای دهغی دمو سس ملگری نورمحمد تره‌کی په امتیاز او ملگری حسن‌بارق شفیعی په مسوول مدیریت له چاپ‌څخه‌راووتلی او په ټول هیواد کی خپری شوی‌چی د(خلق) نوم یی په سره رنگ و .

دخلق دجر یدی په لو مړیو دوه گڼو کی دافغانستان دخلکو دد مو کراتیك گوند مرام خپور شو .ددغی درندی جریدی خپر ید لو دهیواد په سیا سی مبا رزو کی با لکل‌یونوی پړاو پرانست طبقاتی مبـارزه ، سره وځلیدله اود خلکو او دهغو دد ښمنو تر منځ یی سره کر ښه وکښله له دی وروسته هر څـــوك پیژندل‌کیدل چه په‌خلکو کی‌دی او‌که دخلکو‌په دښمنو کی !

د(خلق جریده چی هره دو شنبه خپــر ـ یدله ،دملگری نور محمد تره‌کی له خو اپـــه لیکل شو یو سر مقالو یی په هیواد کی خاص اثرو اچاوه اود خلکو ددمو کرا تیك گو ند موقف دخلقی مبارزو ما هیت او دخلکـو دد ـ ښمنو تو طئی یی ډیری ښی رو ښنا نه‌کو لی ددی سری انقلا بی جر یدی خپر یدل دظاهر سلطنت ، دهغه دربار یانو ، دامپر یالیزم‌گو ـ ډاگیا نو او دفیو ډالیزم سا تو نکو ونشو ای زغملی ،نو یی دشپږمی گڼی له خپر ید لو سره سم دظا هر شاه په هدایت ،میوندوال صد راعظم ملگری تره‌کی دوزیرا نو غونډی ته ورو باله اوور ته یی وویل چی په خپلـــه خو ښه د(خلق)دجر یدی خپرو لو ځنـــډوی ملگری نورمحمد تره کی دوزیرا نوپه غونډه کی په ډیری میړانی او عالی‌روحیی ور تـــه وویل چی : (مرگ منی خودخلکو دگټوپـه ضد به هیڅ ونه کړی دخلق دجر یدی‌دخپرونو ځنډول دافغانستان له خلکو سره کلکه‌دښمنی ده) هماغه ووچی ظاهر شاهی نظام دتوطئـــی بله لارونیوه او په پارلمان کی یی داســــی فضا ایجاد کړه چی دولت په هغی اتکا وکړی او دخلق دجر یدی خپرو نی منع کړی لـــه همدی لاری سلطنت په ډیری بی شرمی‌اوسپین ستر گی د (خلق )رڼه ځلید ونکی جر یده دهغی له شپږمی گڼی څخه وروسته نوره‌پری نښوده چی خپره شی .

ددی جر یدی دمنع کولو دپاره حکو مـت د ۱۳٤٥ کال دجوزا په (۲) نیته رسمی اعلامیه خپره کړه .

د(خلق) دجر یدی بند ولو دافغانستان پـه زیار ایستو نکو خلکو باندی ډیر ستراثروکړ دافغانستان دخلکو ددمو کرا تیك گونــــد گرا نښت او دریغ په‌زیار ایستو نکو کـــی ډیر پراخه او لوړ شو . په خلکو کی دگوند

جذب ډیر پراخه او ډیر ګړندی شو .

ګوندی سازمانونه په چټکی سره ډیر - یدل او لوییدل دګوندد غړو شان پیاوړی کیدل دخاکمو طبقو در هبری کو ونکومحافلو له پاه دزغملو وړنه وو ، دګوند په ضد مبارزو او تبلیغاتو ته یی زور ورکړ چی متاسفانه په ګوند کی یی هم اثـر پیدا شو .

دافغانستان دخلکو دد موکراتیک ګوند پیاوړی کیدلو دخلکو دښمنانو تحر بـک کړل او په ګوند کی یی اثر محسوس شو ملګری نور محمد تره کی دخپل علمی ابتکار په اساس بیاد ګوند دساتلو په خاطـــر دمرکزی کمیټی دپراخو لو طرحه وړاندی کړه چی دمرکزی کمیټی لخوا تائید شو او دمرکزی کمیټی شمیر ډیر شو .

دمرکزی کمیټی دعلـی البدل غـړی پـه حیث دملګری امین دټاکل کیدلو ســره ببرك کارمل او طاهر بدخشی زیات مخالفـت کاوه خو ملګری تره کی په پوره اطمینان له ملګری امین څخه دفاع کوله ترڅو چی یی دمرکزی کمیټی اکثر یت وګټاته او ملګری امین دمرکزی کمیټی دعلی البدل غـړی پـه تو ګه ومنل شو دی عمل دګوند دفعا لیت ساحه پراخه کړه او په خلکو کی یـــی نفو ذ لاډیر کړ .دغه وخت په ولسی جرګه کی ببرك کارمل چی دګوند نطاق همولـــه سلطنتی دربار سره دخپل بند وبست پـــه اساس داسی بیان ور کړی ؤ .

دمجلس ښاغلی رئیس او غړو !

په دی کی شك نشته چی دپښتنی لسمی مادی په استناد پادشـــاه غیر مسوول او واجب - الاحترام دی ،دافغانستان دا تبا عو هر فـــرد وظیفه لری چی باید دداسی پادشاه چی پــه جرئت سره ویلای شم په ټو لو آسیا یـــی پادشا هی هیواد و کی ډیر متر قی پادشاه ګڼل کیږی دزړه له کومی احترام وکړو .

دا یو داسی حق دی چی دزړه له کومـــــی عقیده پری لرو او در ناوی یی کوو اوهیڅوك نه شی کولای چی دغه حق چی دداسی مترقی پادشاه احترام کووله موږ څخه واخلی ...

ددربار دوزارت دبـــودجـی په برخه کـــی په ټوله نړی کی دددولـت بودجه دیو منطقی تنا سب پراساس جوړیږی او حتی موږ ویلای شو چی داسلام دخلفای را شد ینو دصدرڅخه تر او سه پوری کومه بودجه چی ددولتدعالیه مقا ما تو له پاره منل شوی ده په یو تناسب او عدا لت ولاړه ده .

ددر بار بودجه حتما زموږ دلوی پادشاه اعلیحضرت معظم هما یونی دحضور څخـــــه تیر یږی ددی له پاره چی موږ با ید پـــه خپله په دی معتقد شو چی دافغا نستان پادشاه اعلیحضرت په دی مطالبوکی خپل ارزښت - من وخت نه مصرفوی ، بلکی ددی مسوول په ددرباراو مالیی وزارتو نو وی ).

په همدی بیا نیه کی یی بل ځای دسلطنتی دربار دزړو اصلاحاتو دنوی کولو په باره کی داسی وویل :

(دا اصطلاحات ټول زاړه شوی دی ، غوره داده چی یو محترم انجمن ته وسپارل شی چی ددربار دوزارت او مالیی وزارت سره دتماس له لاری نوی اصطلاحات جوړ کړی ، تر څو زمونږ دپاد شاهی حیثیت او مقام وسا تـل شی .)

دو لسی جر گی دغه جر یده لانه وه خپره شوی چی ملګری تره کی لهدی حقیقت څخه خبر شو ، نو دمرکزی کمیټی پلینوم یـی دعوت کړ چی دامسا له مطرح کړی دلتـه ببرك کارمل په ډیر مهارت او شار لاتا نـی سره ملګری تره کی ته قنا عت ورکړ چـی دا موضوع دی په پلینوم کی نه طرح کـوی، دی به په خپله خوښه پلینوم ته له مرکـزی کمیټی څخه خپله استعفا ور کړی ا و نور به نو دګو ند له رهبری څخه نما یند ګی نشی کو لی ، چی ملګری تره کی هم ورسرهومنله.

د۱۳٤٥ کال دمیزان په دوهمه دګو نـد دمرکزی کمیټی دپلینوم جلسه دایره شوهاو په هغی کی ببرك کارمل له مرکزی کمیټی څخه خپله استعفا وړاندی کړه .له بحث څخه ورو سته دببرك کارمل په استعفا با نـدی را یی واخیستلی شوی چی په نتیجه کـی دمر کزی کمیټی داصلی غړ وا کثر یـت دهغه استعفا تائید کړه. دعلی البدل غړو په شمول دډیرو را یه داوه چی په مر کزی کمیټه کی دی پاتی شی طاهر بدخشی داسـی غیر اصو لی مو قف ونیوه چی ویل یـی دپلینوم اکثر یت دهغهپه مرکزی کمیټـهکی پا ته کیدل ومنل ،ملګری حفیظ الله امیـن ویل چی دا سا سنا می او دکار ګری طبقی دنوی ګو ند له اصو لو سره سم یوازی دمرکزی کمیټی داکثر یت غړ و رایی داعتبار وړدی .

یا په بل عبارت دعلی البدلو غړ و را یی نه حسا بیږی !

دطا هر بد خشی دغیر اصو لی اونا مطلوب بر خورد سره سره دمرکزی کمیټی پـه پلینوم کی داصلی غړ وداکثر یت په تائید له مر کزی کمیټی څخه دببر ك کارملاستعفا ومنل شوه له دی وروسته ببرك کارمل پهدی زوروا چاوه چی میر اکبر خیبر چی (۱۲)کاله دپولیسو افسرو او له کارمل سره یی شخصی ارتباط درلود ،ګوند ته راوستل شی . ملګری تره کی ویل چی قانو نا پو لیس دغه شان ګوند ته نشی راتلای هغه باید لومړی استعفا وکړی او څه موده ورو سته ګوند تـه غوښتن لیك ورکړی چی له اسا سنا مـی سره سم وما نه شی .

ملګری تره کی دغه نظر دمر کزی کمیټی دغړ و دتا ئید وړو،نو ببرك کارمل دا سـی دسیسه وکړه چی میر اکبرخیبریی له خوست څخه چی هلته یی دپو لیسو دافسر په حیث کار کاوه راو غو ښت او په ګو ندکی یـی دا نشعا ب په پلان باندی پیل وکړ .

ببرك کارمل په ډیر مهارت سره وکړای شو چی دمر کز ی کمیټی نیژدی نیما یی وغولوی او په ګوند باندی انشعاب تحمیل کړی ملګری تره کی چی هر څو مره زیار وویست او هلی ځلی یی وکړی، خوځرنګه چی ببـرك کـارمل

خپل تصمیم نیو لی ودغه انشعاب په گو ند باندی تحمیل شو اود ۱۳٤٦ کال په ثورکی دغه انشعاب پوره صورت ومو ند او یوه ډله ملگری دببرك کارمل په رهبری له گوند څخه پداسی حال کی جلا شول چی ځا نته یی هم دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك گو نــــد ویل او دگو ند دمرام او دکار گری طبقــی دایډ یا لوژی ادعا یی هم کوله .

د۱۳٤٦ کال دعقرب په دریمه چی دشهیدانو په یاد مظا هری کید لی ، دافغا نستاندخلکو دمو کرا تیك گو ند چی دملگری نورمحمد تره کی په مشری مبارزه کوله ، بیا ډیـــر پیا وړی را ووت چی مظا هری یی ددوستانو زړونه وغو ړول او ددښمنا نو ستر گی یـــی خړی کړی .

بیا دخلکو دښمنان گوند ته متو جــــه شول اوپه ویره کی ولویدل په نوروتوطئویـــی لاس پوری کړ .دغه وخت طا هر بد خشـــی دکا ر گری طبقی په گوند کی خپلی تنگ نظری ناسیونالیستی طــرحی وړانــدی کــړی او په ملگری امین باندی یی دنا سیونالیزم تورونه ولگول ، مرکزی کمیټی معتبر هیــات وټا که چی له ډیرو تحقیقاتو او څیړ نـــو وروسته ،دی نتیجی ته ور سیدل چیداد گوند دپیا وړی کیدو دمخنیوی په خاطر دسیســـه ده ملگری امین دډ یر صادق او وفا دارملگری په توگه خپلی گوندی او مترقی وظیفی پـــه پوره شرا فت او صداقت سرته رسو لی دی، خو طاهر بدخشی یی ددسیسه کار په حیث معرفی کړ .مرکزی کمیټی ددی له پاره چی په ملی احساس څوك زمونږ په گو ند کـــی تخریب ونشی کړای طاهر بد خشی ته یـــی دده دخیا نت په اساس او ملگری امین ته یی سره له دی چی هیڅ نقص او گناه نـــه در لودل محض دگو ندی مصلحت له املــــه دگوندی مقامونوپه معیاردوه دوه درجی تنزیل ورکړچی بیابه ولیدل شیچی څوكصادق دی ؟

ملگری امین سره له دی چی هیڅ مسوولیت یی نه درلود او بی له کوم قصور او جرم څخه په دغه جزا محکوم شوی وپه ډیرو عا لـــی اخلاقو یی دگو ند تصمیم ته غاړه کیښودله او په پوره صدا قت یی خپلو گوندی وظایفوته ادامه ورکړه .

خو طا هر بدخشی په خپل خیا نت کــــی لا ډیر ډوب شو او نه یواځی گــوند یی ترك کړ بلکی دگوند په ضد هم ودریـــــد اود افغا نستان دزیار ایستو نکو بچو غو لو لوته یی ادامه ورکړ ه.

له گوند څخه دطاهر بدخشی او دهغه دځینو فا سد وملگرو دوتلو سره نهضت زربیا ډیر پراخه شو او گوند ډیر قوت وموند ،پـــه خلکو کښی دملگری تره کی ډیر محبـــوب شخصیت دهغه دکلو نو کلونو سیا سی تقــوا او سیا سی مبا رزه ،ډیری زیا تی عملـــی تجر بی او پو خ علمی نظر ډیر زرد دی باعث وگر ځید چی دافغانستان په ټو لنه کــــی دافغانستان د خلکو دمو کراتیك گو نــــد ډیری ریښی وز غلوی او ډیر پیاوړی اومیړنی ملگری یی پیدا کړل مخصو صا استثمــــار کیدو نکو طبقو او قشرو نو دملگری تره کی په مشری دافغا نستان دخلکودمو کرا تیـــك گو ند باندی ډیر اعتماد او اطمینان پیدا کړ.

د۱۳٤٦ کال په آخر کی دملگری تره‌کی په مشری دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیک گو ند پیاوړ ی کید لو ،سلطنتی در بارپه تشو یش کی وا چاوه چی دهر هغه یـــوه انشعاب سره چی دسلطنتی دربار دنفوذپـــه اساس په گوند کی پیښ شو گوند لاسو چه راووت اولا ډیر پیاوړی شـــو . دغـه وخـت سردار نور احمد اعتمادی صدراعظـم و دغـه سر دار دسلطنت په نما یند گی‌له ببرك‌کارمل سره داسی جوړراغی چی دهغه گروپ تـــه دیوی جریدی دخپرو نو امتیاز ورکړی تـــر څو دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك گوند په تمثیل کولو سره یی خپره کړی ،چی دخلق په جر یده کی خپور شوی پرو گرام اودکار-گری طبقی دایډیا لوژی ادعا هم وکړی .

دوی امید درلود چی په دی توگه به ببرك-کارمل دافغا نستان دخلکو ددمو کر اتیـك گو ند دمشر په حیث معر فی کړی اودملگری تره کی نوم به له منځه لاړشی .

ظاهر شاه ،سردار داود ، سردار نوراحمد اعتمادی او ببرك کارمل له دی بی خبره‌ووچی ملگری نور محمد تره‌کی لدی ډیر ستړو،چی ددوی په غیږ کی ځای شی .کله چی‌د ۱۳٤٦ کال دحوت په میاشت‌کی دغه په دسیسی‌سره ورکړی شوی اخبار د(پرچم) په نامه خپورشو ددوی داکرغیـرن امید لاډیر اوچـټ شو. دغه وخت ملگری نورمحمد تره کی دافغا ن‌ملـت دجر یدی په (۵۰)گنه کی اعلان وکړ چی، پرچم دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك گو ند سره هیڅ ډول سازمانی‌ارتباط‌نه‌لری.دظاهرشاه سر دار نوراحمد او ببرك کارمل(چی په پټه کی سردار داود هم ورسره و)د امیدونو پـــه اور باندی او به تویی شو لی .

دملگری نور محمد تره کی له دغه اعلان سره دببرك کارمل دگرو پ چی وخت یی په پر چمیا نو شهرت پید اکړی و،دافغا نستان دخلکو ددمو کراتیك گو ند په ضد تبلیغات ډیری بی شرمی ته ورسید ل .ځر نگـــه چی تردی وخت پوری ددغه گوند غړی چـــی گران مشر یی نورمحمد تره‌کی و، په ټولنه کی یی دخلقیانوپه نامــه شهرت موندلـی و نوپه هر ځای کی په پرچمیـانو دخلقیـانـو په ضد دروغ ویل او تهمتو نه کول ، نـــو دمجبوری په اساس دوی هم دببرك کارمل‌او دهغه دگو ډاگیانو طبقاتی ما هیت او اجتماعی ار تبا طات افشا کول .

پدی جر یان کی ملگری تره‌کی دظاهرشاه حکـــو مـت ته چـی سـردار نـور احمـد اعتمادی یی صدراعظم ومراجعه وکړه چی دخلق دجر یدی په ځای به بل نامه دخلکـــــــو دمو کرا تیك گوند ته دنشراتی اور گـــــان امتیاز واخلی ډاکتر انس دظا هر شاه ددولت او سردار نور احمد اعتمادی داطلاعاتو اوکلتور وزیر داسی ورته ولیکل :(ښا غلی نورمحمد-تره کی !

څر نگه چی د(خلق) په نامه ستا ســـو جریده پخوا مصا دره شویده او ددغی جریدی اهداف ، مرام او مفهوم چی غـواړی اوس یی خپره کړی په عین طرز او طریقه دی، دلویی څارنوالی دمقام داستشماری او داطـلاعـاتـو

او کلتور دوزارت دقناعت نه وروسته تاسوته
په عین نوم او یا کوم بل نامه سره دنوی
جریدی دخپرولو اجازه نشی درکول کیدای).
په داسی حال کی چی دهمدغه گوند په نامـــه
دهمد غه مرام او همد غی مفکور ی پـــــه
ادعا دببرك کارمل گروپ ته یی د(پر چـــم)
په نامه جریده ورکړ ی وه او خپر ید له.

بیا گو ند دملگری ډاکتر صا لح محمـــد
زیری ،ملگری کریم میثاق ،ملگری حفیظالله
امین او ملگری عبدالحکیم شر عی او نو رو
ملگرو په امتیاز او مسوول مد یریت وغوښتل
چی دجریدو دخپرونو امتیاز ور کړی شی،خود
سلطنت تر ختم پوری دهوی دغه غو ښتنی
قطعا ونه منل شوی اما ببرك کارمل تهدااامتیاز
میسرو .

ببرك کارمل چی څه ځوانان وغو لول اوله
گو ند څخه یی انشعاب وکړ ، په پار لمان
کی نور احمد نور ،فیضان او ډاکتره اناهیتا
چی مستقیم یا غیر مستقیم یی له گوند سره
ارتباط در لود، له ده سره ولا ړل نو پـــه
پار لمان کی دافغا نستان دخلکو ددموکراتیک
گوند یوغړی هم نه و، دوی دخلقیانـــو پـه
ضد په پار لمان کی دننه اوله هغه دبا ندی
فعا لیت کاوه او تهمتو نه یی ویل دا ټـــول
ددی له پاره چی په افغا نستان کی دکارگری
نهضت او دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك
گوند چی دملگری نور محمد تره کی پـــه
مشری مخ په وړاندی روان وضعیف کړی.

تر ۱۳۴۸ کال پوری په افغا نستان کـــی
گڼې گو ڼې ،مظاهری او میتینگو نه روان وو
چی په هغو کی دافغانستان دخلکو دموکراتیك
گوند ډیره موثره برخه اخیسته په کا بل کی
دافغانستان دخلکو دموکراتیك گوند ډیـری
ستری مظاهـری کـولی چـی پـه ټولـو کی
ملگری امین ډیره موثره بر خه اخیستلـــه
او ډیر فعال رول یی په کی درلودچی عملایی
خپله وفا داری حزب ته په ثبوت رسو لــــه
او دخپل ځان په هکله یی دملگری تره کی
اعتماد او اطمینان په حقه ثبوت کړ .

پـه ټـو ل ا فغـــا نستا ن کـــی
د افغانستان د خلکو دموکـــراتیك گـــوند
ټول فعا لیتونه ملگری نور محمد تره کی دگوند
دعمومی منشی په تو گه رهبری کړل اولار-
ښوو ونه یی ټولملگرو ته دډیر قوت اوبریالیو
کا رونو دالهام منبع وه ملگرو به تل لــه
خپل ستر رهبر څخه هدایت اخیسته او بیرته
په یی مفصل راپور ورکـاوه چـی د هغـــه
په تقد یر سره به وروسته نتیجه ور څخـــه
اخیستله کید ه .

په ۱۳۴۸ کال کی ملگری نور محمدتره کی
دوه مخفی جر یدی تا سیس او خپرو لی چی
د(رهنما او جنبش )نو میدی دغه جریدی چی
دملگری نورمحمد تره کی په لیکنه خپر یدی
په پټه اودشپی له خوا توزیع کیدلی. ملگری-
تره کی دهغو دتوزیع وظیفه دملگری امیـــن
په غاړه کړی وه چی په ډیره عا لی تو گه
او صداقت اوز ړ ورتیا سره یی دځینو داعتماد
وړ ملگرو په همکاری سر ته ورسو له .

په ۱۳۴۸ کال کښی دولسی جر گـــــی
ددیار لسمی دوری له پاره انتخابات شروع

شول په دغو انتخا با توکی چی ملگری امین په پغمان کی او ملگری داکتر صالح محمد زیری دکندهار په ښار کی کا ندید شول ډاکتر زیری دانتخا باتو په جریان کی زندانی شو. اما ملگری امین په پغمان کی بریالی شو دانتخا باتو په نتیجه دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك گوند په پارلمان کی یوا ځی یو نما ینده درلود چی هغه ملگری حفیظ الله امین ؤ .

ملگری حفیظ الله امین دگوند په هدایت او په نما یند گی په پارلمان کی خورا مهمه بیا نیه ور کړه چی درا ډیو له لاری هم خپرید له . په دی بیا نیه کی دنورو مهمومطالبو په جمله کی داهم وویل شول چی دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك گوند به دخپلو خلکو په ملاتړ ددی شعارونو دعملی کولو لوړ گا مونه واخلی .

(چی له هر چا څخه دهغه داستعداد په اندازه او هر چاته دهغه دکار په اندازه، او دهرچا څخه دهغه داستعداد په اندازه اوهرچاته دهغه داحتیاج په اندازه) .

باید وویل شی چی دافغا نستان په تاریخ کی دلو مړی ځل دپاره دکا رگری طبقی دسیاسی گوند له خوا دغسی هسلك شعارونه رسما او علنا اعلان شول .

دملگری امین دصادقانه گوندی کار دگوند دتیو لو اصو لو مرا عات ، دگو ند دپیا وړی توب له پاره مثبتی هلی ځلی ، دگو نــد درهبری سره پوره وفا داری ،دیر اخه تیوریتیکی کار، زوری طبقاتی مبارزی او په خلکو کــی دپراخه حزبی کارله امله دملگری نورمحمد تره کی په پیشنهاد دمرکزی کمیتی له خــوا بیرته دهغه موقف دمر کزی کمیتی دعلی البدل غړی په حیث راوو چت کړی شو .

په دغه کال کی مخصو صا ءکله چــی ملگری پنجشیری دپر چمیا نو په نما یندگی دها دی کریم پرچمی له پاره په انتخا با تی مبا رزه کی فعالیت کاوه ،زندانی شو، پــه دی یی یقین راغی چی دپر چمیا نو تر منځ دداخلی مبا رزی له امله ، دببرك کار مــل او سر دار اعتماد ی په گډه دسیسه زندانی شو .

ملگری دستگیر پنجشیری او ملگــری عبد الحکیم شرعی ملتفت شول چی بی ځایه له گوند څخه چی دملگری نور محمد تره کی په رهبری یی وجود درلود دببرك کارمل پــه رهبری جلا شول .

په دغه وخت کی دافغا نستان دخلکـــو دمو کراتیك گوند چی ملگری نورمحمدتره کی یی دمرکزی کمیتی عمومی منشی ،و خپلـــو مبا رزوته ادامه وور کو له .

ملگری دستگیر پنجشیری او ملگــری عبد الحکیم شرعی هم له گډو ځوا نانو سره یو ځای له ببرك کارمل څخه جلا شول .

په ۱۳۴۹ کال کی چی د ۱۹۷۰ ع کال سره مصا دف و او دغه کال دمتحدو ملتو نو لــه خوا دلنین کال قبول شوی و په افغانستان کی هم دغه کال دغیر دولتی متر قی قو تو نــو او عنا صرو له خوا نما نځل کیده. په دغه

کال کی په نو رو خپرو نو برسیره د(زندگی لنین) ترعنوان لاندی په (پیام وجدان جریده کی )دنور محمد تره کی له خوا دسور گــل په مستعار نامه په معضله توگه دستر لنین بیو گرافی خپریدله .دغه کال په ربنتیا چــی دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك گوند پــــه مرکزی کمیټه او نورو ټولو گو نډی سازمانو کی په ډیری خوشحالی او ډیر زوږ ســــره په عملی ډول نما نځل کیده .ملگری تره کی چی تل دافغانستان دشا هی دولت ما هیت په نظر کی درلود ،گو ندته یی‌په دی کال کـــی هم داسی لار ښوو نه کوله چی دتوری‌ارتجاع در اپار ید لو مسوو لیت زمونږ په گو نــد باندی نه وی.دملگری تره‌کی تل دی ته پام وَ چی امپریالیزم اوسلطنت ته دستر لنین ضد عملیا تو بها نه په لاس کی ورنه کړو .دهغه په لار ښو ونه گوند دغه کال داسی ونمانځه چی هم دگو ند دپیا وړی کید لو او پراخیدلو باعث وگرځید او هم دکارگــری طبقی دوران جوړ ونکی ایډ یالوژی ښه پراخه خپره‌شوله.

دغه کال دببرك کارمل تر مشری لانــــدی ظاهرا پرچمیا نو هم نما نځه .څر نگه چــــی پر چم ددوی په لاس کی وکو لای یی شوای چی دشرا یطو په نظر کی نیولو سره دکال ترآخره پوری دلنین مفکوری ډیری پراخــــه خپری کـــړی ، خو دبده مــرغه داپــریل په ۲۲ چه دلنین دزیږیدنی ورځ وه دوی پرچـــم ډیر ستر په دولسو مخونوکی خو په خـــورا لږ شمیر داسی خپور کړچی دلنین دژوندانه ډیر عکسو نه په کی وو او هم دپر چم پــــه لیکنو کښی په ستر لنین باندی درود ویـــل شوی وو . سلطنت دلنین دښمنو دامپریالیزم گو ډا گیا نو او توری ارتجا ع دپر چم دغه خپرونی بهانه ونیولی او دستـــر لنیـــن پـــــه ضـــد ، دخلقیانـــو په ضـــد او د شو ر و ی اتحاد په ضد یی داسی تبلیغات شروع کړل چی نه یواځی دغه کال یی ډیرتر یخ په خلکو با ندی تیر کړ بلکه له هغه ورو سته یی‌هم ادامه در لود له .

دا پر یل له دوه ویشتمی ورځی څخـــــــه دامپر یا لیزم تر رهبری لاندی توری ار تجاع چی په اخوا نیانو باندی یی شهرت درلودــ خلقیا نواو شوروی اتحاد په ضد مسلسل‌هره ورځ په کا بل کی دپل خشتی په جو مات کی ۴۳ورځی شدید تبلیغات وکړل .

دافغا نستان د خلکو دمو کراتیك گو نــد دخپل گران مشر په لار ښو ونه په ملا یانو کی وطنپالو نکی علما داسی تنظیم کړل چـــی ددغو ارتجاعی تبلیغاتو مخه دسلطنت دفسادــ ونو خواته هم ورو گر ځی .کله چی دخلقیانو دغه تاکتیك تا ثیر واچاوه ، نوسلطنت مجبور شو چی له ۴۳ ورځو وروسته دپل خشتی پـــه جو مات‌کی دتوری ارتجا ع دگو ډا گیا نـــو دمیتینگو نو مخه ونیسی سلطنت یوازی دپــلــ خشتی په جو مات کی دتوری ارتجاع دهری ورځی دمیتینگو نو مخه ونیو له، په داسی‌حال کی چی په نور ټول هیواد کی دخلقیا نو په ضد دتوری ارتجا ع شدید تخر یبی فعا لیتونه روان ووچی سلطنت هم ورته زمینه‌مساعدوله.

دافغانستان دخلکو دمو کراتیك گو نـــد مرکزی کمیټی تصمیم ونیو چی دخلکو دروحیی دلو ړولو په خاطر او دتوری ارتجاع دخاینا نه تبلیغاتو دنفی کولو په منظور د جوزا په ۱۵ نیټه چی دجون پنځمه ورځ وه په عربو باندی داسرائیلی تجاوز دغند لو په خاطر او پـــه افغا نستان کی دامپر یالیزم دنفوذ په ضـــد مظا هری وکړی. په کابل کی د خلقیا نو په دغی مظا هری باندی دسلطنت پو لیسو ډیر سخت بر یدو کړ چی دمر کزی کمیټی دځینو غړوپه شمول دګو ند ډیر غړی او ډیر خلقی ځوا نان یی ډیر کلك ووهل او زخمیان یـــی کړل او نور ډیر یی بند یان کړل .دغــــی پیښی په هیواد کی ډیر بدا نعکا س پیدا کړ او ملګری امین دپار لمان له لاری هم دغـــه پیښه ډیره افشا کړه .

د۱۳٤۹ کال کی دعقرب په دریمه په لغمان کی اخوا نیا نو په عبد الرحمن باندی حملـه وکړه او هغه یی‌په ډیره بیر حمی په‌وحشیانه تو ګه وواژه او د ځنا ورو په څیر یی ټو ټی ټوټی کړ .دافغا نستان دخلکو دموکرا تیـك ګو ند ببرك کارمل ته پیشنهاد وکړ چـــی خلقیان او پرچمیان باید له نورو دموکراتیك او ملی عنا صرو سره یو ځای دیوه متحد بیرغ‌لاندی دعبدالرحمن شهادت ونما نځی اوتوره ارتجاع او مر تجع دولت په کلکه وغندی،خو کـــارمل دغه پیشنهاد ونه‌مانه او دیو متحـد صف دجوړ یدلو مخه یی ونیو ه .

په پر چمیا نو کی کوم نفاق چی پیدا شوی چی په ۱۳٤۸ کال کی دولسی جرګی ددیار- لسمی دور ی په انتخا باتو کی‌دستګیرپنجشیری دپنجشیر په انتخا باتی حوزه کی دیو بـــل پر چمی له پاره مبارزه کوله او دواړه زندانیان شول . دستګیر پنجشیری ته داعقیده پیدا شو له چی ببرك کارمل ددوی په زندانی‌کیدلو کی لاس درلود نو دستګیر پنجشیـــــری او عبدالحکیم شرعی دنورو ډیرو پر چمیا نو سره یو ځای له‌ببرك کارمل او دهغه دنورو ملګرو څخه جلا شول او دپر چمیا نو له عنوان څخه یی ځا نو نه خلاص کړل .

کله چی دستګیر پنجشیری او عبدالحکیم شرعی له پر چمیا نو جلا شول ، له خلقیا نو سره یی تما یل وښود ، خود (خلق کارګر) دنامه لاندی یی هغه ملګری له ځان سره سما تلی وو چی له پر چمیا نو څخه ور سره را جلا شوی وو .تر ۱۳٤۹ پوری دستګیر پنجشیری او عبدالحکیم شرعی په داسی حال کی چی دخلق کار ګرد ګروپ رهبری یـــی کو له له خلقیا نو سره په تما س کی ووتر څو چی د۱۳٤۹ کال په قوس کی بی له قید او شر طه دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك ګو ند ته را غلل اوپه خپل هغه دریځ یـــی انتقاد وکړ چی دببرك کارمل سره یی یوځای نیولی و او پښیمانی یی وښودله چی دغـــه وخت دګو نددر هبری له خوادو حدت داعلامیی تر عنوان لاندی یوه اعلامیه هم خپره شوله نو دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك ګو ند مر کزی کمیټی هم داو منله چی ملګــری پنجشیری او ملګری شرعی دی دګو ند پـــه رهبری کی ځای ولری .

له دی وروسته پر چمیان مخ په کمز وری کیدلو شو ل او په ټو لنه کی یی هم موقف را ټیټ شو او دملګری تره کی په مشـــری دافغا نستان دخلکو ددموکراتیك ګوند دریځ په ټو لنه کی ورځ په ورځ لوړ یده. دګوند جلب او جذب ډیر دتو جه وړو ګو ند هـــم په ښه شان فعا لیت ته ادامه ورکړ چی پـــه ډیر زور اوزوږ کی شو .

په ۱۳۵۰ کال کی چی ګوند بیا ډیر قـــوت ومو ند دګو ند دښمنا نو بیا په ملګرو کی نفوذ وکړ او دملګری حفیظ الله امین په ضد دظاهر افق دمشری په نامه تحر یك شروع شو دروغ تهمتو نه او دنارو انارو اخبر و اوتبلیغاتو خپر ول په ګوندکی دننه پیل شول . ځرنګه چی ملګری نورمحمد تره کی دمرکزی کمیټی عمومی منشی تل په ملګری امین باندی نظر او اعتماد در لود او په هغه کی یی پوره صداقت او استعداد لیده نو یی دستر رهبر په شـــان لاس ور باندی نیو لی واو په حقه یی دفاع ورڅخه کوله ، بیا یی‌هم په ملګری امیـــــن باندی خپل پوره اعتماد ښکا ره کړ چی دتحقیق په نتیجه کی دملګری تره کی ټو ل درك یوځل بیا صد ق پیدا کړ او ظاهر افق دګوند له ځو نورو غړو سره مسوول را ووتل چــــی ظاهر افق ته دمرکزی کمیټی دعلی البـــدل غړیتوب څخه دګوند صفو نوته تنزیل ورکړشو ظاهر افق چی خپل له اشتباه ډك نظر عملـــی نشو کړای نو یی بالکل ګوند ترك کړ .

د۱۳۵۰ دعقرب په دریمه چی دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك ګوند دافغانستان په ټولو ښارو کی د عقرب دریمی ورځـــی دشهیدانـــو د یادونی او نما نځلو په خاطر درندی مظاهری او ډیر لوی لوی میټنګو نه جوړ کړی وو چی دافغانستان دزیار ایستو نکو خلکو له ارمانونو یی نما یند ګی کو له ، ډیر خلك یی ملاتړ ته‌راوتل. دخلقیانومخالفانوددوی له مظاهروڅخه دغه شان تودا ستقبال نشوای زغملی . هماغــه ووچی په هرات کی دخلقیا نوپه بی شا نـــه درندی مظاهری باندی دکینو افراطیا نو لخوا بر یدو شو چی ځوان ملګری عبدالقادر چـــی دګوند سور بیرغ یی او چت نیو لی ودخلکو ددښمنو په چړوو هل شو او ځان یی له‌لاسه ورکړ ولی دخپل ګران ګوند بیرغ یی ونـــه غورځاوه ، دشهید عبدالقادر سره ډیر نـــور خلقیان هم زخمیان شول .دافغانستان دخلکـــو دمو کرا تیك ګوند دکینو افراطیانو دغــــه ترور یستی تو طئه په ټول افغا نستان کــــی دمیټنګو اعلامیو او خپرو نوپه واسطه په پراخه پیما نه رسواکړ له . دخلقیا نو دغی اصو لی مبا رزی ددوی ځای دخلکو په زړ و نو کـــی لاډیر پراخه کړ دمرکزی کمیټی دفیصلـــــی په اسا س ملګری حفیظ الله امین ته وظیفه ور کړه شو له چی دهرات داو بی په ولسوالی کی دشهید عبدالقادر کلی ته لاړ شی اودګوند د دراند ه لارښود ملګری نورمحمد تره کی‌او درهبری دنورو غړو تاثر او خواشینی دشهیـد ملګری مور او پلار اونورو خپلـوانو اوپه هغه ځای کی ګوندی ملګری او ټولو دو ستانو ته ور سوی او په قبر باندی یی دګلو ګیډی کیږدی . ملګری امین دغه‌کارپه‌ډیره زړورتیا

سره وکړه اودهغه شهید په قبر یې دخپـــل ګران رهبر ملګری نورمحمد تره کـــــی اود مرکزی کمیټی دنوروغړو وله خوا یې په یـــوه درانده میتنګ کې خبری وکړی او دګلـــو ګیډۍ کیښوده .

د۱۳۵۱ کال دعقرب په (۲۵) نیټه پــــــه ګردیز کې یو ځوان خلقی ملګری چې پاچا-زادین نومیده په مر مو زړول ترور او شهیـــد شو. ددغه شهید ځنازه پـــه ډیـــرو درنـــدو خلقي مراسمو سره دخلقیا نو له خوا په خوست کې ددوی په پلارنی ادیره کې خاوروته وسپارله شوه او دستر رهبر ملګری نور محمد تره کی دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی په هدایت او دمرکزی کمیټی په تصمیم دملګری پا چازادین دشهادت په خاطر په ټول افغا نستان کې درندی مظاهری وشو لی او په پراخه اندازه خپرو نی وشولی چې په هغه کې دحا کمی طبقی ، دحا کمـــو محافلو او توری ارتجـاع توطئی اوتروریستـــی اعما ل ډیر وغندل شول . چې دګو ند سره یې دخلکو مینه او علاقه زښت زیات ډیـــــر کړل .

په ۱۳۵۰ کال کی بیا ګوند له دننه اود باندی سختو ضر بو لاندی راغی دګوندد ویاړلی رهبر ملګری تره کی په ډیر مېنه لاربنودنه او دو فا دار او صا دقو ملګرو په جـــــدی او فعا لو مبا رزو سره ددغو ضا یعا تــــــو تلافی کید له . په دغه کال کی بیا ملګری تره کی درك کړه چې دګو ند دکار دزیاتیدلو له امله باید مرکزی کمیټه پراخه شی چــــی دمرکزی کمیټی له پاره اصلي او علی البدل غړی انتصاب شول .

په ۱۳۵۰ کال کی په خلقیا نو باندی ددولت تر حمایې لاندی داخوانیا نو او نو رو ارتجا عیو نو، فیو ډالانو او کینو افراطیو نو له خوا دامپر یالیزم په ملا تړ، ډیری کلکی ضر بې شروع شو لی په هرځای کی وهل کید ل او ټکول کیدل ، سرو نه، بریتو نه او حتی وریځی یې وچې خریبل کیدلې. توهینیدل سپکی سپوری ورته کید لی ،په خرو سپرول کیدل کو رونه یې لو ټیدل او سو ځول کیدل او دنا غو په نامه څه پیسې او شتمنی یې چې در لودلی ورڅخه اخستلی کید لی . ور سره سم پر چمیا نو دببرك کارمل تر مشری لاندی هم دخلقیا نو په ضد خپل تبلیغا ت ډیر شدید کړی وو چې په ډیرو ځا یو کی یې دخلکو له دښمنو سره لاس یو کړی و .

د۱۳۵۱ کال تر پایه پوری دغی وضعی پــــه ډیری بې شرمی سره ادامه در لود له .خوله دغو ټولو سره سره په ګـونـد کـــی دننـــه هم دګو ند د دښمنو اثر محسو سیده .بیاد ملګری امین په ضد یوی ډلی نا مطلوبـــو عنا صرو دډاکتر کریم زرغون دمشری په نامه سر را پورته کړ چې تهمتو نه اوله شرمه ډك دروغ یې ویل او ډیر خاینا نه تبلیغات یــــی کول چې وروسته دګو ند دقوت او بیا وړتوب په خاطر ډا کتر زرغون له ګوند څخه وشړل شو . د۱۳۵۱ کال په نیما یی کی چې ډاکتر ظاهر صد راعظم ؤدنادر دغدار ی کور نــــی

دهلمند داوبو په سر معا مله راو سپړ ید له له هری خوا اعترا ضو نه او غبرونه پور ته شول .

دافغا نستان دخلکو دمو کراتیک گوندپه دغی د وطنپا لی او دملی گټو ددفاع په خاطر مبارزه کی ډیر ستر رول ولوباوه. دی مبارزی لا دوام دراود چی موسی شفیق صدراعظم شواودغه مسئله ډیره توده شوله

دافغا نستان دخلکو دمو کراتیک گو ندله خلکو څخه دسلطنت دتجر ید ولوله پاره لاډیر مو ثر رول ولو باوه .

سلطنت او سلطنتی کور نی یی با لکل رسوا رسوا کړل .

ملگری امین دگوند په سنگر کی دپارلمانی مصئونیت په لرلو سره ډیر ستر رول ولوباوه.

دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دپراخی مبا رزی په نتیجه کی هرڅوك مجبور شول چی دنادر دخائینی کورنی دوطن پلورنی په ضد مبا رزه کی برخه واخلی . خلقیانو ډیر کو شش کاوه چی ټول په څه یوه کسان په یوه متحده جبهه کی سره را ټول شی او دیوه مشترك بیرغ لاندی دسلطنتی دولت دوطن پلو رنی کارو نوپه ضد گډ ه مبارزه وکړی .

نور وچی دسلطنت په بقا کی یی خپلی گټی لید لی تل به په شا تلل چی نتیجه دا شوه چی سلطنت او په هغه پوری تړ ید لی مبا رزان په خلکو کی مختوری شول اوخلقیان لاډیر سر لوړی را ووتل او سلطنت نورنو په خلکو کی ځای نه درلود . مخصو صا ببر ك

کارمل به تل داسی رول لو باوه چی وطن پالونکی په یوه صف کی سره را ټول نه شی حتی چی په پارلمان کی به یی خپل دغه رول په ډیر با رز ډول لو باوه ، خو خپله کارمل او دهغه گروپ خپل موقف ددغه رول په واسطه داسی را ښیئ کړ چی خلکو په کرکه ورته کتل .

## دداود کودتا:

دظا هر دسلطنت په وروستیو وختو کی ددوه قو تونو تر منځ مخا مخ جگړه وه. یوقوت دافغا نستان دخلکو دمو کراتیک گو ندااو بل یی ددولت تر سیوری لاندی توره ارتجا عی وه دولت توری ارتجاع ته داسی صحنه برابره کړی وه چی په ښکاره دفیو ډالانو او سرما رانو له خوا داسی مرستی ور سره کیدلی چی هر ډول مادی او معنوی امکا نات ددوی دفعالیتو نو له پاره برابر یدل .په وروستیو ځلور و کلو کی چی دافغانستان دخلکو دمو کرا تیك گوند غړ په پارلمان کی هم په ډیر قوت راپورته شو چی دملگری نور محمد تره کی رهبری په کی په ډیر زور او زوږ ځلیدله او ورسره سم په ټول افغا نستان کی دخلقیا نودمبا رزو محبو بیت ورځ په ورځ زیا تیده ،نو سلطنت هم توره ار تجاع دامپر یالیزم او دهغه دملاتړ وپه واسطه په داسی پراخه توگه په کار واچو له چی هر چیری یی په خلقیانو بر یدونه شروع کړل، ټول جامع جوماتونه یی دسیاسی خائنانه له درواغو ډکو تبلیغا تو ستیجو نه وگرځول اوپه جوماتو، په کلواوبانډو اوبازاروکی یی

دلږ ډسپیکرونو په لرلو سره دخلقیا نو به ضد ناروا تبلیغات شروع کړل .

امپریالیزم دهغه ملاتړ ؤاو سلطنتي دولت چې هر څو مره توره ارتجاع وغپو له ، چې هر څومره یې خلقیان پرې ووژل ، ووهل ، وټکول ،تو هین او تحقیر کړل ،سرو نه، بزیرې، بر یتو نه او حتی وریځې یې وچې ور باندې وخر ییلې ،په خرو یې سپاره او مخونه یې پرې تور کړل ، کورونه یې ورو- سوز ول او دفیو ډالانو په شخصي زندانونو کې تر هغه ساتل کیدل چې تر څو به یې په لکو نو افغاني ،دهغو دکور نیو ټو لې‌شتمنې دناغو او جریمو په نامه ورڅخه واخیستلې دولت هم ډیر خلقیان له تعلیمي او اداري مو سسو څخه وایستل ،ډیر یې داسې ځایو ته تبدیل کړل چې تو هینیدل اوپه سپک‌نظر ورته کتل کیدل . ډیرله فابریکو او کار ځایو څخه خارج کړی شول او ډیر تاوانو نه ورواړول شول او په زر گو نو یې زنداني‌کړل دا ټول ددې لپاره کیدل چې خلقیان کمزوري کړي او په خلکو کې ددوی حیثیت راټیټ کړي .دخلقیا نوپه ځنګ‌کې دببرك کارمل په مشرۍ پر چمیان یې نیغ نیغ کول تر څو دخلقیا نو ځای ونیسي چې خلقیان بالکل له منځه ولاړ شي .

امپر یالیزم او ملاتړ کوو نکو یې، دولت او ددر بار یانو دستر گو تورو بچیو دببرك کارمل په مشرۍ ،اخوا نیانو او فیوډالانو چې هر څه وکړل نه یوازې خلقیا ن یې ضعیف نه شواې کړای بلکه دافغانستان په گوټ گوټ کې دخلقیا نو دریځ ډیر لوړ شو او ډیر محبوب شول .ددوی په صداقت باندې دخلکو ایمان او اطمینان ډیر شو او مخصوصا دخلقیا نو ستر لار ښود ملگری‌نورمحمدتره‌کي په ټول هیواد کې دامید وړ او دډیر وتلي او ربنتیني لیډر په حیث وپیژندل شو.دسلطنت دد سیسو اثر دا شو چې خپله پا چا اودهغه درباریان ، اخوانیان او فیوډالان او نور ټول رنگا رنگ اشرا فیان په خلکو کې تجر ید شول .

په دې کې هیڅ شك نشته که‌چیرې دولسي جر گې دڅوار لسمې دورې له پاره انتخا بات شوې وای او سلطنت هر څه کړې وای بیا هم ډیر خلقیان په ډیرو ځا یو کې بر یالي کیدل ،چې په پارلمان کې به ترټولو ستر اثر او ستر نفوذ ددوی وای .له همدې امله سلطنت دڅوار لسمې دورې انتخا بات وځنډ ول .

په دغه وخت کې سلطنت دداخلي جګړې آوازې هم خپرې کړې او سروې یې کو له دا هم ورته ثا بته شوه که چیرې کور نۍ جګړې دانتخا با تو په بهانه شروع شي سلطنت دو مره تجر ید شوی وچې هیڅ دفاع ورڅخه نه کو له قدرت حتما دنادر ټکمار له کور نۍ څخه دبل چالاس ته‌ورته‌اودخلقیانو دبر یالیتوب امکان هم ډیر زیات‌و چې په هغه صورت کې له در بار سره تړلي عنا صر چې ببرك کارمل یې مشرو هم له منځه تلل.

سلطنت او دنادر فتنه کارۍ کو رنۍ ړرته له دې چې د داود په مشرۍ کود تا ترتیب

کړی دځان له پاره دخلا صون بله لارونـه
لید له .

## دداود د کودتا اثر:

داو د ځینی وطنپا لو نکی ځوا نان هـم
وغولول اوله ځان سره یی یوځای کړل. هغو
ځوانانو چی داود او دهغه طبقاتی ما هیت یی
پیژانده دمتر قی مفکو ری په بنسټ ور سره
یو ځای شوی وو یو ه مسئله ده او کـه
محض دو طنپا لی په‌احسا س پرته لـه‌دی
چی د داود ماهیت یی په نظر کی نه‌وی نیولی
ور سره یو ځای شوی وی بله موضوع ده‌په
هر صورت سلطنتی کور نی وکړای شول چی
دکود تا په شکل داسی ما نوره وکړی چـی
ګواکی سلطنت ړنګ شو اوقدرت‌داودواخیست.
دسرطان په ۲٦ نیټه چی د داود کودتا اعلان
شوه دافغا نستان دخلکو دد موکراتیک ګوند
مر کزی کمیټی غونډه وکړه او په خپل نامه
یی یوه اعلامیه خپره کړه چی په‌هغی‌کی یی
په‌افغانستان‌کی دسلطنت ړنګیدل اودجمهوریت
منځ ته راتګ په داسی حال کی‌استقبال‌کړل
چی دافغا نستان دخلکو دمو کراتیک ګوند‌په
افغا نستان کی دنو رو دموکراتیکو عنا صرواو
قو تونو دمبارزو په نتیجه کی دسلطنت‌د سقوط
زمینه مسا عده شوی وه .

دافغا نستان دخلکو دمو کراتیک ګو نـد
دمر کزی کمیټی دسر طان د۲٦ نیټی اعلامیی
دافغا نستان په خلکو او وسله وال پوځ کی
ډیر ستر اثر واچاوه اود خلقیا نو روحیه‌یـی
ډیره لوړه کړه له .دهغه تا وده استقبال لـه
املـه چی په وسله وال پوځ اوپه خلکو کـی
له دغی اعلا میی وشو او دهغه ملاتړ له‌املـه
چی په وسله‌وال پوځ اوخلکوکی دافغانستان
دخلکو دد مو کراتیک ګوند مخصو صـاً له
ملګری نور محمد تره‌کی څخه کیده داودنشو
کړای چی په دغه وخت کی دخلقیا نو سره
ځان مخا مخ کړی .

نو داؤد په داسی مانورو باندی لاس پوری
کړ :

۱ـ په سیا سی فعا لیتو باندی یی داسـی
بند یز راوست او خپل ټول ګوډا ګیان یـی
داسی تنظیم کړل اوپه کار واچول چی‌دخلقیانو
څخه پر ته نورهیچا ونشو ای کړای چی لـه
داود څخه جلاسیا سی تبارزو کړی .

۲ـ له شو روی اتحاد سره یی دتودی‌دوستی
ږغ پورته کړ .

۳ـ پر چمیانو دببرک کارمل په مشری لـه
داود څخه کلك ملاتړ ته تبارز ورکړ تر دی
حده پوری چی متر قی او حتی دخپلی ډلـی
ملګر ی به یی معر فی کاوه .

٤ـ دخپل جمهوریت مرام یی د(خلکو تـه
خطاب )تر عنوان لاندی دمتر قی‌ملی‌دموکراتیک
مرام په حیث خپور کړ .

٥ـ په داسی تظاهر باندی یی لاس پوری‌کړ
چی ګواکی دار تجاع مخا لف دی .

٦ـ دمیوند وال په رهبری دامپر یالیستا نو‌په
لاس جوړی شوی توطئی ته یی تبارز ورکړچی
ووهل شوه .

۷ـ ځینی مترقی اصطلاحات به یی ډیـــر
استعما لول .

۸ـ د داود دکو دتا یی نظام په مرکزی کمیټی او کابینی کی ډیر ویر چمیا نــــو او یاد پر چمیا نو کلکو ملاتړ کوو نکو وجود در لود .

د داودی دولت دا ټولی ما نوری ددی لــــه پاره وی چی په خلکو کی دخلقیا نو نفوذلږ کړی او وروورو داز مینه برابره کړی چی‌ـــی بالکل یی له منځه یوسی .په دی هکله داود یواځی دا کارنه کاوه ،بلکه ببرك کارمل اود هغه مربوط ملګری ټول ورسره وو .

خو دولت په‌داسی فجا یعو لاس پوری کــــړ او داسی استبداد او اختناق یی منځته راوړ او داسی خا ئنا نه اعمال یی شروع کړل چی‌نه یواځی داود او ټول همکاران یی رسوا شــول بلکی ببرك کارمل او ملګری‌یی هم پــــه خلکو کی ډیر تجر ید شول اوهر چارو تــه بد ویل او ورسره سم په خلکو کی دخلقیانو محبو بیت او حیثیت ډیر او چت شول . ددغو حقا یقو ډیر مهم علت داو چی خلقیا نودخپل ګران مشر ملګری نور محمد تره‌کی پــــه مشری هیڅ داسی یوی ملی او بین المللــی پیښی ځخه چی دداود په وخت‌کی واقــع شوی وی ځان ځنګ ته نه کړ اودټولو په موردکی یی داعلامیو په خپرو لو سره خلقی دریــــځ نیو لی دی. خلکو ته خطاب تر عنوان لانــدی د داود دبیا نیی په هکله ،دجمهوریت ضــــد هر ډول تو طئو په هکله ،داخوانیا نــــــو دخا ئنا نه اعما لو په ضد ، دداود د دولت دجزا دقا نون، اسا سی قانون او لویی جرګی په هکله ،ددولت دبین المللی هر یځونو پــه هکله او دټولو بین المللی مهمو پیښو پــه هکله یی په خپل وخت کی اعلامیی خپری‌کړی او ټولی دموکراتیکی او ملی و طنپا لو نکــی ډلی یی ورته ملتفتی کړی وی خلقیا نـــو هر کال دکار ګرو ورځ، دمی لو مړی ورځ، دعقرب در یمه ورځ، داکتو بر دستر انقـلاب کلیزه او دافغا نستان دخلکو دد مو کراتیك ګو ند دلو مړی کنګری ددایر یدلو ورځ‌یعنی دجدی ۱۱ نیټه ډیری ښی تجلیل کړی .ددغو لو تجلیلونو او مهمو واقعو په هکلــــه دافغانستان دخلکو دمو کراتیك ګو ند معینو او مشخصو در یځو نو سره یو ځای د ګوند پراخو طبقاتی مبا رزو او دکار ګری طبقی‌د دوران جوړ ونکی ایډ یالوژی ډیر و پراخــو خپرو نو دخلقیا نو شهرت ،محبو بیت اوحیثیت ډیر لوړ بوت او جلب او جذب یی ډیر زیات شو .

## دافغانستان دخلکو دمو کرا تیك ګوند وحدت

ځر نګه چی دخلقیانو په شان هم‌پرچمیانو دافغا نستان دخلکو ددمو کراتیك ګو نـدپه نامه دد غه ګوند دمرام او دکار ګری طبقـــی ددوران جو ړ ونکی ایډ یا لوژی دا دعا لـــه لراوسره دمبارزی خبری کولی نوتل دخلقیانو اوپرچمیانو ترمنځ دوحدت مسئله مطـــرح وه خلقیانو نشوای کولای په ببرك کارمل اودهغه په ځینو نو رو لوړ وملګرو باندی باوروکړی تل دا نظر موجود وچی ببرك کارمل اوځینی انډ یوالان یی‌له سلطنتی دربار اود داود لـــه دربار سره ارتباط لری، خو سره له‌دی یی هم

نه شوای کولای چی دکار گری طبقی د گوند له اصولو سروغړوی خلقیانو به تـل دا ادعا کوله چی یو گوند ؤ دببرك کارمـل په مشری یوی ډلی انشعاب وکړ نو باید بیر ته گو ند ته راشی یعنی دگو نـــد دلومړی کـانگـری او دهغـی د تصمیمونـو او فیصلو په اساس باید وحدت صورتومومی خو ببرك کارمل داطرح نه منله ویل به یـی چی دوه گوند ونه او دوه رهبران دی باید په مساوی حقو قو وحدت وشی .

دخلقیانو او پر چمیانو تر منځ دوحدت مسئلی د داؤد درژیم په ورو ستیو وختو کی ډیـر زور ونیو ه ،ځکه چی دخلقیا نو شمیر ډیر شوی ؤ او په خلکو کی یی نفوذ ډیر پراخه شوی او پر چمیان په خلکو کی ډیر تجرید شوی وو نو وحدت ته دپر چمیا نو او دامـــی ښکاری چی ددا ؤد توجه ډیره ور گرځیدلی وه ترځو داؤد وکولای شی چی په گو ند کی دببرك کارمل او نـورو پرچمیانو په واسطه کنترول ولری په ۱۳۵۵ کال کیداسی خطر پیدا شو چی ښایی داؤد په گو ند باندی بر ید وکړی ۰ملگری نور محمد تره کـــی ددی له پاره چی دځه مودی له پاره یی گوند له خطر څخه بچ کړی وی اوپه دغی موده کی په اردو کی نور کار وشی له پر چمیا نـو سره په هغو شرایطو وحدت ته حاضر شـــو چی پر چمیا نو غو ښته .

دخلقیا نو اوپر چمیا نو په وحدت کی ببرك کارمل دغه دوه شرطه درلودل :

۱ـپه ټو لو رهبری ساز مانو کی خلقیان او پر چمیان باید برابر وی .

۲ـملگری نورمحمد تره کی د مر کز ی کمیتی لومړی منشی او ببرك کارمل دو هـــم منشی ۰مرکزی کمیته او دارالانشا دی نـــور منشیان غړی هم ولری چه په برابر شمیر به دخلقیا نو او پر چمیا نووی یادا چی ملگری نور محمد تره کی دی دمرکزی کمیتی عمومی منشی وی او ببرك کارمل دی منشی وی اودار-الانشاء دی په همدغو دووکسو باندی محدوده وی .

ملگری تره کی ثل دملگری امین ســـره مشوره کوله ملگری حفیظ الله امین جـــدی مو قف ونیوه چی ببرك کارمل نشی کیدای چی په گـوند کـــی رسما دوهم نفر وی !! ځکه گو ند له خلکو تجر ید یږی دملگری امین داصرارنتیجهداشوه چیملگری نورمحمدتره کی دمرکزی کمیتی دعمومی منشی په تو گـــه او ببرك کارمل دمنشی په توگه ومنل شول چی دوه نور منشیان هم ورسره وی ملگری نور محمد تره کی چی هرڅو مره کوششوکړ چی ملگری حفیظالله امین دگو ند په وحدت پسی دگـــوند دمرکـزی کمیتی دارالانشاء او سیا سی دفتر ته راشی ،دخلقیا نو دمرکزی کمیتی دغړ واکثر یت ورسره مخا لفت وکړ اوملگری نورمحمد تره کی ونشـو کړای چـی دهغه په زړه دغه کارو شی .

## دافغانستان په اردوکی دگوند کار:

له هغی ورځی چی گوند تاسیس شو، دگوند ستر رهبر ملگری نورمحمد تره کی دافغانستان

اردو ته نظر درلود خو څرنګه چې ګو ند په خپلو لو مړنیو پړا وونو کی و،تل به یـــی ویل چې ار دو ته له غیر سازمانی لاریدکار- ګـــری طبقی دوران جوړونکی ایـډیـالـوژی ور سوی .څه موده وروسته یې‌په ډېر احتیاط علاقه وښودله چې هلته ډېر پټ ساز ما نــی کارو جود ولری .

نو په ۱۳٤۹ کال کی په اردو کی دګوند ساز مانی فعالیت شروع شو. خو څرنګه چې زموږ پوه مشر زموږ دټولنی په رمز باندی‌تـر ټولو ښه پو هیده په اردوکی یی ګو نـــدی کار داسی تنظیم کړی وچی پا چا تحر یك نشی چې ګوند له وخت څخه پخوا تر ضربی لاندی راولی ،ولی دارد وله جریا ناتو خپله ملګری تره‌کی باید څه ناڅه خبر وی.

کله چې د داودکود تادسر طان په ۲٦نیټه و شوه ،نو ملګری تره‌کی دګوند په مرکزی کمیټه‌کی په اردو کی دګوندی کار دپراختیا مسئلـه مطـرح کـړه او ویـی ویـل چـــی دافغا نستان دخلکو دموکراتیك ګو ند با ید په اردو کی له‌دی امله جدی او فعال کاروکړی چی :

۱ـاردو نوره باید حا کمی طبقی ، ارتجاع او دامپر یالیزم نمایند ګانو او ګو ډاګیانوته پری نښو دله شی که چیری خلقی‌کار پـــه اردو کی پراخه او ژورنه وی حا کمه طبقـــه او دامپریالیزم ګو ډا ګیان او ارتجا ع پـــه همد غه اردو باندی سبا ټول انقلابی قـــوت او عنا صر وهی .

۲ـپه افغا نستان کی زموږ ګوند او س مـنا سبه پراختیا موندلی ده خلکو خلقیـــان پیژند لی دی (خپله ملګری نور محمد تره‌کی ډیرو خلکو پیژندلی و) ګوند کولای شی که سیا سی قدرت ترلاسه کړی ویی ساتی.

تر اوسه پوری وسله وال پوځ دزیارایستونکو دخپلو له پاره دحاکمی طبقـی پـه لاس کـی دستم وسیله وه دافغانستان دوسله وال پوځ دطبقاتی ماهیت څخه ښکاره کیږی چی دکار- ګری طبقی ګوند کولای شی په علمـــــــــی سو سیا لیزم باندی دبو څیا نو او افسرا نو په پو هولو سره دغه وسیله چې وسله وال‌پوځ دی لاس ته راولی او سیا سی قدرت تر لاسه کړی .

۳ـددی له پاره چې په وسله وال پـــوځ کی دافغانستان دخلکو دموکراتیك ګو نـــد موثر او فعا له کار وکړی او زرد غه پـــوځ دګوند تر قو ماندی لاندی راشی ملګـــــری نو رمحمد تره کی پیشنهاد وکړ چی ملګری حفیظ اللهامین ته دی په وسله وال پوځ‌کی دګو ندی چا رو دپرمخ بیلو مسو لیت ورکړ شی .

دافغا نستان دخلکو دموکراتیك ګو نـــد مرکزی کمیټی دخپل عمومی منشی دری واړه طرحی قبولی کړی او ملګری حفیظ الله امین ته وظیفه ورکړه شوه‌چی دملګری نور محمد- تره‌کی تر مستقیمی لار ښوو نی لاندی پـــه وسله وال پوځ کی ګوندی کار په مـــــخ بوزی .

په وسله وال پوځ کی دافغا نستان دخلکـو د مو کراتیك ګوند دملګری نور محمدتره‌کی

له مفکوری او نظر سره سم ډیر سم کارو کړ ډیرزردملگری نورمحمدتره‌کی دی نظرمصداق پیداکړچی باید اردودغه دحاکمی طبقی دظلم او ستم وسیله تر خلقی کنترول لاندی راوستله شی .

خلقیا نو دملگری امین په مشری په اردوکی ډیر منظم کار وکړچی زریی دوسله والی پوځ په ټولو برخو کی ریښی وزغلولی. ملگری حفیظ الله امین چه دملگری نور محمد تره‌کی تر مستقیمی لار ښو ونی لاندی په وسله وال پوځ کی دگو ندی کار مسؤلیت په غاړه درلود په مسلسل ډول یی په هر مناسب وخت کی خپل سترمشرته را پو رور کاوه .

هره هفته دپنجشنبی په ورځ دملگری نور محمد تره کی په دستور به ملگری‌امین دارد ود جریانو لنډ راپور مرکزی کمیټی ته وایه چی دگوند دستر رهبر تر نظر لاندی به تحلیل ،ارزیابی او تائید شو . خو ملگری نور محمد تره‌کی ته به تل ملگری امین‌مفصل راپور ورکاوه او هدایتونه به یی اخیستل نو ملگری نور محمد تره‌کی تل داردو په حال باندی پوره پوره خبرو ، او کله کله به یی دارد وهغو کد رونو سره کتل‌چی ملگری حفیظ الله امین به ورته معرفی کول چی دارد ودکدرونو رو حیه به‌یی ډیره لوړوله.

ملگری حفیظ‌الله امین نه یواځی دملگری نور محمد تره‌کی تر مستقیمی لار ښو ونی لاندی په اردو کی کار کاوه ،بلکی له ملکی کد رونو ځخه یی هم دملگری نور محمدتره‌کی په اجازه اود مرکزی کمیټی په تائید لو مړی درجه کدرونه په اردوکی‌د گو ندی کار لپاره له ځان سره نیو لی وو چی دملگری حفیظ‌الله امین تر مشری‌لاندی یی ډیر موفق او بریا لی کارو کړ .

ملگری نور محمد تره‌کی به دغه ملکی کدرونه چه په اردو کی یی کار کاوه وخت په وخت لید ل او داسی لارښوو نی به یی ور ته کولی چی دگوند بریا لیتوب به اوچته په کی ښکاره کیده .

د۱۳۵٤ کال په ژمی کی په مرکزی کمیټه کی داسی تحریك شروع شو چی دمر کزی کمیټی په نما یند گی یواځی ملگری‌حفیظ‌الله امین نه بلکه څو نو رملگری هم باید کار وکړی .په اول کی ملگری نورمحمد تره کی ور سره موافق نه واو ملگری حفیظ الله امین هم له دغه کار سره کلك مخا لفت‌ښوده اوپه آند یښنه کی وچی په اردو کی به‌ډیر ښه روان کار ویجاړ شی . څه موده‌وروسته‌ملگری نور محمد تره‌کی ملگری حفیظ‌الله امین تـه هغه حقا یق وویل چی باید دغه کار شوی وای تر څو وخت ترلاسه شی چی خپله دملگری نورمحمد تره کی په مشری دملگری حفیظ الله‌امین په ارتباط داسی کار په مخ لاړ شی چی دافغا نستان دخلکو دمو کراتیك گوند دسیا سی قدرت دنیولو له پاره پیا وړی اوتیارشی . نوداسی شوچی د۱۳۵٤ کال دژمی په ورځو کی دمرکزی کمیټی له غړ و څخه ملگری حفیظ‌الله امین ،ملگری ډاکتر صالح محمد زیری او ملگری عبدالکر یم میثاق‌بـه په گډه په اردو کی کار کاوه .

په ۱۳۵۵ کال کې ملگري حفیظالله امیـن دگوند ویاړ لی مشر نورمحمد تره کی تـــه لیکلی را پورو رکړ چې دافغا نستاندخلکـو دموکراتیك گو ند دی ته تیار دی چې پـه څه لړ وتلفاتو سره سیاسی قدرت له داؤد څخه واخلي .

څرنگه چې ملگري نور محمد تره کـــی زموږ دټولنی په رمز اوکیفیت باندی ډیر ښه پوه و، دغه کار يې څه نور هم ورو ستـــه وغور ځاوه تر څو چې دملگري حفیظ الله‌امین په مشر ي‌په اردوکی گوند لاډیر پیا وړی شي .

## له‌وحدت څخه وروسته دثور تر انقلابه پوری

دا باید وویل شی چې دخلقیا نـــو او پر چمیانو ترمنځ دوحدت له‌پاره خلقیا نو دغه طر حی در لودلی :

۱ـدگو ند مرکزی کمیټه باید له هغـو غړ و څخه متشکله وی چې دگوند لو مړی کا نگری انتخاب کړ ی او دلومړی کا نگری دمنتخبی مرکزی کمیټی پلینوم،وروسته‌مرکزی کمیټی ته انتصاب کړیدی .

یا ۲ـدگو ند مرکزی کمیټه په ټـــول افغا نستان کی دگو ند داصلی غړو په تناسب له دواړو خو او څخه جوړه شي .

یا ۳ـدگو ند مرکزی کمیټه دی دگو نـد دهغو مالی عا یداتو په تناسب جوړه شي چې دحق‌العضو یتو نوله لاری راټو لیږی، څکـــه دواړو خوا وود معا شونو په سلو کی دوی اوله بیکارانو څخه به‌دمیاشتی لـــس افغانـی اخیستلی .

یـا ٤ ـ له دواړو خـواو دی یـو گـــړ هیـــأ ت جـو ړ شی او د یو شمیر سوالونو په طرح کولو سره دی دافغانستان په زیـــار ایستو نکو کی دنمو نو په توگه دخلقیا نو او پـرچمیـانـو محبـوبیت وازمیـی او دهغـو په تنا سب دی دگوند مرکز ی کمیټه جوړه شي دا يوپیشنهاد هم پرچمیانونه مانه ، دببرك کارمل پشنهادونه داسی‌وو .

الف ـ دگوند مرکزی‌کمیټه دی له‌دواړوخوـ او په مساوی غړ و سره متشکله وی .

ب ـ دگوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دی ملگر ی نورمحمد تره کی او منشی دی ببرك کارمل وی او دارالا نشاء دی په دغـو دووغړو محدوده وی .

یا داچې ملگري نورمحمد تره کی دی‌دگوند دمرکزی کمیټی لومړی منشی وی اوببرك‌کارمل دی دوهم منشی وی‌او ددارلانشاء نــــــور غړی دی له دواړو خواو په برابر شمیر وی.
بالاخره ملگري نورمحمد تره‌کی ددی لـــه پاره چې دگوند دپیاوړی کید لوله پاره نور وخت هم ترلاسه کړی ،په دی لاندی شرطونو یې له وحدت سره موافقه وکړه .

۱ـدگو ند ټول رهبری کوو نکی اور گانونه دی له دواړ و خو اوو څخه له مساوی غړوجوړ شي .

۲ـدگوند دمرکزی کمیټی عمومی منشــــی به ملگري نور محمد تره کی وی او دری نور منشیان دی وی‌چې یود خلقیا نوله خــوا

او دوه دپرچمیانو له خوا چې یو له دغــو در یو غړو څخه په ببرك كارمل وي .

دوحدت دفیصلی لپاره داسې تر تیبات ونیول شول چې یو گوندی کنفرانس مر کـــزی کمیټه وټاکله او دمرکزی کمیټی پلینوم عمومی منشی ،ددارلانشاء غړی او دسیاسی دفتـــر غړی وټاکل ،چې دشپیتو کد رونو له خـــواد کنفرانس دغـه سنداو دمرکـــزی کمیټـــی دپلینوم دمصو بی په نامه سند امضاء شو .

دوحدت له دغی مرحلی څخه وروسته بـــه ټولو ملگرو ساز مانونو کی دوحدت دهمدی پر نسیب پهاساس دملگر و د یو ځای کو لو کار په بیړه روان وچی دثور تر انقلا بـــه پوری په سلو کی د (۹۰) څخه زیات ملگری سره یو ځای شول .البته دغه وحدت خو پـه شکل کی دومره په ځای شو خوپه محتو ی کی رښتینی وحدت سرته نه ورسید لی .

ملگری نورمحمد تره کی چه هر څو مره زيار ایسته چی په واقعا صادقانه توگه وحدت تر سره شی ، خو تحقق یی نه مو نده .

د اردو په سا حه کی ځر نگه چی خلقیان بالکل دسیاسی قدرت نیو لو ته تیار ووچی په دی باندی په رهبری کی یواځی ملگری نور محمدتره کی او حفیظالله امین پو هیـدل او هم دوی دارد وافسران داسی تر بیه کړی وو چی هره لحظه ددغه انقلا بی امر له پـاره تیار وواو په بریا لیتوب یی پوره ایمان درلود خوپخپله پهدوی کی هماصلی ملگری سره یئ‌پوو اوسره یی نه پیژندل .

نو دتیر یو کال او څو میا شتو دتجر بوپه نظرکی نیولو سره ، ملگری نور محمد تره کی په قاطع تصمیم سره دمرکزی کمیټی سیاسی دفتر قا نع کړ چی ټول خلقی افسران دی یوا ځی دملگری حفیظالله امین تر رهبری لاندی وی چی ملگری ډاکتر شاه ولی بـــه ورسره مرسته کوی چی په ولایاتـو کـی یی دځمکنیو قوا وو دافسرانو په کار کی ور سره مستقیمه مرسته کوله .دسیاسی دفتر دغړوله ډیرو جنجالو سره سره ملگری حفیظالله امین ته دخلقی افسرانو مسوو لیت ورو سپـــارل شو چی دملگری نور محمد تره کی ترمستقیمی لارښوونی لاندی یـــیکار کـــاوه دا چـــی دخلقی افسرانو مسؤولیت دملگری حفیظالله‌امین پهغاړه شو او دهغه پر بریالیتوب سره کار څخههم هر ملگری خبرونو بیا ببرك كارمـــل، نور احمد نور او نورو وفا دار ووابستگا نو ته یی‌نا آرامی پیدا شوله‌چی په گونـــدکی‌بـل تشو یش منځ ته راغی .داسی هلی ځلــــی شروع‌شولی چی باید ملگری حفیظ الله امیـن پهوسلهوال پوځ کی‌له خپل کار څخه‌لری‌شی!!

پـه دی تحریـك پسی د گـــو نـــد پــه رهبری کی دفر کسیو نونو درا پیدا کید و احسا س کید ه‌او داسی تبلیغات شروع شول چی ملگری نورمحمد تره کی تل دگوند پـــه جریان کی په ملگری حفیظالله‌امین با نـدی خا ص اعتماد لری ملگری نور محمد تره کی چی په ملگری حفیظالله امین خپل اعتماد هم نه پټاوه، تل هڅه‌کوله چی دگوند یووالـی وسا تی .خو ببرك كارمل تل په دغه شـــان تو طئو کی غرق وچی گوند په نا آرامه‌فضا

کی وسا تی تر څو دسیا سی قدرت دنیو لو امکان ورته میسر نه وی .

دملگری نور محمد تره‌کی په رهبری او د ملگری حفیظالله امین او نورو پیاوړ وکدرونو دژور کار په نتیجه کی دا امکان میسر وچی سیا سی قدرت تر لاسه کړ ی ا و ملگری نور محمد تره کی هم فر صت ورته لتاوه چی په رښا ورځ دانقلا بی قیام په واسطه سیا سی قدرت تر لاسه کړی .په دغه وخت کی‌ملگری حفیظالله امین دملگری نور محمد تره کـــی تر رهبری لاندی وسله وال پو ځ بالکل دغه شان عمل ته آماده کړی و، چی دملگری نور محمد تره کی دغه تیوری تحقق و مومی چی لومړی با ید اردو تر خلقی رهبری لاندی راولو او بیا سیاسی قدرت ونیسو .

نور نو ملگری نورمحمد تره‌کی او ملگـــری حفیظالله امین یوازی ددی فر صت په انتظار وو تر څو دانقلابی قیام له پاره انگیزه میسره شی .ملگری نور محمد تره‌کی په مفصل ډول ملگری‌حفیظ الله امین‌ته‌داسی‌هدایت ورکړی‌و: هروخت که څوك وغواړی چـی دداود رژیـــم ړنگ‌کړی باید دافغا نستان دخلکودموکراتیك گو ند سیا سی قدرت واخلی او که د داود رژیم په خلقیانو بر یدو کړی یا ملگــــری نورمحمد تره‌کی زنـدانی کړی خلقیـان باید په انقلابی قیام سره د داودرژیم ړنگ‌اوسیاسی قدرت تر لاسه کړی . که دانه وای شــوی دغو دواړ وملگرو بالکل داسی عینی ا وذهنی شرا یط برابر کړی وو چی‌په څو میا شتو کی به سیاسی قدرت دخلقیا نو لاس ته ورشی.

دحمل په ۲۹ نیته سهار وختی اطلا عراغله چی میر اکبر خیبر شهید شوی دی. دحمـــل په د یر شمه دهغه دجنازی په مراسمو کـــی دسلو زرو کسو په شاو خوا کی خلکو گډون کړی ؤچی دټو لو په سر کی ملگری‌نورمحمد‌ـ تره کی روان و .په دغه ورځ ملگری نورمحمد‌ـ تره کی ملگری حفیظالله امین ته هدایت ورکړی و، چی په ټول وسله وال پوځ‌کی باید خلقیان بالکل دتیار سی په حال کی اوسی چی کومه ناوړه پیښه ونشی .

دخیبر په جنازه‌کی چی دولت دملگــــــری نورمحمد تره‌کی محبو بیت ولید اوپـــــــه وسله وال پوځ کی دملگری امین په واسطه آماد گی نیو لی شوی وه هم یی دولت اوهم یی ببرك کارمل متوجه کړل .

څرنگه چی سردار داود له دی پیښی څخه دمخه خپل ورو ستی تعهد له بین المللـــــی امپر یالیزم او ارتجاع سره پوخ کړی وچـــی په خلقیانو به برید کوی ،دخیبر جنازه یـــی بهانه ونیو له او دڅور په شپږمه ورځ یی په گو ند باندی بر ید وکړ او ملگری نورمحمدـ تره کی او څینی نور ملگری یی زندا نیـان کړل .ملگری حفیظ الله امین دڅو سا عتـــو له پاره په کورکی دپو لیسو تر نظارت لاندی ؤ، چی‌خبر‌یی‌واخیست چی ستر مشر‌یی ملگری نورمحمد تره‌کی زندانی شوی ؤ ،نو دخپـــل گران مشر نور محمد تره‌کی دهغی لارښوونی او هدایت له مخی چی پخوایی ور کـــــړی‌و، ملگری حفیظ الله امین دانقلاب دپیل کو لو، د داود درژیم دړنگو لو ا ودافغا نستان دخلکو

ددموکراتیك گوند په واسطه دسیا سی قدرت دنیو لو قو مانده ور کړه چی بایدد ثور په اوومه نیټه دسهار په نهو بجو انقلاب شروع شی .دثور دپر تمین انقلاب جر یانات دثور دانقلاب په هکله کتاب کی چی‌دافغانستان دخلکو دوسله وال پوځ دسیاسی چارودریاست له خوا خپور شوی دی مطا لعه کړی .

## تیو ریتیکی کار :

پخوا له دی چی دافغانستان دخلکــو دمو کراتیك گوند تاسیس شی زموږ ستـر مشر نور محمد تره کی ډیر مترقی او انقلابی آثار لیکلی وو چی په هغو ټو لوکی دعلمی سو سیا لیزم نور ځلیده او لو ستو نکو تـه یی دنه پخلا کیدو نکی طبقا تی مبا رزی‌ژور احساس ورکاوه .

زموږ ستر رهبر ملگری نور محمد تره‌کی په خپلو انقلابی آثار وسره دکار گری طبقی دگو ند دتاسیس زمینه ډیره ښه مسا عـده کړی وه اودافغا نستان دخلکو ددمو کرا تیك گو ند په تاسیس کی‌یی ډیر مهم اثـــر در لود . دهغه دغه مترقی آثار یوا ځـــی دافغا نستان دخلکو دمو کرا تیك گو ند له تاسیس څخه ړومبی خپل تا ثیرات باندی‌منحصر نه وو، بلکی دگو ندله تاسیس څخه وروسته یی هم په افغا نستان کی دمتر قی عنا صرو په روز نه او تکامل کی ډیر مهم رول لوبولی دی زموږ دستر مشر انقلابی آثار چه‌دافغانستان دخلکو ددمو کراتیك گوند له تاسیس څخـه ړومبی نشر شوی ووډیر انقلا بی اومتر قـی کیسی، ناولونه اوسوسیالیستی ادبیات وو چی په ټولوکی طبقاتی مبـارزی او علمـی سوسیالـ لیزم اساس درلود او ورسره سم یی دکــــار گری طبقی د دوران جوړونکی ایډ یالوژی‌دری برخی . فلسفه، اقتصاد اوعملی سوسیالیـزم په کلاسیکه او علمی توگه په ډیر اصو لــی ډول او ډیر مفصل خپاره کړل اوپه هیواد کی دننه اوله هیواد څخه دبا ندی پهٔقا نو نـــی او غیر قانونی توگه چاپ او خپاره‌شول. داهم باید وویل شی ددغه ستر او پیاوړی لیکوال او ستر مشر ملگری نورمحمد تره کی‌دآثارو اغیزی یوا ځی‌په افغا نستان کی محدودی‌پاتی نشوی دمنطقی دزیار ایستو نکو وطنپا لو نکو په زړونوکی‌یی هم ډیری‌پراخی‌ریښی وزغلولی چی طبقا تی نتیجی یی ښکاره کیږی .

دافغانستان دخلکو دمو کراتیك گو ندله تا سیس څخه دثور تر انقلا به پوری خلقیانو دخپل گران لاربنود په لار ښوو نه ډیــــر پراخه تیور یتیکی آثار خپاره کړل چی پــه ټولو کی دعلمی سو سیا لیزم اثر ښکاره واو هم دکا رگری طبقی دعلمی ایډ یالوژی‌شوغلی په‌کی ځلیدی . دغه مترقی او انقلابی آثار ، ناولونه ، کیسی، شعرونه ، ترجمی، تالیفونه او لیکنی وی چی په پراخه توگه په قانونی او غیر قانو نی ډول په هیواد کی دننـــــه اوله هیوادڅخه دباندی چاپ اوخپاره شول .

په لیکل شو یو او چاپ شویو آثارو بر سیره دافغانستان دخلکو دموکراتیك گو ند دخپل ستر لار ښود ملگری نورمحمد تره کی په لار ښو ونه او دتیوری دکمیسیون په‌ترتیب تنظیم، کاراو فعالیت سره دگوند له تاسیس

څخه دثور ترانقلابه پوری د گو ند په علنی او مخفی حوزو او کمیټو کی دکار گری‌طبقی علمی تیوری تدریس کیدله اوورسره سم هر کال دافغانستان په مختلفو ځایو کی یی‌گوندی تیوریکی کور سونه دایرول چی دکار گری طبقی‌دعلمی ایډیالوژی‌دری واړه‌برخی: فلسفه، اقتصاد او علمی سوسیالیزم په مفصله توگه دډیرو پو هو اووتلو ملگرو له خوا تدر یس کید لی .په علمی کنفرانسو نو کی هم پــه علمی سو سیا لیزم باندی ډیر پراخه بحثونه کیدل .

دثور دپر تمین انقلاب له بر یالیتوب سره دافغا نستان دخلکو دمو کراتیک گو نـــد ددولت دضد مو قف څخه دحا کم گو نـــد مو قف ته راغی ،خود گوند په مقرراتو کــی نوی مرحله وه چی شروع کیږی او ورسره سم ځینی نوی ملگری دگو ند مر کزی کمیټی ته انتصاب شول او دمرکزی کمیټــی نوی منشی او سیا سی دفتر ته نوی غــړی منتخب شوی دی .ځینی نورد مرکزی کمیټی له دارالانشاء ،سیاسی دفتر او خپله دمرکزی کمیټی له غړ یتوب او یاله گوند څخه خارج شوی دی .

د ۱۳۵۷ کال دقوس دمیا شتی په شپږمـه نیټه دافغانستان دخلکو دمو کرا تیك گو ند دمرکزی کمیټی پلینوم ته دگوند دعمومـــی منشی ملگری نورمحمد تره کی را پور اود مر کزی کمیټی دپلینوم په فیصله کی دغــه مطا لب بنکاره دی .

# د ا.خ.د ک د پلنوم دا پریکړه د کارګري نهضت د پیاوړي کیدلو او پراخیدو د پاره ډیر مؤثر رول لري

دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند دمرکزي کميټې پلینوم ته دافغانستان دخلکو ددموکراتيک ګوند دمرکزي کميټې دعمومي منشي ملګري نورمحمد تره کي رپوټ ۰

۵۷/۹/۶

## ګرانو مبارزو ملګرو!

دافغانستان دخلکو دموکراتیک ګوند دمرکزي کميټې دپلينوم پياوړو غړو !

خوشحاله يم چه دافغانستان دخلکو دموکراتيک ګوند (دهيواد دکارګري طبقې مخکښ) دمرکزي کميټې پلينوم پداسې حال کې پرابيزم چه دګوند دتکامملي تنبې پکې رني بريښې لدغو ځلاندو نښو څخه يو هم دمرکزي کميټې پراخيدل دي چه دادي نوي انقلابي څيرې پکې ښکاري ۰

دهر کارګري ګوند په شان دافغانستان دخلکو ددموکراتيک ګوند دپلينوم دا پريکړه دکارګري ګوند ونواو کارګري نهضت دپياوړي کيدلو او پراخيدلو دپاره ډير مؤثر رول لري ۰

دپلينوم دغه ستراهميت پدې کې دی چه دګوند، دولت، ټولنې او ټول جهان مهمې پيښې څيړي اودکارګري نهضت په ګټه کارورڅخه اخلي۰

له هر کارګري ګونداو هم دافغانستان دخلکو ددموکراتيک ګوند دپلينومونو دستررول له امله پرهغومسايلو باندې په لنډه توګه څه رڼا اچوم چه داهميت له نظره دلته اړوند پيدا کوي ۰

## په نړۍ کې:

په نړۍ کې دسوسياليزم ورځ په ورځ برې دملي نهضتونو پياوړي کيدل او دامپرياليزم ويجاړيدل روان دي۰

په متحدو ملتونو کې دسوسياليستي هيوادونو دريزورځ په ورځ پياوړي کيږي دلاتيني امريکا افريقا او آسيا دخلکو له ملي آزادي غوښتونکو نهضتونو څخه ملاتړ ډير يږي او دامپرياليزم تجريديدل په زياتيدودي په افغانستان کې دثور بريالي انقلاب دامپرياليزم زړه ټوپ ټوپ غوڅ کړ ، دهند په سمندرګي امپرياليزم ډير رسوا کيږي امپرياليزم داند ونيز يا ترلاس لاندې

جزایر وکی‌نهضت مړنشوګړای دامپریالیستانو ترمنځ رقابت هم په زیاتیدودی په‌لری ختیزکی له جنوبی کوریا څخه دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت درسمی پیژندنی بیرته اخیستلود امپریالیزم دماتی مساله ګرندی کړه .

ډیره مهمه مساله دویتنام دقهرمانی څخه ډك بریالی توب آثار دی ، دویتنام په ضدهغه دځینو ګاونډیوهیوادودریدل ددوی اودامپریالیزم ترمنځ ګډسنګر لا ډیر افشا کړ.

په منځنی ختیز کی‌شخړه‌روانه‌ده امپریالیزم لاپه هماغه قـوت له اسرائیلــو او عربو لــه ارتجاع سره څنګ په څنګ‌ولاړ دی امپریالیزم لاپدی بریالی دی چه ځینی هغه عربی هیوادـ ونه چی اسرائیلو وربانډی تیری کړی‌وو دخپل اسارت په لومه کی راولی او دعربو دخلکو دګټوپه ضد یی ودروی دکمپ دیوید مذاکرو داعرابو مترقی قوتونه‌او عناصرډیر متاثر کړل دافغانستان دثور انقلاب هم امپریالیزم اود منځنی ختیز ارتجاعی‌قوتونه‌لاډیرسره‌نژدی کړل.

په افریقاکی لادامپریالیزم‌تیری په‌خپل قوت دوام لری که څه هم‌دانګولا، ایتوپیا اوموزمبیق دخلکو اودافریقا دنور ونهضتونو بریالیتوبو دټولی نړی پام ځانته راواړاوه خوامپریالیستی انحصاری منابع لاپه خپل قوت په افریقاکی خپلولاس وهنــو تــه دوام ورکوی اوځینی سوسیالیستی هیوادونه یی لاهلته څهنا څه مصروف ساتلی دی .

په اروپا کی دسولی‌په‌سنګرکی دسوسیالیستی کمپ دډیر وروښانه بریالی توبونو سره سره امپریالیزم ددیتانت په ضد توطئی کوی او دستراتیژیکی وسلو دبندولو دپاره د تړونونو په لاره کی خنډونه پیدا کوی .

په منطقه کی دتوجه وړ په پیښوکی دایران کورنی مسالی دی چی امپریالیزم پکی پراخ لاس لری هلته ناآراموو نکی آړدوړ روان دی. دامپریالیزم مستقیمه نظامی مداخله په ایـران کی دمنطقی دپاره لاډیر خطرپیدا کوی چــه دټولو سو له غوښتونکو پام یی ځانته اړولـی دی .

په‌هند وچین کی دقهرمان ویتنام بریالی توب اودواحــــد سوسیالیستی ویتنام منځتـه راتلل ستره ضربه وه چی په امپریالیزم باندی حواله شوله. دکمبود یانچات دټولو دوستانو دخوشحالی باعث وګرزید خود تاسف ځـا ی دی چه‌ژرداغلطی پالیسی ښکاره شواودقهرمان ویتنام په ضد دځینو نورو ګاونډیو هیوادو له رهبرانو سره په‌یوه سنګر کی راغله چی دامپریالیزم دزړه له ارمانونو سره پوره‌توا فق لری .

په پښتنو اوبلو څوکښی دافغانستان‌دخلکو دثور انقلاب اثر ډیر پراخ دی ډیر مدافع او ملاتړ پښتانه او بلوڅ په کلکـه دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت څخه ملاتـړ او حمایت کوی .

## په هیواد کی :

ګران ملګری ښه پوهیږی چی په افغانستان کی خلقی انقلابږونږ ټول داخلی او خارجی دښمنان ډیر ناآرامه‌کړیدی دوی په هر ډول دسیسو لاس پوری‌کړیدی. په ځینو ځایوکی

په خلقی سربازانو او کار کوونکو باندی‌وسله وال تیری وشول چی دخلقی امنیتی قوا ووله خوادهغو سیمودخلکو په مرسته‌کلك گوزارونه ورباندی وشول اوله مینځه یووړل‌شول ۰امکان لری چی ددښمنانو له خوادغه شان تیت اوپرك تیری په راتلونکی وخت کی هم کله‌کله‌وشی۰

دډول ډول شوا هد ولګه وسلی، خپرونی، لیکنی، اعترافونو اوداسی نورو څخه څرگنده ښکاری چه زمونږ خلقی دولت په‌ضد توطئوکی امپریالیستی اوچپ افراطی هیوادونه اودمنطقی ارتجاع پراخی برخی لری ۰

بیاهم دویاړ ځای دی چه زمونږ خلقی‌وسله وال پوځ دخلکوپه ملاتړدخپل انقلاب ددفـاع دپاره پوره پوره تیار دی .

## گرانو ملگرو!

ستاسو خلقی دولت دانقلاب دسا تنی دپاره پراخه‌تیاری لری، ډول ډول توطئی چه دگوند اودولت په ضدجوړیږی کشفوی اوپه بیړه یی له مینځه وړی زمونږ دخلقی دولت په ضـد ټول داشرافیت بقایا ، چپ افراطیون، اخوانیان

تنگ نظره نـاسیونالستان او تفـوق طلبـه ناسیونالستان او نور په ارتجاع او امپریالیزم

پوری تړلی عناصر سره یوشوی اودیومعلوم الحال مرتجع هیواد له لمنی دمبارزی فکرونه

په سرکی روزی ۰ ددغو ټولو مبارزوپه لړکی لازمه بولم چه دهغی ستری توطئی په‌هکله‌څه لنډ معلومات وړاندی کړم چی دامپریالیزم په محوری رول دخلقیانو دټولودښمنانو لخواجوړه شوی وه ۰

## مبارزو ملگرو!

تاسو ټولو ته ښکاره ده چه دثور انقلاب دخلقیانو په قاطع اوانقلابی تصمیم او قومانده بریالی ترسره شو ۰ خود ثور له اوومی‌نیټی چه دانقلاب دبریالیتوب ورځ‌ده دانقلاب ضد دسیسی هم شروع شوی دی. خلقیانو دانقلاب په بریالیتوب کی په قهرمانی برخه واخیستله اوس یی دساتنی‌دپاره په‌پوره اوژوردقت‌سره کارکوی ۰

کله چی دامپریالیزم لخوا دثور دانقلاب‌په ضد توطئه‌شروع‌شوه اوپه‌کابل‌کی امپریالیستی منابعو له خپلوایجنټانو سره تماس ته ادامـه ورکړه نو زمونږ امنیتی مسولینوهم اطـــلاع ورڅخه پیدا کړه اومثبتو اسنادو په لاس ته راوړ لویی پیل وکړ زمونږ اطلاعات ورځ پـه ورځ پراخه کیدل اوومو کړای شوچی خپل ډیر شمیر ملگری پکی ورداخـــل کړو ۰ دلته داسی اسناد ترلاسه شول چی له گوندی ملگرو څخه دببرك کارمل په رهبری قادر اوځینی نورو هم پکی برخه در لود له ۰

دژورو څیړنو په مطالعه پیدا شوه چی قادر اصلازمونږ له گوند څخه‌بر سیره له وحدت څخه

ړومبی دببرك‌کارمل سره ، دچپ افراطیانوسره اوتنگ نظره ناسیونالیستانو سره هم ارتباط درلود خوبیاهم داحتیاط دپاره موډیر فرصت ورکړ چه ځان تصحیح کړی ۰ددی دپاره چه مساله ښه روښانه شی اودامپریالیستی منابعو رول زرراپورته شی او توطئه سره لـدی چــه ترکنترول لاندی وه ښه کشف شی لازم ولیدل

شول چه ببرك کارمل پراګ کی، نوراحمد نور
په واشنګټن‌کی ، وکیل په لندن کی، اناهیتاپه
بلګراد کی، نجیب په‌تهران کی‌او محمودبریالی
په پاکستان کی سفیران شی •

څرنګه چی مقدماتی اسناد وپه توطئه کی
دوی ښکیل شودلی وو او په هیوادکی ددوی
موجودیت له وخت څخه‌پخواله دوی سره‌دګوند
تصادم منځته را ووست نو ددوی سفیر کیدلو
تجویز ونیول شو •

لدی وروسته چه‌قادر ،میرعلی‌اکبراو شاه‌پور
ونیول شول زمونږ لاس ته لاډیراسناد راغلل
هغه معلومات چی‌دلته دامپریالیستی اوارتجاعی
هیوادونو دنمایندګانوپه هکله ترلاسه شوی وو
ددوی په زندانی کیدلو سره بالکل محقق او
تثبیت شول •

پدی جریان‌کی په نوموړو سفیرانو برسیره
دسلطان علی کشتمند او رفیع رول هم‌اوچته
ښکاره شو • که څه هم چه ډیر کسان پدی
سلسله کی راغلی دی خود هغوزندانی کول
حتمی وبریښیدل چه‌مهم‌نقش‌یی درلوداو دولت
او هیواد وربانده له خطره څخه بچ کیدلای
شو •

دکشتمنداو رفیع او ځینو نورزندانی‌کیدلو
سره ښکاره شوله چه طاهر بدخشی اودهغه
ارتجاعی مربوطینو او ځینی‌عظمت طلبه ناسیو-
نالستانوهم له ارتجاع ، امپریالیزم او کینو
افراطیانو سره پدی توطئه کـــی داسی لاس
درلود چه‌دهر نظرخاوندان مستقیما امپریالیستی
جاسوسی منابعو اداره کول .

ددغو ټولو حقایقو په رڼا کی پوره تثبیت
شوله چی پورته ذکرشوی سفیران‌په دی توطئه
کی پوره ښکیل وو •

دهغو دراغوښتلو امرورکړشو هغوی ســره
لدی چی رانه غلل دسفارت په حسابونو کی
یی هم هرڅه چه لیدل لوټ کړل .

دډیروشواهدو څخه داپوره ښکاره شوله چه
په ځینو ځایوکی ددولت په ضد دسیسوکی
هم ددغو خلقی ضد عناصر واو دامپریالیــزم
دشبکو پراخ لاس او ډیری داسی نښی وجود
لری چه دغه حقیقت پوره ثابتوی .

ددولت له کارونو څخه تاسو ټول خبریاست
چی په ښه شان جریان لری زمونږ وزیران
اوټول خلقی‌کدرونه په‌ژوراحساس سره دځپلو
کارونو جریان ته متوجه دی اقتصادی پروژی
موپه بیړه په‌مخ ځی، کلتوری، اجتماعی اومالی
ترمنځ اړیکی په ډیر سرعت ټینګیږی .

## دافغانستان دخلکو دموکراتیــك ګوند:

دثور دپرتمین انقلاب په بریالیتوب سره
دافغانستان دخلکو ددموکراتیك ګوند دمبارزو
شکل او ماهیت‌تغییر وموندااوددولت داخیستلو
په اثر یی مسوولیتونه خورا درانه شول دغه
ستر تکامل حالت لامتکامله انقلابی روحیه اود
دښمنو په ضد لاډیر غوڅ تصمیمونه ایجابول•
دثور ویاړلی انقلاب په افغانستان‌کی دګوند
او خلقی نهضت اودخلکو په مینځ کی دګونداو
ګوندی ملګرو موقف لاډیر ښه روښانه کړ•
دناوړو تفاهماتوله‌مینځه‌وړلوپه‌صادقو ملګرو
باندی دډیر ښه باور پیدا کولو اویوله بل

سره په خلقی وجدان سره دلاډیر نژدی کیدلو امکانات ډیرښه برابر شول چه ټولو صادقو خلقی ملګــرو ځانونه ډیرښه ورسره عیـار کړل پدی لړکی په پوره مینه ملګری حفیظالله امین دمرکزی کمیتی دسیاسی دفتر دغړی په حیث انتخاب شو •

خوځرنګه چی علم حکم کوی په انقلابـــی نوی مرحله کی طبقاتی خصلتونه چی لاله‌ړینی یی انقلابی تغییرنه‌وی خوړلی تبارز کوی چی دګوند په ځینو غړوکی دغه حکم صدق پیدا کړ دګونداو دولت په ضد یی پــه نامطلــوبو اعمالــو لاس پوری کړ په توطئوکی یی اشتراك وکړ او بیایی په ګوند کی ددرزونودپیداکولو او دهغه دلویولو دپاره هلوځلوته ادامه ورکړه .

دګوند ی تحقیقاتو داګساوو څارندوی محققو راپورونو په اساس دثور دانقلاب اودخلقی دولت ضد دسیسو کی دغوکسانو دببرك کارمل په رهبری مستقیم لاس در لود •

۱ـ ببرك کارمل •

۲ـ نور احمد نور •

۳ـ وکیل •

٤ـ انــاهیتا •

٥ـ نجیب .

لدغی توطـئی سره سم دخلقیانو په ضد دپر چمیانو په نامه دجلافرکسیون دساتلوپه خاطر هم مذبوحانه هلی ځــلی روانی دی‌چه دببرك کارمل له رهبری سره وفاداری کـــی ګوندی ضد فعالیت کوی چه دغوکسانو یی په رهبری کی ستر رول لوبولی دی •

۱ـ محمود بریالی •

۲ـ فدامحمد دهنشین •

۳ـ مجید سر بلند •

٤ـ نظام الدین تهذیب •

٥ـ سرور یورش

ددوی له هدایتونو سره سم داسی فعالیتونو جریان در لود چه دګونداودولت درهبری دغړو ترورپکی په ښکاره طرح شویده اواوس هـم لادغه شان فرکسیونی، ګوندی او انقلابی ضد فعالیتونه دوام لری چی ترتعقیب لاندی دی او په ګوند کی دهر ډول ګوندی ضد اعمالو په مقابل کی جدی برخورد کیږی او دتخریبی کارونو مخه نیوله کیږی •

په مرکز اوولایاتوکی ګوندی مبارزه په ښه شان دوام لری هر چیری دګوند ویشی پــه خلکو کی ورځ په ورځ ژوری کیږی ملګری حفیظ الله امین دمرکز ی کمیتی دمنشی پــه

توګه هم انتخاب شو • اوس دعمومي منشي ترمستقیمي لارښودنۍ لاندې دوه‌منشیان دمربوط کمیسیونوله لارې ګوندي چارې او دخلقـــي سازمانونو کار ونه اداره کوي دغـــه دوه منشیان ملګری حفیظ الله امین او ملګـری ډاکتر شاه ولي دي •

دمرکزي کمیسیون او نورو سازمانو غـړي دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې له غړو اوو تلیو کدرونو څخه جوړیږي دسیاسي دفتر نورغړي دګوند او دولت عمومي چارې دسیاسي دفتر له لارې اداره کـوي او دګوند او دولت دعمومي‌پالیسي دتطبیق مراقبت کوي خومستقیما په کمیسیونوکې عضویـــت نلري •

دغه کار زمونږ دڅورو څیړنو او تخصصي مشوروپه اساس تنظیم شوی دی .

دانقلاب په‌لومړ یوورځوکي دګوندددارالانشا په دعوت څینې‌کسان‌چې په‌ګوندي تشکیلاتوکې یې تخصص درلود کابـل تـه راغلـل او دلته یې درې میاشتې ګوندي چارې مطالعه کړې اودهغو پـــه نتیجه کې یې مفصلې مشورې ګوند ته وړاندې کړې چې پرله پسې ګوند دهغو مطابق عیار او تنظیمیږي اوداکار په بیړه په منظمه توګه جریان لري چه ډیرې ښې‌نتیجې ورکوي •

**له ورونو ګوندونوسره تماسونه:**

دافغانستان دخلکو دموکراتیک ګوند دملګري حفیظ الله امین ، ډاکتر شاه ولي ، دستګیر پنجشیري اونورو څېلو غړ و په وسیله چې دمختلفوهیاتونودمشرانوپه توګه باندنیوملکونه تللي ووډجهان له مهمو کارګري ګوندونوسره تماسس نیولي اوله هغو سره یې زمونږ دګوند اړیکې په زړه پورې توګه ټینګې‌کړیدي •

باید ووایم چې اوس زمونږ دګوند، ګوندي اړیکې دټولې نړۍ له مهمو کارګري او خلقي احزابو سره ټینګې دي اودڅینوسترو اومهمو ګوند واستازي دلته راغلي دي چه زمونږګوند او زمونږ دانقلاب په زړه پورې نتیجې له نږدې وګوري مونږ دڅینو هیواد و دوروڼو احزابو کانګروته خپل استازي هم معرفي کړیدي چه دهغو ګڼون اووېناوو په جهاني‌کارګري‌جنبش کې ښه په زړه پورې اغیزه کړیده •

ډیره مهمه اودعلاقې وړمسأله دشوروي اتحاد دکمونست ګوند دمرکزي کمیټې دشورويااتحاد دعالي شورا دصدر هیات او دشوروي حکومت له خوا دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې‌عمومي‌منشي دافغانستان‌دموکراتیک جمهوریت دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم ته بلنه ده چه مسکوته‌سفروکړي په‌راتلونکې هفته‌کې ملګري نورمحمد تره‌کی دیوهیات په

مشری شوروی اتحاد ته سفر کوی ، دنور و مسألو په ضمن کی به دافغانستان اوشوروی اتحاد ددوستی اړیکی اوددواړو هیواد و دگوند ترمینځ اړیکی و خپرلی شی او تصمیمونه به ونیول شی .

## گرانو او مبارزو ملگرو!

دافغانستان دخلکو په وسیله وال پوځ کښی دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند نفوذ او دکار ساحه ورځ په ورځ په بیړه پراخیږی.

تاسو پوهیږی چه زموږ دګوند په لنی پدغهقشر کی اصلا گـوندی کار په ډیر ښه پوځ اساس سرته رسیدلی ؤ. دانقلاب په بریالیتوب کی یی مهم رول دراود . اوس هم په وسله وال پوځ کی دگوند دپیاوړی کیدلوله پاره ښه ترتیبات نیول شوی اوگوندی کارونه ښه سرته رسیږی.

په وسله وال پوځ کی گوندی تشکیلات،ارتباط ، زده کړه او تربیوی کارونه ښه نظم او نسق لری، اوس اردو واقعا د یوکل په حیث خلقی اردودی او په نژدی وخت کی به ددغه ډیرعالی گوند فعالیت نتیجه داوی چی ټول وسله وال پوځ به خلقی وسله وال پوځ شی .

همدا اوس په وسله وال پوځ کی خپله افسران دکدرونو په حیث کارکوی یوازی دمرکزی کمیتی یوغړی ملگری اقبال په وسله وال پوځ کی دسیاسی چارو رئیس دی. په وسله وال پوځ کی دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دفعالیتونو رهبری دمرکزی کمیتی دسیاسی دفتر په هدایت ملگری حفیظ الله امین په غاړه لری چه مستقیما ملگری نورمحمد تره کی ته پرله پسی راپور ورکوی او هدایت اخلی .

په وسله وال پوځ کښی دخلقی نهضت په مقابل کښی دخلقیانو دښمنانو ډیری هلی ځلی وکړی چه مشکلات ایجاد کړی خودښه تنظیم اوزور انقلابی گوندی کار په اثر دهغو هلی ځلی شنډې شوی او قاطع عمل ورسره شویدی .

داهم دیاد ولووړده چی په وسله وال پوځ کی دگوندی کدرونو اودگوند دنوروغړو دروزنی دپاره ښه ترتیبات نیول شویدی .

دلته ډیر فعال کدرونه کارکوی، کورسونه دوام لری ، دسیاسی زده کړی دپاره کوتی اودتنویر خونی جوړی شویدی اودمترقی آثارو دپاره پوره پوره ترتیبات نیول شویدی او یوشمیر ځوانان تر تربیی لاندی دی اوس په وسله وال پوځ کی دخلقی ځوانانو سازمانونه په بیړه وده کوی .

دجهانی او کورنیو شرایطو په نظرکی نیولو اودافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند (دهیواد دکار گری طبقی مخکښس) دگټوپه خاطر دالاندی پیشنها دونه وړاندی کیږی .

لومړی :

دغه کسان دخپل خیانت لهامله چی دثور دویاړلی انقلاب، خلکو او دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند ته یی کړیدیاو عملاییدخلقی دولت په ضد دتوطئیپه طرحکی برخه اخیستی ده چی اعتراف یی هم کړیدی اویازمونږ گران هیواد افغانستان تهیی له واتگ څخه ډډهکړی ده لومړی درجه مسوولیت لریاو باید لازمه جزاور کړه شی .

۱ـ ببرك کارمل .

۲ـ نوراحمد نور .

۳ـ سلطا نعلی کشتمند .

٤ـ وکیل .

٥ـ ډاکتره اناهیتا راتبزاد .

٦ـ ډاکتر نجیب .

۷ـ محمود بریالی .

۸ـ عبدالقادر .

۹ـ رفیع .

دوهـم :

دغو لاندنیو ملگرو وچی دپراخو اطلاعاتواو شواهد وله مخی یی دخلقیانو په ضد پـــه فرکسیونی توگه عمـل کـړی اودببرك کارمل تررهبری لاندی گروپ دپیاوړی کیدلو دپاره یی کار کړیدی دوهمه درجه مسوولیت لری چی دوی ته هم باید لازمه جزا ورکړه شی.

۱ـمجید سر بلند .

۲ـ فدامحمد دهنشین .

۳ـ نظام الدین تهذیب .

٤ـسرور یورش .

یادونی :

۱ـ ملگری بارق شفیعی او ملگری سلیمان لایق لدی امله چه څوکاله یی دببرك کارمل ترلارښوونی لاندی مبارزه کړی اودببرككارمل خیانت اثبات تهورسید داوطلبانه یی دمرکزی کمیتی دسیاسی دفتر له غړیتوب څخه خپل لریوالی غوښتی اویوازی دمرکزی کمیتی په غړیتوب کییی دکار ادامه غوښتی ده چـــی دسیاسی دفترله خوا منله شویده .

۲ـ ددغی توطئی دټولو جړو دراکښلودپاره پـر ا خ او ژ و ر تحقیقا ت د و ا م لـــر ی چی وروستی نتیجی به یی دمرکزی کمیتی بل پلینوم ته وړاندی شی .

۳ـ ددی دپاره چی دافغانستان دخلکـــــو دموکراتیک گوند په هکله څه نا څه مرتـــب

معلومات وجود ولری زمونږ ددغه گران گوند لنډه تاریخچه ترتیب شوی چه په کلی توگه معلومات ورکوی هغه باید چاپ شی او مفصل تاریخ به یی وروسته ولیکل شی •

٤ـ د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت حکـومت په افغانستان کی د ځمکو په هکله دافغانستان د دموکراتیک جمهوریت دانقلابی شوراا تمه گڼه فـرمـان طـرح کړی چه سیاسی دفتر هغه منلی دی څرنگه چی ددغه قانـــون په تطبیق سره زموږ په گران هیوادکی فیوډالیزم په کلی توگه ماتیږی نودهغه دتصویب دپاره دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دپلینوم تصمیم لازم دی باید دغه پلینوم دهغه په هکله تصمیم ونیسی .

یقین لرم چه دغه ستره غونډه به په افغانستان کی دخلقی جنبش دلاپیاوړی کیدلو او د افغانستان دخلکو ددموکراتیک گـوند دلاډیر بریالیتوب دپاره ډیر مو ثرونډ ولری •

ژوندی اوبریالی دی وی دافغانستان خلك !

بریالی دی وی دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند (دهیواد دکارگری طبقی مخکښ) !

# دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دپلنوم پریکړې

دافغانستان دخلکو دد موکراتیک گو ند دمرکزی کمیټی پلینوم ، دافغانستان دخلکو دد مو کراتیک گو ند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی ملگری نور محمد تره کی تر مشری لاندی ددیارلس سوه اووه پنځوسم کال دقو س په شپږمه نیټه دخلکو په کورکی جوړ شو.

دافغانستان‌دخلکو ددمو کراتیک گو ند دمرکزی‌کمیټی دپلینوم پریکړی چی ددیارلس سوه اووه پنځو سم کال دقو س دمیا شتی په‌شپږمه نیټه دافغانستان دخلکوددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دعمو می منشی ملگری نور محمد تره‌کی په مشری دخلکو په‌کورکی وشوه .

دافغانستان دخلکو ددمو کراتیک گو ند دمرکزی کمیټی دغه تاریخی پلینوم چی دسهار په نهو بجو پیل اوله غرمی نه وروسته تر یوی نیمی بجی پوری روان ؤ دپلینوم دغړو له خوایی په انقلابی ولولو اومینی سره هر کلی وشو او داسی وځیړل شو .

دپلینوم دغه غونډه زمونږ په هیواد گران افغا نستان کی دکار گری جنبش په‌پرمختیا کی ستر او تاریخی گام دی دپلینوم داغونډه دافغا نستان دخلکو ددمو کراتیک گوندپه‌زیاته پیاوړ تیا کی ډیره لویه او انقلا بی اغیزه کوی دپلینوم دا غونډه دافغانستان د خلکو ددمو کراتیک گوند او زمو نږ دزیار کښو

خلکو تر منځ دنه شملید ونکو اړ یکو په ټینگښت کی پیاوړی رول لری .

دپلینوم دا غونډه دافغانستان د خلکو ددمو کراتیک گوند دمبارزو ملگرو او زړورو غړیو تر مینځ دډیر لوړ پیو ستون په تامین کی مهمه اغیزه لری .

دپلینوم دغه غونډه دامپریالیزم ضد په نړیواله مبا رزه کی دسو سیا لیزم له ار دو گاه څخه دافغانستان دخلکودموکراتیک گوند علمی درك په ځلانده تو گه ښئیی.

دپلینوم دغه غونډه دکارگری انترناسیو- نا لیزم او دنړی والی سو لی څخه دفاع ته دافغانستان دخلکو ددمو کراتیك گو ند دغړیو زیا ته وفا داری په ښه تو گه څر گندوی .

دپلینوم دغی غونډی دنړی دخلکو دټولو آزادی غو ښتو نکو جنبشو نو څخهدافغانستان دخلکو دد مو کراتیك گو ند کلك ملاتړ په ښه تو گه ښو دلی دی .

په پای کی دپلینوم دغی غونډی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گو ند او افغانستان په زړورو او قهر ما نو خلکو کی دملگری نور محمد تره کی درهبر ی روښا نه ځلاپه ښه تو گه څر گنده کړ یده .

## پریکړی:

پلینوم دافغانستان دخلکو دموکراتیك گو ند دمرکزی کمیټی عمومی منشیدافغانستان دد مو کراتیك جمهوریت دانقلا بی شو را رئیس او صد راعظم ملگری نور محمد ترکی ریوټ په پوره غور سره و اور ید او په هغه یی ژور ه څیړنه او خبری اتری وکړی.

پلینوم سر بیره د محکمی په باره کی دافغا نستان ددمو کراتیك جمهور یت دانقلا بی شو را اتمه گڼه فرمان هم مادهپه ماده یوه یوه تر بحث او څیړنی لاندیونیوه.

په پای کی پلینوم دغه لاندی پریکړه وکړ ی .

دافغا نستان دخلکو دد مو کراتیك گوند (دهیواد دکارگری طبقی مخکښ) د مرکزی کمیټی عمو می منشی ملگری نورمحمدتره کی ریوټ دپلینوم له خوا په عمومی اوپوره توگه تا یید او ملاتړ یی وشو چی دهغه له مخی گو ند لازم اقداما ت وکړی .

دمرکزی کمیټی اووه غړی او دانقلابی شو را دوه غړی :

۱ـ ببرك کارمل .
۲ـ نور احمد نور .
۳ـ سلطانعلی کشتمند .
٤ـ ډاکتره انا هیتا .
۵ـ محمود بریالی .
٦ـ وکیل
۷ـ ډاکتر نجیب .
۸ـ قادر .
۹ـ رفیع دی .

چی دثور دستر انقلاب ضد ، دافغانستان دد مو کراتیك جمهوریدولت ضد او زمو نږ دو یاړلی گو ند دافغانستاندخلکوددموکراتیك گوند ضد په خا ینا نه تو طئو کی یی فعا له بر خه در لوده او شپېړتنه یی هیواد ته ندی راغلی چه زمونږ د خلکو په مخکی ودر یږی او حساب ورکړی دافغانستان

دخلکو له دموکراتیك گو ند څخه وایستل شو ل .

دمر کزی کمیتی څلور غړی چی په غیر اصو لی فعا لیتو نو کی یی بر خه درلوده او دغه کسا ن دی .

۱- ملگری نظام الدین تهذیب .

۲-ملگری مجید سر بلند .

۳- ملگری سر ور یورش .

٤-ملگری فدا محمد دهنشین .

پدی مرحله کی دافغانستان دخلکـــــو ددمو کراتیك گو ند په مرکزی کمیته کی لـه غـړیتـوب څخـه دگوند آزمایشی غـړی توب ته دمقام تنز یل ور کول کیږی چـــه دانتقاد اوله ځان څخه دانتقاد په چلند ځانونه اصلا ح کړی .

دځمکی په باب دافغانستان دد مو کراتیك جمهوریت دانقلا بی شو را اتمه گڼه فرمان چی دافغا نستان دمو کراتیك جمهوری حکومت تر تیب او تنظیم کړ یدی د تا ییـــــد وړ وگر زید او دانقلا بی شو را له تصو یب نه ورو سته دتطبیق وړ دی .

دملگری نور محمد تره کی ټول ربو ټ ددغه پلنوم څیړنی او پر یکړی دی پـــه گو ندی او دو لتی خپرو نو کی دملگرو، دو ستا نو او هیواد والو دخبر تیاله پـــاره خپری شی .

# معرفی اعضای
# شورای وزیران جمهوری
# دموکراتیک افغانستان

## مختصر سوانح وزیر مالیه



عبدالکریم میثاق

عبدالکریم میثاق ولد صفرعلی در سال ۱۳۱٦ هجری شمسی در ولسوالی جاغوری ولایت غزنی تولد گردیده است.

میثاق‌دارای تحصیلات ابتدایی بوده و ماموریت های ذیل را انجام داده‌است :

از سال ۱۳۳۳ تاسال ۱۳۳۵ مامور نفوس شماری در وزارت داخله وبعدا به خدمت مقدس عسکری اعزام شدند، درسال ۱۳۳۸ به حیث مامور در میدان هوایی کابل شامل وظیفه شدند واز سال ۱۳۳۹ تاسال ۱۳٤۲ بحیث مدیر ترانسپورت در میدان هوایی مصروف کار بودند • بعداز آن به صفت مدیر مامورین در ریاست ترانسپورت‌عمومی گماشته شدند • همچنان در سال ۱۳٤۳ به صفت‌مامور در تخنیکم جنگلک مقرر شدند از سال ۱۳٤۵ تاسال ۱۳٥٤ به‌شعبات مختلف وزارت معادن وصنایع مصروف کار بودند پس از آن برای مدت یکسال به حیث مامور منتظر بامعاش وهم برای مدت چند ماه مامور منتظر بی‌معاش باقی ماندند از سال ۱۳٥٥ تاسال ۱۳٥۷ دو باره به حیث مدیر احصاییه در وزارت معادن وصنایع انجام وظیفه نمودند •

از ۱۳ ثور ۱۳٥۷ به حیث وزیر مالیه دولت جمهوری دموکراتیک افغانستان گماشته شدند •

## مختصر سوا نح وزیـر
## تعلیمات عالی



محمود سوما

محمود سو ما ولد علم گل در سال ۱۳۱۰ هجری شمسی در ولایت پکتیا تولد گردیده تحصیلاتش را تادرجه بکلوریا دردارالمعلمین کابل به انجام رسانیده بعد از سال ۱۳۳۳ تا ۱۳۳۹ در پوهنتون امریکایی بیروت بـــه تحصیلاتش ادامه داده است.

موصوف بین سالهای ۱۳٤۱ تا ۱۳٤۳ ماستری اش رادر شق کیمیا وتعلیمات سا ینس از پوهنتون کولمبیای امریکا بدست آورده وبه حیث عضو تدریسی موسسه تعلیم وتربیه پوهنتون کابل گماشته شه •

ازسال ۱۳٤٤ تا ۱۳۵۷ به صفت استاد ساینس در پوهنځی تعلیم وتربیه مصروف خدمت بودنه •

در سال ۱۳۵۳ به اخذ مدال پوهنه مفتخرشدند

بعداز انقلاب کبیر ثـــور به حیث وزیـــر تعلیمات عالی مقرر گردیدند •

## مختصر سوانح وزیر دفاع افغانستان



**محمد اسلم وطنجار**

---

در سال ۱۳۲۵ درقریه چونی حکومت زرمت ولایت پکتیا متولد گردیده است، تحصیلات ابتدائی خودرا درمکتب قریه مذکور ختم وشامل حربی ښوونځی گردیده وبعد از ختم تحصیل حربی ښوونځی شامل حربی پوهنتون شده، موصوف بتاریخ ۱جدی۱۳٤۷ ازحربی پوهنتون بحیث دوهم بریدمن زرهدار فارغ ودربست قوماندانی قوای ٤ زرهدارمقررشدند. وبتاریخ ۱ر٦ر۱۳۵۰ بحیث لمړی بریدمن به اقدام ۲٦ سرطان ۱۳۵۲ برتبه جگتورن و بتاریخ ۲٦ر٤ر۱۳۵٤ برتبه‌جگړن ترفیع نمودند. ودر قوای ٤ زر هدار بحیث قوماندان کندك ایفای وظیفه مینمودند .

در انقلاب ۷ ثور ۱۳۵۷ که برهبری حزب دموکراتیك خلق افغانستان پیروز گردید بتاریخ ۳۱ر۲ر۱۳۵۷ بحیث وزیر مخابرات عزتقرر را حاصل نمودند . بعداز چندی حسب صوابدید مقامات صالحه بحیث وزیر داخله افغانستان موظف گردیدند .

بتاریخ ٤ر۱ر۱۳۵۸ بحیث لوی درستیز قوای مسلح خلق افغانستان مقرر شدند وبعد ازچندی بحیث وزیر دفاع افغانستان عز تقرر حاصل نمودند .

بتاریخ ۷ ثور ۱۳۵۸ برتبه دگرمنی نایل شدند .

## مختصرسوانح وزیر تعلیم وتربیه



عبدالرشید جلیلی

عبد الرشید جلیلی ولد عبدالجلیل در سال ۱۳۱۷ در خوکی کنر هار پابه عرصه‌هستی گذاشت جلیلی ماستری اش را در رشته مایکولوژی از ایالات‌متحده امریکا بدست‌آورده بعداً غرض تحصیلات عالیتریعنی درجه دوکتورا عازم اتحاد جماهیر شوروی گردیدند ودوکتورای خویشس را از آن کشور دوست اخذ نموده است .

ابتدا ماموریت خودرا از کدر تدریسی پوهنځی زراعت آغاز نمودند .

درسال ۱۳۴۸ به غرض اشتراك در یک کورس تحقیقات به جمهوریت متحده عرب اعزام گردیدند .

پس از آمدن انقلاب نجات بخشس ثور به حیث رئیس پوهنتون کابل گماشته شدند وبعداً بحیث وزیر تعلیم وتربیه در کابینه انقلابی جمهوری دموکراتیك افغانستان مقرر شدند اکنون نیزبه حیث وزیر تعلیم وتربیه ایفای وظیفه می‌نمایند .

## مختصر سوانح وزیر عدلیه و لوی څارنوال



**عبدالحکیم شرعی جوز جانی**

---

**عبدالحکیم شرعی جوزجانی ولد سیدمعصوم درسال ۱۳۱۳ هجری شمسی‌در ولایت شبرغان تولد گردیده است .**

**موصوف تحصیلاتش را تا درجه لیسانس در پوهنځی شرعیات پوهنتون کابل به انجام رسانیده به سال ۱۳۳۸ در مدیریت تدقیق انیس به حیث مامور مقرر شدند همچنان‌در سال ۱۳۳۹ به‌حیث کفیل‌مدیریت راپورتاژهای** رادیو افغانستان گماشته‌شدند ودر سال ۱۳۴۰ عهده دار مدیریت پروگرام های رادیوشدند. به سال ۱۳۴۴ نسبت کاندید شدن درولسی- جرگه مستعفی گردیدند اماازینکه در انتخابات موفق نگردیدند دو باره به ماموریت برگشتند و بحیث کفیل مدیریت تدقیق رادیو مقرر شدند به سال ۱۳۴۵ به حیث عضوانجمن در آریانا دایرة المعارف وبعداً بسال ۱۳۴۸ دوباره خودرا به حیث وکیل در ولسی جرگه کاندید نمودند که باز هم موفق نگردیدند ومتصل به آن درپست مدیریت اطلاعات ولایت کندهار مقرر گردیدند .

از اول حمل ۱۳۵۱ دو باره دربست رتبه (۵) ریاست دایرةالمعارف گماشته شدند.

از تاریخ ۷ ثور ۱۳۵۷ به حیث وزیر عدلیه ولوی څارنوال عز تقرر حاصل نمودند.



محمد منصور هاشمی

---

منصور هاشمی ولد محمد هاشم در سال ۱۳۱۲ هجری ، شمسی در جرم بدخشان چشم به جهان گشوده است تحصیلات خویشس را در دارالمعلمین کابل تادر جه‌بکلوریا به اتمام رسا نده بود بعداً غرض فراگر فتن تحصیلات عالیتر عازم پوهنتون‌امریکایی‌دربیروت شدند. دیپلو م خویش را در رشته‌فزیك وریاضی بدست آوردند وغرض ادامه تحصیلات بـــه

## مختصر سوانـح و ز یـر آب وبرق

پوهنتون کولمبیا معرفی شدند و ماستـــری خویشس را در رشته تدریس فزیك از آن جا حاصل نمودند .

از سال ۱۳۳۹ تا ۱۳٤٤ به صفت معلم در دارالمعلمین کابـــل ایفای وظیفه نمودند از سال ۱۳٤٤ تا ۱۳٤۹ به حیث آمر شعبه‌ساینس در موسسه تعلیم و تربیه و تا سال ۱۳۵۳ به صفت استاد در پوهنځی تعلیم وتربیه‌انجام وظیفه می‌نمودند از سال ۱۳۵۳ تا سال۱۳۵۷ بحیث استاد در پوهنځی علوم به تدریس پرداختند .

بعد از انقلاب شکو همند ثـور به حیث وزیر آب وبرق عز تقرر حاصل نمودند .



**محمد صدیق عالمیار**

---

**محمد صدیق عالمیار و لد محمد شعیب عالمیار در سال ۱۳۲۳ درقر یه دور افتاده سیدخیل ولسوالی جبل السراج دریك خانواده متوسط الحال متو لد شده وتحصیلات ابتدایی خو یش را در مکتب ابتدایی سیدخیل به پایان رسا نیده بعد از ختم دوره ابتد ایی باگرفتن شهاد تنامه اعلی نایل آمد وبه‌لیسه نعمان شامل گردید .**

**ولی دوری راه از یکسو وجبر زندگی‌ازسوی** دیگر اورا به کابل کشاندو درلیسه مسلکی تجارت شامل شد .

درسال ۱۳٤۱ بعد از سپری نمودن دوره لیسه وگذشتا ندن کانکور اختصا صی شامل لیسه تخنیك گردیدند در اخیر سال ۱۳٤٤ مکتب تخنیك را موفقانه به‌انجام رسانیده‌واز شعبه ماشین‌بدرجه اول فارغ شدند ومتعاقبا به حیث مامور فنی در دستگاه سا ختما نی‌افغانی در هلمند مقرر گردید ند .

درسا ل ۱۳٤٥ امتحان کانکور پو هنتون‌را گذشتانده ، شامل پو لیتخنیك گردیده و رشته انتخابی اش جیو لوجی بود. پس از فارغ شدن از پولیتخنیك به حیث جیولوجست در وزارت معادن وصنا یع شامل کار شد.

پس ازسه سال کار درسال ۱۳٥٥ جهت تحصیلات عالی به اتحاد جما هر شوروی‌رفتو پس از هشت ماه دیپلوم خویش رادررشته‌جیو-لوجی دفاع وبوطن باز گشت .

ایشان مصا دف باپیروزی انقلاب ثـــور به حیث رئیس سروی معادن وبعداًبه‌حیث‌والی بلخ وبتاریخ ۱۱ حمل ۵۸ درپست وزارت‌امور-پلانگذاری گما شته شدند .



**خیال محمد کتهوازی**

## داطلاعاتو او کلتور و زیر
## لنډه سوانح

خیال محمد (کتـهوازی) دعبدالغفار زوی پـه (۱۳۲۷) کال کی دکتهوازدښرنی پـه‌ولسوالی یعنی اوسنی پکتیکاکی زیږیدلی اوپه(۷) کلنی کی دعلی بابا دلیسی په دریم ټولګی کی شامل شوی په ۱۳۳۶ کال کی درحمن بابا په لیسه کی شامل اوپه ۱۳٤٦ کال کی دکابل پوهنتون دادبیاتو په پوهنځی کی محصل او د (۱۳٤۹) کال په پای کـی دژورنالیزم له څانګـی څخه فارغ اوپه رادیو افغانستان کی ئی دپرودیوسر په توګه وظیفه درلوده په (۱۳۵۱) کال کـی دعسکری خدمت ته لاړ اوپه ۱۳۵۲ کال کـی بیرته درادیو افغانستان کـارکونکـی وو . دثور دسترانقلاب نه وروسته په همدغه میاشت کی درادیو تلویزیون دمعین په توګه وټاکل شواوله (۱۳۵۸) کال کی دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دطلاعاتو اوکلتور وزیر په توګـه مقرر شو .

## مختصر سوانح وزیر مخابرات



سید محمد گلاب زوی

---

سید محمد گلاب زوی ولد گلاب شاه در سال ۱۳۳۰ در ولایت پکتیا تو لد گردیده است .

گلاب زوی تحصیلات ابتدائی و متوسط را در مکتب نادرشاه کوت به انجا م رسانیدو تعلیمات ثانوی را درپو هنځی هوایی تمام نموده است .

درسال ۱۳۴۵ به صفت صاحب منصب عسکری به مزارشریف رفتند .

درسال ۱۳۴۷ در میدان هوایی قوا ی خواجه رواش به وظیفه گماشته شدند.

درسال ۱۳۵۲ در کودتای سردار داودشاه اشتراك نموده وبه صفت یاور قو ماندان قوای هوایی تعیین وبعد درسال ۱۳۵۵ غرض دوام تحصیل به اتحاد جماهیر شوروی اعـزا م گردیدند .

در سال ۱۳۵٦ به حیث رادیست طیاره (ا ن٢٦) پرواز نمودند .

در سال ۱۳۵۷ بعد ازپیروزی انقلاب ظفرمند ثور به حیث سر یاور رئیس شورای انقلا بی مقرر گردیدند .

بتاریخ ۱۷ جوزای ۱۳۵۷ به حیث وزیر مخابرات عزتقرر حاصل نمودند .

## مختصر سوانح وزیر داخله



شیرجان مزدور یار

شیرجان مزدور یار ولد عبدالله درسال ۱۳۲٤ در قریه غلامان ترینکوت ارزگان‌تولد گردیده است موصوف تحصیلات ابتدائی را درسال ۱۳۳۱ در مکتب ابتدائی سیدا لخان ولایت ارزگان به‌پایان رسانیده‌و درسال ۱۳۳۷ به کابل‌آ مده‌است در صنف ششم حربی ښوونځی شامل درس گردیدند. و در سال ۱۳٤۳ دوره حربی ښوونځی‌را موفقانه به‌انجام رسانیده ، و شامل حربی پو هنتون شدند.

درسال ۱۳٤٦ به صفت دوهم بر ید من نقلیه در قوای مسلح مصروف خدمت‌شدند.

بعد درسال ۱۳۵۰ به حیث لمړی بریدمن درکورس مازو به صفت مداوم کورس مازو معلم کورس گماشته شدند .

همچنان درسال ۱۳۵۲ به رتبه جگړتورن به صفت قوماندان قطعه ۲۵۵ در قوای چهار- زرهدار مقرر شدند .

درسال ۱۳۵۳ برتبه جگړنی به‌صفت قوماندان ۲۵۵ در قوای ٤ زر هدار به وظیفه ا دا مه دادند .

بعد از انقلاب ظفر نمون ثور به حیث قوماندان گارنیزیون کابل وقوما ندانی چهار زرهدار عز تقر حاصل نمود ند .

درسنبله ۱۳۵۷ بحیث قوماندان قوای‌مرکز ودر حوت ۱۳۵۷ کرسی وزارت داخله را اشغال نمودند .

## مختصر سوانح وزیر معادن وصنایع



محمداسمعیل دانش

محمد اسما عیل دانش ولد علی اکبر در سال ۱۳۱۷ هجری‌شمسی در کابل‌تولد گردیده است دانش لیسا نسش رادر رشته انجنیری‌معدن از اضلاع متحده امر یکا حـاصل نموده و ماستری اش را از اتحاد جماهیر شوروی‌بدست آورده است .

در سال ۱۳۴۳ به حیث مامور در وزارت‌معدن مقرر شدند، همچنان از سال های ۱۳۴۵ تا ۱۳۴۷ در شعبات مختلف وزارت معدن مانند مدیریت جیا لوژی لابراتوار فزیکی ،ریا ست استخراج ذغال سنگ وغیره گما شته شدند بعدا به حیث معلم درپولی تخنیک‌مقرر گردیدند ودر سال ۱۳۴۹ با استفاده ازیك بورس‌غرض تحصیلات عالی عازم اتحاد جماهیر شو روی گردیدند .

وقتی دوباره از اتحاد جماهیر شوروی به وطن مراجعت کردند باز هم به وظیفه‌خویش‌در پولی تخنیك ادامه دادند .

بعد از انقلاب ظفر نمون ثور به حیث‌وزیر معادن وصنایع عزتقرر حاصل نمودند .

## مختصر سوانح وزیر تجارت



عبدالقدوس غور بندی

عبدالقدوس غور بندی ولد عبدالمحمد در سال ۱۳۱۲ هجری شمسی در ولسوالی غوربند تولد یافته است ·

موصوف تحصیلاتش را تادرجه بکلوریا در لیسه تخنیک کابل به اتمام رسانیده ودرسال ۱۳۳۴ بحیث مامور رتبه ده در ریاست هوایی ملکی بکار گماشته شده ·

همچنان در سال ۱۳۳۶ بحیث آمر مخابره مزار شریف ودر سال ۱۳۴۰ به صفت معلم هوانوردی در ریاست هوایی ملکی مقررشدند·

بعد از سپری نمودن خدمت مقدس عسکری درسال ۱۳۴۳ غرض تحصیلات عالی عازم اتازونی شدند ، بعداز مراجعت بوطن بسال ۱۳۴۸ غرض انتخابات در دوره ۱۳ ولسی جرگه از وظیفه سبکدوش شدند مگر درانتخابات موفق نگردیدند ·

درسال ۱۳۴۸ بمدیریت عملیات مرکز ریاست مقرر وبعداً برای مدت ۲۳ هفته به بنکاک مسافرت کردند ·

از سال ۱۳۵۴ الی ۱۳۵۷ در بست رتبه (٦) در مدیریت تفحصات عملیات ریاست هوانوردی انجام وظیفه نمودند ·

از تاریخ دهم ثور ۱۳۵۷ تاکنون در پست وزارت تجارت جمهوری دموکراتیک افغانستان مقرر شدند .

## مختصر سوانح وزیر ترانسپورت



محمد حسن بارق شفیعی

**محمد حسن بارق شفیعی ولد مرزا محمد شریف درسال۱۳۰۹هجری،شمسی درریکاخانه کابل تولد** گردیده است . تحصیلاتش را تا صنف سوم رشد یه اد امه داده وبعداًماموریت های ذیل راعهده دار بودند :

**از سال ۱۳۳۰ تـــا ۱۳۳٤ مامور درشرکت** روان از سال ۱۳۳٤ تاسال ۱۳۳۵ مامــور مدیریت تربیه افکار بعداًبرای چند مـــاه از وظیفه سبکدوش گردیده واما به کفایت یك رتبه بالاتر دو باره در مدیریت تربیـه افکار مقرر گردید ند ۰ وتاسال ۱۳۳۸ درهمین وظیفه باقی ماندند وبعد از آن‌به خدمت‌مقدس عسکری اعزام شدند بعد از ختم دوره عسکری به حیث معاون مجله ننداری‌مقرر شدند وپس از آن در ۱۳٤۱ به حیث معاون مجله ژوندون گماشته شدند ودرسال ۱۳٤٤مدیریت مسوول مجله پشتون ږغ به ایشان محول شد .

از سال ۱۳٤۵ ایشان از امور رسمی استعفا نموده وبه حیث مدیر مسوول جریده تابناك خلق مقرر شدند ، پس از انقلاب امید بخشا وسترگ ثـــور به حیث‌وزیر اطلاعات وکلتور دولت جمهوری دموکراتیك افغانستان گماشته شدند .

واز ۷حمل ۱۳۵۸ به پست وزارت ترانسپورت مقرر گردیدند .



صاحب جان صحرائی

صاحب جان صحرائی په ۱۳۱٦ کال کـــی دارزگان ولایت د دهراود په ولسوالی کـــی په یوه بزگره کورنی کی زیږید لی دی لومړنی ښوونځی ئی ددهراودپه ولسوالـــــی کی لوستی دی .دی دځلورم ټولگی زده کوونکی ؤچی پلارئی وفات شو او دخپـــــل مشر ورور دروزنی لاندی ونیـــول شـــو د لومړنی ښوونځی څخه تر فراغت ورو ستـــه دکند هار په دارا لمعلمین کی شامل شو او کله چی له دولسم ټولگی څخه فارغ شود کابل پوهنتون دتعلیم او تربیی په پو هنځی کی شامل اوله هغه پو هنځی څخه تر فراغت وروسته دکابل په دارا لمعلمین کی ښوونکی وټاکل شو. اوبیا یی تر ۱۳۵۱ کال پوری دهیواد په بیلا بیلو ولایاتو کی دښوو نکی په توگه کار کړیدی .

# دسر حدو نو چارو و زیر لنډه سوانح

دظاهرشاه دسلطنت په پای کـــــــی دافغانستان دخلکو دد مو کراتیك گو نـــد په دستور ولسی جرگی ته دو کالت دپاره کاندید شو خود وخت مستبد وحا کما نــو بندی کړ او د داؤد دا ستبدادی حکو مـــت دمینځ ته راتلو پوری بندی وو .

دافغانستان دخلکو دد موکراتیك گو نـــد دلومړی کنگری له دایر یدو څخه دمخـــــه درو شنفکر و وطنپر ستانو دمبارزی ملگری ؤاو دافغانستان دخلق دمو کراتیك گو نـــد دتاسیس سره سم دگو ند اصلی غړی‌پیژندل شوی دی .

په ۱۳۵۲ کال دکنړ په لویه ولسوالی کی دسر حدونو مدیر وټا کل شو خود داؤدمستبد حکو مت ډیر ژر هغه له وظیفی څخه لیری کړ صاحب جان صحرائی له ۱۳۵۳ کال څخـــــه وروسته په ننگر هارکی دگو ند دمر کزی کمیټی په نما یند گی گو ندی چاری سرته رسو لی . دثور له پرتمین انقلاب څخه وروسته دکندز والی مقر رشو او بیاد ۱۳۵۷ کـــال دوړی په میا شت کی دسر حدو نو چا رو وزیر وټاکل شو او د مرکزی کمیټی په غړیتوب ومنل شو .

دده دکور نی غړی تل دهغه دگو ندی مبارزی ملاتړ وواو هیڅکله دهغه دمبارزی په لاره کی‌نه دی خنډ شوی .

# بیانات و مصاحبه های

# حفیظ الله امین

# لومری وزیر و وزیر امور خارجه

# مختصر سوانح لومړی‌وزیر ووزیر امور خارجه.

حفیظ الله امین ولد حبیب الله در سال ۱۳۰۸ هجری شمسی در ولسوالی پغمان‌ولایت کابل در یك فامیل روشنفکر واز نگاه موقف اقتصادی بسویه متوسط پائین تولد گردید. هنوز در مراحل طفولیت خود بود که پدرش فوت نمود • پدر حفیظ الله امین‌در تمام دوره ماموریت خود از رتبه هفت بالا نرفته بود.

حفیظ الله امین بعد از وفات پدر خود مورد سر پرستی برادر بزرگش عبدالله که در آنوقت معلم مکتب ابتدائیه بود قرار گرفت •

موصوف تحصیلات ابتدایی رادر مکتب ابتدائیه پغمان به پایان رسانده و در جلسه شاگردان لیلیه مستحق شمول در دارالمعلمین کابـــــل گردید • بعد از آنکه دوره ثانوی تحصیلات رادر دارالمعلمین کابل طی کرددر پوهنځی علوم پوهنتون کابل در رشته‌فزیك وریا ضی به تحصیلات خود ادامه داد،بعد از فراغت از پوهنځی ساینس در دارالمعلمین کابل بحیث معلم ومتعاقبا به صفت معـــــاون مدیریت وبعد بحیث مدیر مکتب ابـن سینا ایفای وظیفه کرددر سال۱۳۳۶ جهت تحصیلات عالی در رشته اداره و تشکیلات تعلیم وتربیه به ایالات متحد امریکا رفت ودرجه ماستری رادر ایـــــن رشته بدست آورد • بعد از باز گشت بوطن درپوهنځی‌تعلیم‌وتربیه‌پوهنتون کابل بدرجه علمی پوهنیار بحیث استاد مقرر شد • از آنجا باردیگر به صفت مدیر مکتب ابن سینا وبعد بحیث مدیر دارالمعلمین‌کابل وظیفه انجام داد •

دریــــــن هنگام که به وطــــن بازگشت بارفیق نورمحمد تره‌کی تماس نزدیك برقرار نموده واز تجارب سیاسی و انقلابی ونظرات عالمانه ومترقی ایشان می‌آموختند و موردتوجه استاد انه رفیق تره‌کی قرار داشت که تـــا امروز بحیث شا گرد وفا دار شان به‌رهنمایی‌های استادانه رهبر محبوب خود افتخار دارد.

حفیظ الله امین‌بعد ازمدت کوتاه درمدیریت دارالمعلمین کابل به‌عضو یت مدیریت‌جدید‌التاسیس تربیه معلم دروزارت تعلیـم وتربیه تبدیل گردید •

درسال ۱۳۴۱ بعد از موفقیت دریك امتحان کانکور برای تحصیلات عالی جهت اخــــذ درجه دکتور ا در امریکا انتخاب وبه آنکشور اعزام شد . ایشان درسال ۱۳۴۲ هـ ش د ر اجتماع سالانه محصلان‌افغانی در ایالات‌متحده امریکا بحیث رئیس انجمن محصلان افغانی در آنکشور انتخاب گردید • بانفوذ روز افزون حفیظ الله امین در بین محصلان افغانی در امر یکا فعالیت سیا سی اش نیز بیشترشده‌رفت چنانچه در همین سال باتفاق یکعده از

رفقا به ایجاد تشکیل انجمن مترقی در نیویارک پرداخت، موصوف درسال ۱۳۴۲ اطلاع یافت که در افغانستان رفقای انقلابی به رهبری شخصیت انقلابی ، بزرگ واستادمبارز رفیق نورمحمدتره کی ترتیبات تاسیس یك حزب مترقی کارگری رامی گیرندبه رفیق نورمحمد تره کی کتبا اطلاع داد که در نیوریاك نیز با وفاداری کامل به جنبش کارگری ورهبری آنها فعالیت می کنند وخودرا جز حزبی میدانند که بعدا بنام حزب دموکراتیك خلق افغانستان پیشاهنگ طبقه کارگر کشور تحت رهبری رفیق نورمحمد تره کی تاسیس گردید .

مبارزات طبقاتی مترقی وانقلابی حفیظ الله امین بین محصلان افغانی در امریکا باعث اخراجش ازامریکا هنگامی شدکه تمام کورسهای درسی درجه دکتورا را بانجام رسانده بودو مراحل ترتیب آخرین رساله دکتورارا می پیمود.

حفیظ الله امین درسال ۱۳۴۴ به مجردیکه بوطن عودت نمود با رفیق نورمحمد تره کی منشی عمومی حزب دموکراتیك خلق افغانستان تماس گرفت وبدستور حزب در انتخابات دوره (۱۲) شورای ملی برای وکالت در ولسی جرگه در پغمان کاند ید شد در این انتخابات در اثر حیل دشمنان خلق ناکام گردید.

بعد ازآن برای یك سال در لیسه رابعه بلخی بحیث معلم ، متعاقبا مدت سه سال بحیث عضو ریاست تدریسات ابتدایی وظیفه انجام داد .

موصوف در این مدت چهار سال بحیث عضو وفادار حزب دموکراتیك خلق افغانستان باخلق پیوند خود را مستحکمتر ساخت ازخلق می آموخت وبا خلق میرفت تابالاخره درانتخابات دوره (۱۳) شورای ملی بحیث وکیل خلق پغمان برای ولسی جرگه آنوقت انتخاب گردید ایشان در چهار سال وکالت خود بحیث نماینده حزب دموکراتیك خلق افغانستان در ولسی جرگه ضد امپریالیزم،ضد فیودالیزم وضد ارتجاع به مبارزه سر سخت خود ادامه داده وفساد ها وخیانت های دربار سلطنتی ظاهر شاهی واستبداد رژیم فرتوت را بشدت افشا می کرد از امکانات وکالت بحد اعظمی به نفع خلق جنبش وبه نفع حزب خود استفاده کرده در مظاهرات میتنگ هاو سایر تریبیون هاییکه در دسترس قرار می گرفت وسیعا اشتراك داشت .

حفیظ الله امین در سال ۱۳۵۲ تحت رهنمایی های رهبرکبیرخلق رفیق نورمحمدتره کی بحیث مسوول حزب دموکراتیك خلق افغانستان در امور تنظیم، تشکیل و پخش ایدیالوژی دورانساز طبقه کارگر در قوای مسلح فعالیت حزبی را شدت ووسعت زیادتر بخشید که نتایج بسیار مهم وثمر بخشی را ببار آورده

چنانچه حفیظ الله امین بنابر هدایت قبلی رفیق نورمحمد تره کی منشی عمومی کمیته مرکزی حزب دموکراتیك خلق افغانستان قومانده انقلاب ظفر آفرین ثور را صادر کرد که منجربه از بین رفتن نظام طبقاتی ستمگر وتاسیس جمهوری دموکراتیك افغانستان گردید .

## مختصر سوانح معاون لومړی وزیر ووزیر صحت‌عامه



دوکتور شاه ولی

دوکتور شاه ولی ولد شاه بابا درسال۱۳۱۸ در ده خداداد کابل پابه عرصه وجود گذاشت.

موصوف تحصیلاتش رادر پوهنتون کابل در رشته طب به پایان رسانیده ودر موسسات مختلف وزارت صحت عامه درمرکـز وولایات ماموریت های آتی راانجام داده است :

در سال ۱۳۴۵ در بست رتبه (۸) بـه حیث مامور تربیه یورولوژی وزارت صحیه.

در سال ۱۳۴۶ بحیث‌طبیب‌درپروژه دهات از سال ۱۳۴۷ تاسال ۱۳۵۰ به حیث طبیب در ابن سینا روغتون واز سال ۱۳۵۲ تا ۱۳۵۳به حیث دو کتور جراحی موسسه‌صحت‌عامه‌ولایت سمنگان مقرر شدند . بعدا به صفت دوکتور جراح در قوماندانی قوایکار گما شته‌شدند،پس از آن تاسال ۱۳۵۷ در خود وزارت صحیه انجام وظیفه نمودند .

بعد از انقلاب ظفر نمون ثـــور به حیث وزیر صحت عامه مقرر شدند .

از(۱۱)حمل ۱۳۵۸ بحیث معاون لومړی‌وزیر ووزیر صحت عامه عزتقرر حاصل نمودند .

کشورهای عضو جنبش عدم انسلاک درخواست کردند، تابرای امحای طرح های جـدیـد استعماری، امپریالیزم، درافریقاوحدت خـودرا حفظ نمایند وازمساعی کشور های جبهه مقدم دراین راه تقدیر کردند.

جانبین به این امر موافقت کردند، اختلافاتی که به اصطلاح درشاخ افریقا وبحیره احمـر ظهور نموده ، ازاثر تحریکات امپریالیـــزم ووابستگان شان بوده که اختلافات را بین جوانب ذیدخل دامن میزنند ومخالف منشور سازمان وحدت افریقا یک خطر دایمی رابرای صلح آن منطقه جهان ایجاد میکنند.

هردو جانب همبستگی استوار شان رابا خلـق های شجیع انگولاوحبشه در مـبار زات قهرمانانۀ شان دراه دفاع، استقـلال وطــرد تجاوزات خارجی ابراز داشتند.

طرفین امحای تمام پایگاه هـای نظامـی خارجی رادرقلمرو دیگران تقاضا کرده واین پایگـاه ها را بحیـث تجـاوز بر حـاکمیـت ملی وتمامیت ارضی کشورهای که درآن چنیـن پایگاه هاموجود است تلقی کردند.

عـلاوتا جانب افغانی همبستگی انقـلا بی خویش راباکیوبا درمبارزه پیگیر آن برضد امپریالیزم وبرای تامین تمامیـــت ارضی آن کشور علیه تمام اشکال فشارهای اقتصادی و سیاسی خارجی ابراز داشت.

هردو جانب نگرانی شانرا دربارهٔاو ضاع شرقمیانه که ناشی ازسیاست تجاوز کـارانه اشغالگرانه وتوسعه طلبانه اسرائیل علیـــه اعراب وخلـق فلسطین میباشد ومـــخا لف تصاویب ملل متحد جـریـان دارد، ابـــراز نمـودند.

طرفین همبستگی کامل شانرا باخلق مبارز فلسطین که سازمان آزادی بخش فـــلسطین صادقانه ازآن نمایندگی می‌کند، اظـــهــار داشتـنــد.

هردو طرف مساله فلسطین رابحیث هستــه منازعه شرقمیانه دانسته ومعتقد بودند کـــه تفاهمات دسیسه آمیز یاموافقات قسمی منتج به یک صلح عادلانه ودایمی درشر قمیا نــه نخواهدشد.

طرفین خواستار اخراج فوری وبلاقیدوشرط اسرائیل ازهمه سرزمین های اشغالی اعراب و احقاق حقوق حقه انتقال ناپـذیـــر خلـــق فلسطین به شمول حق تاسس دولت مستقل وملی خودشان گردیدند، تحت شرایط موجوده درمنطقه طرفین انعقاد کنفرانس ژنیو راروی مسایل شرقمیانه بااشتراک کا مل جبهـــه آزادی بخش فلسطین بحیث یک مرجع که دران راه های حل قابل قبول آن مسایل جستجـو شده میتواند پنداشته.

باتاکید ضرورت تقویه مزید اتحاد کشور های عربی ونیروهای مترقی آنجا جهت نیل به آرمانهای متـذکره هردو طرف مانور هـای امپریالستی رابمنظور ایجاد نفاق بین خلق های این منطقه محکوم نمودند.

هر دو جانب فیصله یکجانبه حکومت نژاد- پرست افریقای جنوبی رامبنی بردایر نمودن انتخابات درنامیبیا رد کردند وچنین انتخابات رابحیث اقدامی بمنظور برسر قدرت آوردن یک رژیم دست نشانده به همکاری امپریالیـزم که ضامن بقای تسلط افریقای جنوبی در آن

قلمرو باشد، نکوهش نمودند وطرفین انتقال قدرت رابه سواپو یگانه نماینده قانونی خلق نامیبیا تقاضا کردند.

هردو طرف خواستار اخراج کامل وفوری افریقای جنوبی ازنامیبیا ،بشمول خلیج والوس وارک بلا شرط ادعای ارضی افریقای جنوبی برقسمت مهم قلمرو نامیبیا گردیدند.

طرفین حل واقعی وعادلانه موضوع زمبابوی رابادرنظر داشت موقف اساسی جبهه وطنپرستان که یگانه نماینده قانونی خلق زمبابوی میباشد ، خواستار گردیدند ، تا باین وسیله تلاش های استعماری بمنظوردوام قدرت رژیم نژادپرست اقلیت سفید پوست رودیشیا عقیم گردد.

هردوجانب پشتیبانی راسخ خودرااز مجادله خلق افریقای جنوبی که برای تعیین سر نوشت خودتحت رهنمایی کانگره ملی افریقایانماینده آمال خلق های استثمار شده افریقای جنوبی مبارزه میکنند،اظهارداشتند .ونظم غیرانسانی اپارتایدرا که توسط رژیم فاشیستی درآنجا تاسیس گردیده ،محکوم نمودند طرفین ازحق تعین سرنوشت وآزادی خلق صحرای غربی وجبهه آزادی خواه پولیساریو پشتیبانی و اظهار امید نمودند که حل مسالمت آمیز این معضله باهمکاری موسسه اتحاد افریقامیسر گردد.

هردوجانب پشتیبانی خودرااز اینکه بحرهند وامتداد های طبیعی آن به یك منطقه صلح مبدل گردد، بیان داشتندوتاکیدنمودندکه موجودیت پایگاه های نظامی درآن منطقه صلح،امنیت و منافع حقه خلق های منطقه راتهدیدمینماید.

هردوجانب از مجادله خلق کوریا برای استقلال وتامین وحدت مجدد مسالمت آمیز کشور شان بدون مداخله خارجی طرفداری نمودند .

طرفین پشتیبانی خویشرا از موقف اصولی کشور سوسیالست ویتنام وهمبستگی استوار خودرا باخلق قهرمان ویتنام درمجادله پیگیر شان ، بمنظور استحکام ،آزادی واعمارمجدد آنکشور ابراز داشتند.

درمورد پرابلم های امریکای لاتین طرفین موجودیت رژیم های دکتاتوری راکه باریختن خون خلق های خویش وباتخلف ازحقوق وآزادی شان بقتل عام ومحبوس ساختن خلق های بی گناه خویش ادامه میدهند تقبیح نمودند طرفین رژیم فاشیستی چیلی وسیاسات دهشت افگنی آنراکه توسط دارودسته نظامی تاسیس گردیده تقبیح نمودند.

هردوطرف اندیشه شانرا درمورد تخطی از حقوق بشردرنیکاراگوااظهارداشته وآن اقدامات غیر انسانی راکه به کمك امپریالیزم علیه خلق زحمتکش وستمدیدهٔ نیکاراگوا مرعی میگردد ،شدیداء محکوم نمودند .

طرفین اندیشه خود را درمورد بطی بودن عملیه امحای استعمار درقلمروهاییکه هنوز تحت استعمار وسلطه بیگانه میباشند ،اظهار

نمودند ۰هردوجانب تطبیق عاجل اعلامیه ملل متحد رادرمورد اعطای آزادی به سرزمین هاو خلق های که هنوز تحت استعمار بسرمیبرند خواستارشدند، وبه ارتباط آن طرفین پشتیبانی خودرا از تصاویب کمیته امحای استعمارملل متحد درمورد این قلمرو ها، بشمول پورتوریکومجدداءتائیدنمودند۰

طرفین اظهار امیدواری نمودند که یگانه اختلاف سیاسی افغانستان وپاکستان روی مساله ملی خلق های پشتون وبلوچ ازطرق مسالمت آمیز از راه مذاکرات دریك فضای دوستی حل وفصل گردد۰

هردوطرف مکرراء پشتیبانی شانرا ازخلع سلاح عام وتام ،دیتانت ، همزیستی مسالمت آمیز وازمجادله تمام خلق هاییکه هنوزتحت استعمار وسلطه بیگانه میباشندبرای احقاق حق خودارادیت واستقلال آنهااظهار داشتند ۰

هردو طرف تاکید نمودند تدابیر خاص که توسط جامعه بین المللی درمورد کشورهای محاط به خشکه وکمترین انکشاف یافته بادر نظر داشت مشکلات خاص شان اتخاذشده، بدون تعلل مورد تطبیق قرارگیرد۰

جانبین تائید کردند که اعلامیه تعمیق عملیه دیتانت وتخفیف تشنجات بین المللی که توسط ملل متحد اتخاذ شده، نهایت مهم وبجامیباشد وبه ارتباط آن طرفین از همکاری وایفای نقش فعال اتحاد جماهیر شوروی سوسیالیستی و دیگر کشور های جامعه سوسیالیستی که در جهت تقویت صلح انجام میدهند تقدیرکردند۰

هردوطرف طرق وراه های توسعه وتعمیق روابط را، بین خلق هاوحکومات شان موردمذاکره قرار دادند۰

جانب کیوبایی پشتیبانی راسخ خود را از گام های انقلابی که توسط حکومت جمهوری دموکراتیك افغانستان به تاسی ازخطوط اساسی وظایف انقلابی به نفع خلق زحمت کش بر داشته شده ،اظهار نمودوازپیروزی انقلاب علیه مرتجعین وعناصر ضد انقلابی تمجیدکرد۰

طرفین خوشنودی خویش را در باره نتایج مذاکراتی که طی آن توافق نظرروی موضوعات ذیعلاقه بعمل آمد ابراز داشتند۰

هردوجانب معتقد بودند که این بازدید منتج به تقویه وتعمیق روابطدوستانه وهمکارانه موجودبین دوکشور گردیده است ۰

درطی این باز دید موافقتنامه همکاری بین وزارت امورخارجه جمهوری دموکراتیك افغانستان و وزارت امور خارجه جمهوریت کیوبا برای سال های ۱۹۷۹ ـ ۱۹۸۰ توسط رفیق حفیظالله امین معاون صدراعظم وزیر امور خارجه ورفیق ایسید وروملمیر که پیولی وزیرامورخارجه جمهوریت کیوباازطرف حکومات مربوطه شان امضاء شد۰

رفیق ملمیرکه مراتب امتنان خودرا ازمهمان نوازی گرمی که ازوی وهمراهانش توسط حکومت ومخصوصا ازطرف حفیظ الله امین معاون صدراعظم ووزیر امور خارجه بعمل آمده اظهار داشت واز موصوف دعوت نمود که از کشور کیوبا بازدیدنماید۰

این دعوت بامسرت پذیرفته شد وتاریخ قطعی آن ازمجرای دیپلوماتیکی درآینده تعیین خواهدشد۰

# په کابل کې دویتنام دسوسیالیستي جمهوریت دصدراعظم مرستیال اودبهرنیو چارو وزیر
# سفر

دافغانستان دد موکرا تیک جمهوریت دصد راعظم مرستیال او دبهر نیو چا رووزیر حفیظ الله امین دقوس دمیاشتې په دیر شمه نیټه دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت دصد راعظم مرستیال او دبهر نیو چا رووزیر جلالتماب گون زوی چن ته کابل ته دراړسیدو په وخت کې تود هرکلی ووایه.



دصدراعظم مرستیال اودبهرنیو چارو وزیر حفیظ الله امین کله چې دکابل په بین المللی هوایی ډگر کې د ویتنام دسوسیالیستی جمهوریت دصدراعظم مرستیال اودبهرنیو چارو وزیر ته هرکلی وایی .

۱۳۵۷ر۹ر۳۰

دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یـــت
دصد را عظم مرستیال او دبهر نیو چـــارو
وزیر جلالتماب ګون زوی چن دیوه هیات په
مشری په یوه رسمی او دوستانه سفر دقوس
دمیاشتی په دیرشمه نیټه مازیګر په څلور بجو
او پنځه څلو یښت دقیقو کابل ته را ورسید
او په بین المللی هوایی ډګر کی یــــــی د
صد راعظم مرستیال او دبهر نیو چارو دوزیر
حفیظ‌الله امین له خوا هر کلی وشو .

دغه راز د دوست هیواد ویتنام دسوسیالستی
جمهور یت دمیلمنو دهر کلی لپاره دبهر نیو
چار ودوزارت سیاسی معین شاه محمد دوست،
دځا رندوی لوی قو ماندان دیپلوم انجنیـــر
جګړن سید داود تړون، دسواد ګړی دوزارت
معین محمد حکیم مالیار ، دبهر نیو چـــارو
دوز یر دمخصو ص دفتر آمر ډاکتر محمداکبر
مهر ،د بهر نیو چار و دوزارت دتشریفاتـــو
محمد فنوره مزپه‌مز شتو پقرکو رج وت‌سیبادہ
رئیس محمد ولی مندو زی، دکابل‌والی ډاکتر
سمهاك ،کابل ښار وال ډاکتر شیر آقا ،دملکی
هوایی چلند او تور یزم لوی رئیس نورمحمد
دلیلی او دبهر نیو چارو دوزارت ځینی لویان،
د شوروی اتحاد لوی سفیر شیخ السفـــــرا
الکسا ندر میخا ئیلو ویچ پوزانوف ،په کابل
کی دویتنام دسو سیا لستی جمهوریت دلـــوی
سفارت شار ژدافیر تون ګوا نك کو اودهغه
هیواد دلوی سفارت ځینی غړی دکابل پـــه
بین المللی هوایی ډګر کی حاضر وو .

دهوایی ډګر دهر کلی دمراسمو ورو ســته
حفیظ‌الله امین له جلالتماب ګون زوی چـــن
سره دهغه تر استو ګنځی پوری ملګرتیـــا
وکړه .

په دغه سفر کی دویتنام دسو سیا لستی
جمهوریت دصدراعظم د مر ستیال اودبهرنیو
چا رو له وزیر جلالتماب ګون زوی چن سره
دغه کسان ملګری دی:

دویتنام دسو سیالستی جمهوریت دبهر نیو
چارو دوزارت معین جلا لتماب دین نهو لیبم،
دویتنام دسو سیا لستی جمهوریت دپلان‌جوړولو
دکمیټی غړی نګو ین تو، دهغه هیواد دبهرنیو
چا روپه وزارت کی دآسیا یی دیپار تمنـــت
آمر بیو لین ،دد یپار تمنت درئیس مرستیال
او دبهر نیو چارو دوزیر سکر تر هو یـــن
وان نګهیا او دویتنام دبهر نیو چارو پـــه
وزارت کی په آسیا یی دیپار تمنت کی ماهر
نګو ین زو یی نیان .

دصدراعظم مرستیال او دبهر نیو چا رووزیر
حفیظ الله امین په همدغه ورځ ما ښام پـــه
شپږ وبجو او پنځلسو دقیقو دبهر نیــــــو
چا رو دوزارت په ودانی کی‌دویتنام‌دسوسیالستی
جمهور یت دصد راعظم دمر ستیال اودبهرنیو
چا رو دوزیر ،جلالتماب ګون زوی چن سره
دپیژند ګلوی کتنه وکړه .

ددغی کتنی په وخت کی دبهر نیو چـــارو
دوزارت سیا سی معین شاه محمد دوست،د
سو داګری دوزارت معین محمد حکیم ما لیار،
دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت د بهرنیو
چارو دوزارت معین دین نهو لیبم ، اوپه کابل
کی دهغه هیواد لوی سفارت شار ژد افیر تون
ګوانګ کوهم حاضر وو.

همدا رنګه دافغا نستان دد مو کراتیـــك
جمهوریت دصدراعظم د مر ستیال او دبهرنیو

چا رو دوزیر حفیظ‌الله‌امین له خوا دما ښام په شپږ نیمو بجو دویتنام دسو سیا لستی جمهوریت دصدراعظم دمرستیال اودبهرنیو چارو دوزیر جلالتماب ګون زوی چن پسه ویاړ دبهرنیو چارو دوزارت دهر کلیو پـه تالارکی میلمستیا شوی وه .

ددغی میلمستیا په ترڅ کی دصدراعظم دمرستیال او دبهرنیو چارو دوزیر حفیظ‌الله امین او دویتنام دسو سیا لستی جمهوریت دصدراعظم دمرستیال او د بهرنیو چارو دوزیر جلالتماب ګون زوی چن تر مینځ وینا وی وشوی .

پدی میلمستیا کی دوزیرانو دشورا غړو، دبهرنیو چارو او سودا ګری دوزارتو نـو معینا نو، دافغانستان دخلکو دښا رندوی لوی قوماندان ،دخلکو کور دګارد قوماندان، دبهرنیو چارو دوزیر ددفتر رئیس، دبهرنیو چارو دوزارت دتشریفا تو رئیس ،کابل ښار وال ،دبهرنیو چارو دوزارت یو شمیر لوړ رتبه مامورینو ، شیخ السفرا د شوروی سو سیا لیستی جمهوریتو نو داتحاد لوی سفیر الکساندر میخا ئیلو ویچ پوزانوف،په کابل کی ددوستو هیواد ونو ځینو نورو لو یو سفیرانو دویتنام دسوسیا لستی جمهوریت دصد راعظم دجلالتماب مرستیال او دبهرنیو چارو دوزیر ملګر واو په کابل کی دهغه هیواد دلوی سفارت غړو ګډون کړی ؤ .

## پدغه میلمستیا کی دحفیظ الله امین دوینا متن.

ګران ملګری دغه‌ ‌مان سو سیا لستی ویتنام دصدراعظم مرستیال او خارجه چارو وزیر ګون زوی چن !

ملګر و!

درنو میلمنو !

زمونږ ګران هیواد افغانستان ته دخپل در انده او انقلابی ملګری رسمی اوله ورور ګلوی ډك سفر په منا سبت په ډیره خوشحالی ښه را غلاښت وایم .

افغانستان ته ستا سو راتګ هغه ټو لی له مینی ډکی ولو لی لاډیری رڼی کوی چی زمونږ ملګرو او خلکو به دمیړنیو ویتنامیانو دقهرمانانه مبارزو له بریا لیتو بونو سره یـو ځای ښکاره کولی .

افغا نستان ته ستا سو دروند سفر هغـه دور ور ګلوی اړیکی ښی منعکس کوی چی زمونږ ملګرو او خلکو دهغو دتجسم اوتبارز په خاطر او ږدی مبا رزی کړی دی څکه چی په تیر وراسته رژیم کی چی دزړ ور ویتنام استا زی دنا پیيلو هیواد وپه سیمه ایـزه کنفرانس کی دګډون په خاطر افغانستان تـه رانه زمونږ دملګرو یوله مینی ډك ارمان داهم ؤچی دهغه انقلابی استقبال وکړی اوله‌ویتنا میانو سره دخپلو احسا ساتو په ښکاره کولو کی خپل زړونه خوشحاله کړی خو هغـه فاسد رژیم ددغی هیلو مخه ونیوله . ګله په چی زمونږ ملګری له بهر څخه افغانستان تـه را ستانه شول نورو ملګرو به په ډیره مینه مینه غوږ ورته نیولی ؤچی دویتنا میزلمیانو په هکله خبری و آوری .



دصدراعظم مرستیال او دبهرنیو چارو وزیرحفیظ الله امین کله چی دویتنام دسوسیالیستی جمهوریت دصدراعظم دمرستیال اودبهرنیوچاروو زیرپه ویاړشوی میلمستیاکی ویناکوی .
۱ر۱۰ر۱۳۵۷

په طبقاتی مبارزه کی زموږ خلقی شهیدانو دا ارمان هم له ځان سره یو وړ چی په افغانستان کی له ویتنامی ملګرو څخه په انقلابی څپو کی استقبال وکړی موږ ټول زموږ دخلقی شهیدانو له ارمانونو سره سم په دی ویاړ وچی دثور ستر انقلاب داسی لاره خلاصه کړه چی دادی دسو سیا لستی ویتنام له مشرا نو څخه ستاسو درو ندشخصیت په خپل منځ کی وینو چی دمبارزو ویتنا میانو دلید لو تنده مو ور باندی ماتیږی .

دافغانستان خلک ویاړی چی له ویتنا میانو سره یو ځای دامپر یالیزم په ضد مبارزو کی مشابه تاریخ لری کله چی داکتو بر ستر انقلاب دبشر په تاریخ کی په جهانی سو یه نوی دوران پیل کړ دویتنام دخلکو ستر قهر مان ملګری هوچی من په داسی فعا لیتونو لاس پوری کړ چی دویتنام کار ګره طبقه دخپل ګوند دجوړ ولو لپاره آماده کړی په دغو کلو کی دافغا نستان په آزادی‌مینو خلکو دخپلواکی دبیا ګټلو په خاطر دامپر یا لیزم په مر چـل با ندی‌بریدوکړاو دخپلو تولو زړ ورو زامنو په میړانه یی په استعمار ته ماتی ور کړه چی په مستعمرو باندی یی لمر نه لویده په دغو کلو کی چی داکتوبر دانقلاب څپی دویتنام سر حدونو ته ور پوری وتلی او دویتنام دخلکو زړ ونو باندی یی اثر واچاؤ په افغانستان کی امپریالیزم داسی توطئی په‌کار واچولی چی دخپل لاس پوځی غدار نادر په لاس کی یی دافغا نستان ددولت واګی ورکړی کله چی

دملګری هوچی من په مشری انقلابی مبارزی
په ویتنام کی خپر یدلی په افغانستان کـــې
دخاین نادر کورنی زمونږ دهیواد انقلا بـــی
وطنپالونکی په دار ځړ ول، په ګو لیو یـــې
ویشتل، دتور و تیارو په کوټیو کی اچـــول
او زندانونه یې ورباندی ډك کړی وه .
ګرانه ملګریه! لکه چې ملګری هو چـــې من
په ویتنام کی دفرد په واسطه دفرد استثمـار
څخه پرته ټولنی جوړول په زړه کی درلودل
او دهغی له پاره یې دملی آزادی بښو نکـو
مبارزو دتشد ید په خاطر هلی ځلی کولـې
او ستر بر یالیتوبونه یې هم ترلاسه کـــړل
زمونږ ستر قهر مان رهبـر ملګری نورمحمد
تره کی لومړی ځل په افغانستان کی دملـــې
آزادی غو ښتو نکو ګوند دو ینی ځلمیانـو
ګوند یې تاسیس کړ چې دافغانستان دخلکـو
تا ریخی مبا رزوته یې په ګوندی شکل‌اد امه
ورکړه .

هما غه شان چې دستر هوچی من پـــه
ابتکار دویتنام دزیار ایستو نکو ګو نـــد
جوړول دویتنام په تاریخ کی یوه مهمه پیښه
وه چې په ویتنام کی یې نوی دوره شروع
کړه دافغانستان په تاریخ کی هم دستـــر
نور محمد تره کی په واسطه دافغانستان دخلکو
دموکـرا تیك ګـوند تاسیس یوه ترټولو رڼه
او ځلید ونکی واقعه وه چې دلو مړی ځـــل
له پاره دخلکو دګټو داسی مدافع منځتـــه
راغی چې په کارګری علمی ایډ یالوژی‌سمبال
ؤ.

لکه چې په ۱۹۳۰ ـ ۱۹۳۱ کلو کـــې
پیښو ملګری هوچی من ته ثا بته کړه چـې

دویتنام کار ګره طبقه او دهغی مخکښ ګوند
کولای شی چې دیوی متحدی جبهی پـــه
رهبری سره په ویتنام کی ملی دمو کراتیك
انقلاب رهبری کړی دمستبد داود دتسلـــط د
دوری په موده کی دهیواد حالت اود ګو نـد
دکیفیت او کمیت څخه ملګری نورمحمدتره کی
داسی درك کړه چې په افغانستان کی‌دافغانستان
دخلکو دمو کراتیك ګوند د (هیواد دکارګری
طبقی مخکښ) کولای شی چې کار ګـــری
انقلاب بریا لی ،رهبری او کار ګری دولـــت
جوړ کړی .

ملګرو ! هو چې من او نور محمد تره کی
دواړو په خپلو خلکو کی دکار ګری طبقـــی
دعلمی ایډ یالوژی په پراخه خپرو لو باندی
اصرار درلود دواړو دامپر یالیزم او استعمارپه
ضد ټینګ سنګر نیولی ؤ .

دواړو دطبقاتی مبارزو ژور تیا ته ډیر اهمیت
ور کاوه او دواړ ودبر یالیتوب مهم عامـــل
دکار ګری طبقی داسی ګوند ګا ڼه چـــې
د کار ګری طبقی په‌علمی ایډ یالوژی مجهزوی
دواړو رهبرانو دطبقاتی دښمنو له لاسه کلك
کلك ګوزا رونه خوړلی دی اوسره لـــه دی
چې دواړو غیر علنی مبارزو ته ډیر اهمیت
ورکاوه. اوپټی‌ګوندی خپرونی یـــې کـــولی
ملګری هوچی من له هیواد څخه دبا ندی نه
ډیره موده جنبش رهبری کاوه خو ملګری
تره کی تل داسی نیمی علنی کار ګـــری
طبقا تی مبارزی عیار کړی وی چې په هیواد
کی دننه یې ډیر پراخه ملاتړ پیدا کـــړ
او له وخت څخه پومبی له دښمن سره وسله
وال ټکر کی رانغي .

ملګری هوچی من ګر پلایی جګړو تـــه اهمیت ور کاوه او دجګړو له پاره یی داسی نظا می قوت تنظیم کړی و چی دحا کم قدرت وسله وال پو ځ په ضد جنګیده او دمتحـــدی جبهی له لاری یی قدرت ترلاسه کړ او ملـی آزادی بښو نکی انقلاب یی په لومړی وهله کی تر سره کړ، خو ملګری تره‌کی داســـی لاره‌نیولی وه‌چی‌دحاکم‌قدرت‌په‌وسله‌وال‌پوځ کی خلقی ګوندی کارونه تنظیم شول او ددولت وسله وال پوځ یی خلقی کړ او سیاسی قدرت یی داسی لاس ته راوړ .چی په اوله مرحلــه کی یی کارګری نظام اوخلقی دولت جوړ کړ او له اول څخه کار ګری انقلاب ؤ .

ګرانه ملګریه ! دویتنام‌خپلوانه دمو کراتیکه جمهوری، چی دویتنام دویړو قهر مانو خپوا ناتو په ډیر و قر بانیو سره جوړه شوه له بـــی شمیر ومشکلاتو سره مخامخ شو ه .

چی ورو ستیو بر یالیتوبونو یی‌سوسیالیستی ویتنام حاصل ورکړ او امپر یالیزم یی پـــه جهان کی ډیر بی پته او رسوا کړ .

دڅور پر تمین انقلاب دامپر یالیزم او بین‌ـ المللی ارتجاع ملاغو ته ماته کړه چی ددواد په شان غدار ورور یی له لاسه ورکـــړ او دامپر یالیزم مرتجع نو کرا نواو جیره خورانو ددی په ځای چی خپلو کورونو کی وربا ندی وژاړی دتلو یزیون په پر دوکی د ټکــــــــی او بښکی ور باندی تو یی کړی او هغـــــو کسا نو چی عملا خپل وطن پلورلی دی دخلکو دد ښمنو دعاوی یی واخستلی . دڅور دانقلاب په وسله وا لو عملیا تو کی یوازی‌دری‌پنځوس

تنه خلقی قهر مانان شهیدان شول او اتـــه څلو یښت کسه دداو ددرڅیم په دفاع کـــی مړه شول .چی ټول په انقلاب کی لــــــه دوستانو او مخا لفانو څخه یو سلو یو تنو ژوند له لاسه ورکړ .

دڅور ستر انقلاب او دویتنام دزړ ورو خلکو بر یالیتوبونه په جهان کی داسی تاثیـــرات واچول چی امپر یالیستی افراطی او افرا طـــی چپی منا بع یی سره غاړه په غاړه کړ لـــی چی‌زن په نړی دسو لی او اجتمـا عــــــــی ترقی او دبشر دنیکمر غی دلاری مبارزوهیوادو او قوتو پـــه ضد ولاړ دی هغه شـان چـــی دنړی په هغی سیمه کی دغه دواړه دزیار ایستو نکو خلکو ضد قوتو نه دمیر نی ویتنام په‌ضد دهغه ګا ونډ یان‌لمسوی‌اودسوسیالیستی ویتنام دانکشاف په لاره کی خنډ ونه پیـــدا کوی همانګه شان په دی سیمه کی دامپریالیزم ګوډا ګیان اوپه اسلامی نړی مختوره ارتجاع چی په اخوا نیانو شهر ت لری له کینــــــو افراطیو نو سره یو ځای دڅور دانقلاب اوزموږ خلقی نظام په ضد توطئـی او دسیسی کـــوی دسو سیالیستی ویتنام بر یالیتو بو نو چی په نړی کی مخصو صا دنړی په دی برخه کـــی دامپر یالیزم ضد قوتو نه ټول خو شحا لـــه کړل دڅور ستر بر یا لی انقلاب په نړی کـــی دمخ په وده هیواد ونو خلکو ته ډیر امیدو نه پیدا کړل چی په ډیر ه مینه استقبال و رڅخه کوی .

خلقی افغا نستان او سوسیا لیستی ویتنام دواړه په دی معتقد دی چی دانقلاب اود انقلاب ضد دصا دراو له پاره هلی ځلی ستر خیانت

دی خو دواړه پو هیږی چی بریالی انقلا بو نه
په نړ ی‌کی په شر یفو وطنپالو نکو با ندی
ډیر اثر غور ځوی او هغوی ټول خپل ملاتړ ته
راجلبوی .

لکه چی همدا اوس لیدل کیږی چی ټول
زیار ایستو نکی وطنپا لو نکی خلك هرچیری
چی دی دثور له پرتمین انقلاب څخه په پوره
ایمان ملاتړ کوی او خپلو ستمگر انو پسی
یی دبی راخیستی دی .

گرانه ملگریه !مونږ دواړه هیوادونه گډ
دوستان او گډ دشمن لرو ، دواړه هیـوادونه
دنړی دنورو کارگری نظامونو په څنگ کی،
دبرابرو ورونو په شان ځای لـــری ، دواړه
هیوادونه له شوروی اتحاد او نور وسوسیالیستی
هیواد ونو سره ډیر ښه دورور گلوی‌مناسبات
لری اوله شوروی اتحاد سره یی په پـــوره
برابرو حقو قو داسی ددوستی معا هدی کړی
دی چی‌په نړی اوپه منطقو کی‌دسولی‌دټینگیدلو
له پاره ډیری گټوری دی او دضرورت پـــه
وختو نوکی دد ښمنو دد سیسو دشنډو لـــو
له پاره ډیر ښه رول لوبوی . خلقی‌افغانستان
د تیرو شپیتو کلو په تجر بو ســــــره او
سو سیا لیستی ویتنام له‌امپر یالیزم سره‌داوږدی
مودی په جگړ وکی هر ډول مرستی ترلاسه
کولو سره داحقیقت تثبیت کړی چی لـــــه
شوروی اتحاد سره ددغه شان معاهدو کول
ډیر گټور او دسولی دد ښمنو دتیر یـــــو
دمخنیوی له پاره ستر عامل دی زمو نږدستر
رهبر دافغانستان دخلکو دموکراتیك گو نــد
دمر کزی کمیتی دعمومی منشی دافغا نستان
ددمو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورا رئیس
او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دشوروی اتحاد
دکمو نست گوند دمرکزی کمیتی د شو روی
اتحاد عالی شورا درئیسه هیات او حکو مت
په بلنه ما سکو ته وروستی سفر چی ددواړو
هیواد وتر منځ شپیته کلن منا سبات ښـــه
منعکس کړل چی اوس دورور گلوی عا لـــی
سو یی ته رسید لی دنړی سو لی تـــــــه
ډیر گټور ؤچی دغه حقیقت ددوستی پــــه
معاهده کی ښه ځلیږی .

په ایران کی پیښو زمونږ نظر ځا نتـــــه
واړولی دی او اند یښمن کړی یی یو ، پـــه
هغه هیواد کی دهر ډول خارجی لاس وهنواو
نظامی مداخلو کلکه غند نه کوو ، مو نـږ
دا یران دزړ ور وزیار ایستو نکو خلکـــــو
نیکمر غی غواړو او دهغو دښه مستقبل لپاره
ستر گی په لاره یو او دهغو کورنی چاری
خاص په هغو پوری تعلق لری .

زمو نږ ددوستی منا سبات له‌هند سره په
خو ند وره وضعه کی دی اوښه تما سو نه
موښه په زړه پوری دی اودنړی دسو لـــی،
دمنطقی دسو لی او دناپییلتو ب دنهضت‌دپیاوړی
کیدلو له پاره موپه زړه پوری خبری کـــړی
دی چی ښه اثر به ولری ،له پاکستان سره
مو منا سبات لاښه کیږی او هیله من یو چی
دپښتنو او بلوڅو دملی مسئلی په هکـــله به
زمونږ تر منځ یوازینی سیا سی اختلاف دخبرو
او سوله ایزو مفا همو له لاری حل شی هغه
مر ستی چی دتجارت او ترا نزیت په هکله
له پاکستان څخه غواړو دپاکستان دمشرانـــو

نظر یې جلب کړی دی او دهغه هیواد دسودا-
ګری دوزیر افغانستان ته ددوستی ورو ستی
سفر دغه عقیده ډیره ټینګه کړی ده، لـــه
چین سره مو هم منا سبات عادی دی ځرنګه
چی مونږ دانقلاب په صادرولو عقیده نلـــرواو
دنورو هیواد وپه کور نیو چارو کی له مداخلی
سره کلك مخا لف یو هیله ده نور هیوادونه
به هم زمونږ په چارو کی له لاس وهنــــو
څخه ځان وژغوری ترڅو دهغو ددسیسودښنهو-
لوله پاره لادکـار او ځـان تیارولـو په ځای د
سو لی او اجتماعی ترقی لپاره ډیر ښـــــه‌او
مثبت کارو نه وکړو .

ګرانه ملګر یه !خلقــــــی افغانستان او
سو سیا لیستی ویتنام دنا پییلتوب نهضـــت
ته ډیر ښه وفا داردی .لکه چی په ها وانا،
نیو یار کاو بلګراد کی مود نا پییلتـــوب‌د
نهضت دپیاوړی کید لو په خا طر فعال رول
درلود په ها وانا کی دراتلو نکی عا لـــــی
کنفرا نس دهږ عالی برا لیتوب پـــــه خاطر
فعا لیتونو کی هم مؤثره برخه اخلو تر څو
چی دقهرمانی کیو باد فعال ،سو له ایــــز
سیا ست په مقتضی ډیری ښی بریا لــــــی
نتیجی ور کړی .مونږ دامپر یالیزم هغه ټولی
هلی ځلی په ګده شنډ وو چی دنا پییلتوب‌په
نهضت کی دد رزاچو لوبه مقصد یی کــــوی
مونږ شوروی اتحاد او نور سو سیا لیستی
هیواد ونه دنا پییلتوب دنهضت طبیعی دوستان
ګڼو .

دافغانستان دمو کراتیك جمهوریت اودویتنام
سو سیا لیستی جمهوریت له میړنی کیو با
سره ډیرله مینی ډك ددوستی منا سبات لری
او دکیو با دخاوری دتما میت په شمو ل‌دهغی
له ټو لو حقو قو څخه په کلکه دفاع کـــوو
او غواړو چی پردی نظامی اډی دنړی پـــــه
هر ځای کی‌چی وی ونغا ړلی شی اودتیریو
مخه په کلکه ونیو له شی په لاتینی امریکا
مخصو صا په چیلی او نیکار ګوا کــــــی
دامپر یالیزم مداخلی په کلکه غند واو دچیلی
دمیړ نیو خلکو دویاړه ډکو مبا رزو بر یالیتوب
غواړو چی دپنو چت ستمګر رژیم داسی پړنګ
کړی چی دامپر یالیزم ګوډا ګیان کرټپورك
کړی .

زمونږ دواړو هیواد ودر یځو نه دافر یقـــا
اومنځنی ختیځ‌دپښتو په‌هکله‌یو شان‌دی.دانګولا
او ایتو پیا دخا ورو دتما میت څخه کلك ملاتړ
کو و او له هغو سره دقهر مانی کیو بــــــا
او نورو سو سیا لیستی هیوادو مر ستی ډیری
ستا یو دنا میبیا ،زمبا بوی ، جنو بـــــی
افر یقا او دهغی لو یی وچی دزیار ایستونکو-
خلکو له قر بانیو ډکو مبارزو څخه په پراخه
مینه او کلکه عقیده ملاتړ کوو دفلسطیـــن
د میړ ینو خلکود خقو قو تر سره کـــول ،
دامپر یالیزم په دلالی له اسرا ئیلو سره په
سیا سی معا شقی کی ناممکن وینـــو .د
اسرائیلو ستمګر انوته په امتیاز ور کو لو
سره دعر بو خلکو حق نشی تر لاسه کیدای
دفلسطین خلکو ته دخپل دولت دجوړولو په
شمول حقو نو تر لاسه کول ، دژینـــــــو
دکنفرانس له لاری ممکن بریښی .

ګرانه ملګریه !زمونږ دواړه هیوادونه‌هڅی
کوی چی دنړی له ټولو سوله غو ښتو نکـــو
هیواد و سره خپل منا سبات ډیر ښـــه او

دوستانه کړی له‌دیتانت څخه په کلکه‌دفاع کوو، دبی وسلی کولو له نهضت څخه په ټینګه ملاتړ کوو ،په تیری کوو نکو نظامی بلاکو نوکی په هیڅ شان برخه نه اخلو اوله پردیو هیوادو څخه دهغو عسکرو چی دخلکو له رضا مخالف پراته دی فوری وتل غواړو .همداوه چی افغانستان دټولی کوریا دخلکو یوازینی واقعی قانونی دولت د کوریا دخلکو دموکراتیك جمهوریت وپیژاند چی همدا اوس زمونږ ددوستی‌مناسبات ورسره ډیر ښه دی او دجنوبی کوریا جمهوریت مود امپریالیزم یوه دسیسه اود کوریا دخلکو په حقوقو تیری وباله موږ له کوریا څخه دپردیو عسکر ووتل اودکوریا بیا یو والی په جدی توګه غواړو چی دکوریا دخلکودموکراتیك جمهوریت یی واقعی‌ممثل‌دی.

خلقی افغانستان او سوسیالستی ویتنام دنړی په هر ځای کی چی فاشیستی تمایل، دسولی په ضد توطئه ، چپ افراطی ماجراجوئی او افراطی ناسیونالیستی حرکات ، نژاد پالنه ، اپارتاید اویا آزادی غوښتونکو په ضد هر ډول تعصب وجود لری په کلکه غندی اوپه ډیره عالی کار ګری انترناسیونالیستی روحیه دنړی له کار ګری نهضت او دنړی دټولو خلکو د آزادی‌ښوښتونکو نهضتونو سره ټینګ یو والی لرو او کاملا ملاتړ ور څخه کوو .

ګرانه ملګریه! ددغو ټولو حقایقو په خنګ کی چی دخلقی افغانستان او سوسیالستی ویتنام دوستی او ورور ګلوی اړیکی ړنګی ګلوی غواړم داهم ووایم .داکتوبر دستر انقلاب له بریالیتوب سره سم تروتسکی او دهغه پیروان او نور ډیر کولاکان او مفتخواره له شوروی اتحاد څخه وتښتیدل‌او دامپریالیزم په ښو کی ولویدل دسوسیالستی ویتنام دبریالیتوب سره ډیر کاوکیان، دامپریالیزم ګوډاګی جنرالان ، ډیر استثمار ګران او متعصب مرتجعین له ښکلی ویتنام څخه فرار شول او دامپریالیزم لمنی ته یی ځانونه واچول دثور انقلاب له بریالیتوب‌سره هم ډیر واشراف زادګانو ، دنادر داود فاسد رژیم ،دجنرالانو اولوړوبوروکراتانو زامنو او معشوقو دډیر وفیوډالانو بچیو ډیرو ستمګر و فیوډالانو او خانانو او ډیرو متعصبو ایمان پلورونکو مسلمان نمو له پرنګیانو ، امپریالیزم او دامپریالیزم دګوډاګیانو تودوغیږ وته ځانونو ورسول او همدا اوس نشی کولای دخپلو خلکو په مخ کی ستر ګی وغړوی لکه چی دامپریالیزم له ستیجونو څخه چی دشوروی ضد عناصرو تبلیغات کول او د سوسیالستی ویتنام په ضد فعالیت کوی دادی دامپریالیزم له غیږی څخه هم زمونږ دزیار ایستونکو خلکو طبقاتی دښمن دجنرالانو زامن دی اوکه د استثمار ګرو ستمګر انو، افراطی چپ دی که تنګ نظره یاعظمت غوښتونکی ناسیونالستان ،مفت خواره فیوډالان دی، اوکه دامپریالیزم پړی‌په غاړه اخوانیان، ټول زمونږ دخلقی نظام په ضد ر مبارزه وهی او دزیار ایستونکو خلکو دغولولو په خاطر توطئی کوی نودشوروی اتحاد دکمونست ګوند دمرکزی کمیتی دشوروی اتحاد دعالی

شورا د رئیسه هیات او حکومت په بلنــــه مسکو ته زموږ دستر او دخلکو په زړونوکی ډیر ګران رهبر ملګری نور محمدتره‌کی پـــه مشری او ستاسو دګرانو رهبرانو په مشری دوروګلوی هیا تونو سفر وتو او همدااوس زمونږ په مینځ کی ستا ملګری په مشری دسو سیا لستی ویتنام ددرانده هیات شتــــه والی داکتوبر دستر انقلاب ددښمنو دسوسیا- لستی ویتنام دجوړید لود دښمنو او دلوړدستر انقـلاب ددښمنو مخـونه لاپسی تور کړل او زمونږ د خلکو ترمینځ یی‌دور ورګلوی اړیکی داسی ټینګی کړلی چی اوس امپریالیزم‌دتوری

ارتجاع مختوری اسـتازی اودهغوټول ګوډاګیان پرته له‌دی چی په کړیکو کړیکوو ژاړی بل څه نشی کولای دوی ټول پوهیږی چی همدا اوس ددوی دټو لو زیار ایستو نکو خلکو زړونـه زمونږ ددری واړو ږریا لیو انقلا بو پــــه تعقیب دخپلو دغه شان خلقی انقلا بو لپاره تخنیږی .

نوزه له ګرانو ملګرو او خوږ ودو ستا نو څخه هیله کوم چی ددغو هیلو په خاطــــر زما سره یو ځای خپل دشر بت جامو نه‌پورته کړی دنړی دټو لو زیار ایستو نکو خلکــو دیو والی په خاطر ،دنړی دټو لو کارګری‌او خلقی انقلا بونو دلاډیر وبر یالیتو بو نو په خاطر ، دخلقی افغانستان او سو سیا لیستی ویتنام ددوستی او ورور ګلوی په خاطــــر ، دسو سیا لستی ویتنام دصد راعظم د معاون او خارجه چا رو وزیر ملګری ګون زوی چن درو غتیا په خاطر ،دقهر مان ویتنام دګرا نو مشر انو دژوند داوږ دوالی په خاطر .

زمونږ دستر او ګران مشر نورمحمد تره کی دژوند داوږ دوالی په خاطر ،

په نړی کــــــی دسولی ، دمو کراسی او اجتماعی ترقی دبریالیتوب په خاطر .

## په‌دغه میلمستیا کی‌د ګونزوی چن‌دوینا متن

دصد راعظم مر ستیال ګران ملګـــــری حفیظ الله امین !

میر منو او ښا غلو !

محترمو میلمنو او ملګرو!

لو مړی غواړم دصد راعظم مر ستیال‌اود خلکو دډمو کرا تیک ګوند دسیا سی بوروغړی ملګری حفیظ الله امین او دافغانستان خلکو ته دهغه تا وده هرکلی له‌امله چی زمو نـږ یی کړی دی دخپلی مننی مراتب څر ګنــد کړم اوهم دصدر اعظم دمر ستیال له مینی ډکو کلمو اوپه تیره بیا دهغه څه له املــه چی دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یت لــه خلکو او حکومت سره یی ددو ستی اوهمکاری په باب څر ګند کړی دی مننه وکړم .

له دی امله چی دلور له انقلاب نه وروسته دویتنام دلو مړنی حکو متی هیات پــــــه تو ګه افغانستان ته سفر کوو وياړو اوخوښی یو دافغانستان دخلکو دلر غو نی او ځلا نده تمدن په لر لو سره په اوږدو پیړ یو کـــی دخپلی خپلواکی او آزادی دسا تنی لپاره‌د

امپر یالیزم او استعمار په ضد زړه وره اوپرله
سی مجا دله کړی ده نن دافغا نستان بیلا بیلو
ملیتو نو دخلکو دد موکرا تیك گوند پــــه
لار ښوونه په بری سره انقلاب کړی دی.اوپه
هیواد کې یې دنوی ویاړ لی دوران لاره پرانستی
ده دافغا نستان خلك چی اوس دخپل ســــر
نو شت خا وندان دی دیوی بی استثماره ټولنی
دیو افغانی ربښتینی آزاد او دمو کراتیــــك
جمهوریت په جوړ ولو کی کو ښښ کــــوی
او دېر مختگ او نیکمر غی لاره وهی مو نږ
پەداسی وخت کی ستاسی هیواد ته سفــــر
کوو چی فضا دانقلاب له انگاز وڅخه ډکه نده
ده مو نږ دلته په زوره توگه له یو داســـی
آزاد ملت څخه مستشعر یو چی په آگا هانه
تو گه له انقلابی ارزښتونو څخه دفاع اودانقلاب
پەضد دامپر یالستا نو او دهغو دمشر انـــو
ټولی دسیسی شنډ وی .

دافغانستان خلك په یوه لږه موده کـــی
په انقلابی مشر تابه ستر وسیا سی اقتصادی
او ټو لنیزو بریا لیتو بونو ته رسید لی دی.
چی له هغو نه دبز گرا نو څخه دسوداوسلم
دله منځه وړلو ،دکر نی دکو پرا تیفو نـــو
دجوړ ولو ،دځمکی داصلا حاتو ،دنا رینــــه
اوښځی ترمنځ او ملیتونو ترمیځ دحقو قودبرا-
بری، داعلامولودبیسوادی پەضددهراړخیزی مبارزی
سمبا لول او دېر گنو دکلتوری معیار ونـــو
دلو ړولو نوم اخیستلی شو .
دغه ټول بر یا لیتو بو نه ددغه حقیقــت
ښکاره ندوی دی چی خلك پەسر نو شت
باندی دحا کمیت او پخپل قدرت داتکا پـــه
لر لو او دسو سیا لیستی هیواد ونو پـــــه

مرسته یو زوړ نظام بدلولی او نوی کولی‌شی
دافغا نستان دموکرا تیك‌جمهو ریت دآزادبهر نی
سیا ست پیرو ،سوله غو ښتو نکی اوناپییلی
دی اوپه جدی توگه دخپلو اکی غو ښتنـــی
له ملی مبا رزو څخه ملاتړ کوی او لـــــه
سو سیا لیستی هیواد ونو او نورو هیوادو نو
په تیره بیا له گاونډ یو هیواد ونو ســــــره
ددوستی او همکاری داړیکو دېر مختیا هیلـــه
لری .د افغانستان دمو کرا تیك جمهور یت‌له
نا پییلو او مترقی هیوادو سره یو ځای هلـــی
ځلی کوی چی په هاوا نا کی‌دنا پییلو هیوادو
دمشرانو دشپږمی غونډی دبــری او پر مختگ
له پاره شر یکی هلی ځلی وشی .

په نړ یوالو مسا لو کــــــی دافغانستان
ددمو کراتیك جمهوریت واقعی پا ځون دادی
چی‌د گاونډ یوهیوادو ترمنځ ستو نــــــزی
با ید دروغی جوړی خبر وله لیاری حل شـــی
او له دی امله ده چی په سیمه کی دسولی
آزادی، دوستی او ټینگښت رول په مثبتـــه
توگه سرته رسوی .ددوستی دښـــــــــــه
گا ونډ یتوب او همکاری هغه موا فقـــــه
لیك چی پەدی ورو ستیو وختو کی شو روی
اتحادته دانقلابی شورا د رئیس او صدراعظـــم
ملگری نورمحمد تره‌کی دسفر په وخت کـــی
دهغه هیواد او افغانستان تر منځ لاسلیك شو
دافغانستان ددمو کراتیك جمهوریت دآزاداو
مستقل سیا ست یوبل هغه څر گندوی‌دی‌چی
په ټو لو بر خوکی دافغانستان دد مو کراتیك
جمهو ریت ټیگښت زیا توی په عین وخت‌کی
په آسیاکی دسولی، ملی خپلواکی، دموکراسی

اوټولنیزی پرمختیا دیوه ستر عنصر په توګه منځ ته راځی .

دویتنا م خلك په ژوره همدردی سره دافغانستان انقلابی پرمختیا وی تعقیبوی اودهغه له بری څخه زیات خوښ دی او هغه خپل بری بولی اوصمیما نه هیله لری‌چی‌دافغانستان خلك دپنځه‌کلن پلان په تطبیق سره سترو بریالیتوبونو او پرمختګونو ته ورسیږی .

واس امپریالیستی قواؤ او بین المللی ارتجا ع دنړیو ال انقلاب په لاره کی له هیڅ ډول تیری اچو لو څخه ډډه نه کوی دغه شان ناوړه حر کتو نه دنړیوالی ارتجاع له خوا دامپر یالیزم په همکاری دویتنام دسوسیالیستی جمهوریت او دملی آزادی غوښتو نکو حرکتو نوپه ګډون سو سیا لیستی نظامو نو ته متوجه دی .

دغه حالت زمونږ خلك دی ته اړ باسلی پداسی حال کی چی دسو سیا لیزم دجو ړولو هڅه کوی دګران هیواد لپاره هم جګړ ی ته چمتودی چی له هر ډول ستو نزی سره په کلکه مقا بله وکړی او هیڅ یو قدرت نه‌شی کولای دتون ډك تونګ زمونږدجمهور رئیس تر لار ښوو نو لاندی دیوه متحد ، سو له غو ښتو نکی او آزادی سو سیا لست ویتنام دجو ړولو په مقصد دویتنام دکمو نست ګو ند دڅلو رمی کنګری دتصیمو نو په عملی کولو کی زمونږ دخلکو دا رادی مخه ونیسی .

دکمبود یاخلك دملی یو والی اوژغور نده جبهی په مشری په زړور تیا سره دکلیك یول پوت اینګ ساری یعنی دبین المللی ارتجاع دګوډا ګیا نو پر ضد په جګړه بوخت دی.

چی واقعی خپلواکی او دخلکو نیکمر غی لاس ته راوړی .

دکمبود یا دملی یوالی او ژ غو رنده جبهی پرو ګرا مونو دکمبود یا دخلکو دحقوقی ګټو اوبشری هیلو سره‌یو شی دی‌اود آسیا په جنوب ختیځ کی دهمیشنی سو لی‌اوټینګښت عامل دی .

دویتنام خلك دنړی دټو لو متر قی خلکوپه څیر دکمبودیا دملی یووالی دجبهی له مبارزو څخه چی د هغه هیواد دخلکو رښتنی استازی دی پوره ملاتړ کوی او باور لری چی ددوی دغه مبارزی بریالی کیږی اوهم دویتنام دسو سیا لستی جمهوریت خلك دامپر یا لیزم او بین المللی ارتجاع پر ضد دخپلواکی دمو کراسی او سو سیا لیزم درښتینی کیدوپه لاره کی دملتو نو له مبا رزو څخه ملاتړ کوی.

ویتنام او افغانستان دوه هغه آسیا یی هیوا دونه دی چی جغرافیا یی لری والی د د غو دواړو هیوادونو د خلکو تر منځ ددو ستی او مر ستی داحساسا تو خنډ نشی کید لای دویتنام خلك هغه ملاتړ او همدردی چی دافغانستان خلکو زمونږ دخپلواکی غو ښتنی او جوړښت دمبا رزوسره په تیر او اوس وخت کی کړی دی په ژوره مننه او قدر دانی منلی دی اوس چی دافغانستان انقلاب بریالی او د ویتنام خلك خپلواك اویو موټی شویدی دغو د ووکارونو زمونږ ددواړو هیوادونو تر منځ ددوستی ، مرستی او څواړ-

خیزه همکاری دمنا سبا تو دزیا توالی لپاره ډیره ښه زمینه برابره کړیده .

دغه سفرماته وخت راکوی چی ستا ســود هیواد ستر پر مختگو ته چی ستا سو دستر او الهام بښو نکی انقلاب داغیز وځر گندوی دی وگورم مونږ هیله لرو دافغا نستان لــــه خلکو سره دلوی تیا ملی جوړ ښت او زمونږد دواړو هیواد وددفاع ، دسو لی، دمو کرا سی او سو سیا لیزم دسا تنی په نظر کی لر لو سره دپخوا و ټینگو منا سبا تو ښنسټ کیږدو.

مونږ له ځانه سره دویتنام خلکو تــــــه دافغا نستان دخلکو د دوستی او ور وری‌د احسا ساتو خوږی خاطری سوغات وړو .

پدغه فضا کی چی دورور گلوی دوستی حکمفرما ده پیشنهاد کوم چی له ماسره دځپلو جا مونو په پورته کولو کی دویتنام دسو- سیالیستی جمهوریت او دافغا نستان ددمو- کراتیک جمهوریت تر منځ ددوستی او همکاری د زیا توالی او زیاتی پر مختیا ، دافغانستان دخلکو دستر انقلاب دزیا توبر یالیتو بو نو، دنړی دهغو خلکو دبری چی دآزادی، سو لی ملی استقلال دموکراسی او سو سیا لیـــزم دلاس ته‌راوړلو لپاره په‌مجادله‌کی دی‌دخلکـــو دموکراتیك گوند دعمومی منشی او دانقلابی شورا درئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی او دافغانستان د خلکو ددمو کرا تیك گو ند دسیاسی بورو دنورو ملگـــرو په ســـلامتـــی ، دصد راعظم دمرستیال ملگری حفیظ الله‌امین په ســــلا متی دټــــو لــــو هغو ملگرود سلامتی په غرض چی دلته حاضر دی ملگر - تیا وکړی .

دصدراعظم مر ستیال او دبهر نیو چا رو وزیر حفیظ‌الله امین دجدی په لومړی ور ځ‌د ویتنام‌دسو سیا لستی جمهوریت دصدراعظـــم‌د مر ستیال او دبهر نیو چارو له وزیر جلالتماب گون زوی چن سره دبهر نیو چارو دوزارت په ودانی کی دوستانه خبری وکړی .

دخبر و لومړی پړاو دسهار له نهه نیمـو- بجـو ځخـه د ماسپښین تـر دولس نیمـــو بجو او دوهم پړاویی له دریو بجو ځخه‌دماز- دیگر تر پنځو بجو او پنځه لسو دقیقو پـــوری دوام وکړ .

دغه خبری چی دهغو په ترڅ کـــی ددواړو هیواد ود علاقی وړ موضو عگا نو ، دسیمــی دمسئلو او دبین المللی حالاتو په بـاب خبری وشوی دصمیمیت او پوره تفا هم په فضا کی وشوی .

په دغو خبرو کی دافغانستان دد موکراتیك جمهور یت له خوا د بهر نیو چارو دوزارت سیا سی معین شاه محمد دو ست ،دسوداگری دوزارت معین محمد حکیم مالیار ، دبهر نیو چا رو دوزارت داقتصادی اړیکو دلوی مدیریت سرپرست محمد میرزا سمـــا ح ، دسیاسـی لو مړی ځانگی مدیر میر زاگل یـــاور ، داطلاعاتو مدیر اسدالله متین ، دملگـروملتو دکنفرانسو نو اوبین المللی اړیکو مر ستیال عبد المجید منگل ،او دسیا سی لومړ ی‌ځانگی مر ستیال محمد فرید ظریف او دویتنــــام



دهغو رسمی خبرو یوه څنډه چی دصدراعظم دمرستیال اوبهرنیو چارودوزیر حفیظ الله امین اوجلالتمآب گون زوی چن ترمینځ وشوی .
۱ر۱۰ر۱۳۵۷

دسو سیا لیستی جمهوریت له خوا دویتنـــام دسو سیالیستی جمهوریت دبهر نیو چـارو دوزارت معین جلالتماب دین نهو لییم ،د پلان جو ړولو دجرگه گی غړی نیگو ین تـو، د بهر نیو چارو په وزارت کی دآسیا یـی څلورم دیپا رتمنت آمر بیو تان لین، پــه کابل کی دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یت دلوی سفارت شا رژ دافیر تون کو انگ کو، دد یپار تمنت درئیس مرستیال او دبهر نیو چارو دوزیر سکر تر هوین وان نگهیا او د ویتنام دسو سیا لیستی جمهور یت دبهر نیو چا رو په وزارت کی په آسیا یی څلورم‌دیپار- تمنت کی متخصص نگوین زویی نیان گـهون درلود .

دصدر اعظم مرستیال اود بهر نیو چـارو- وزیر حفیظ‌الله امین په هغه میلمستیا کــی گډون وکړ چی دویتنام دسو سیا لیستـــی جمهوریت دصدراعظم د مرستیال او دبهر نیو چا رو وزیر جلالتماب گون زوی چن اودهغه دملگرو په‌ویاړ دکابل ښاروال ډاکتر شیرآقا له خوا په کابل هوټل کی ترتیب شوی وه. پدی میلمستیا کی دوزیر انو دشورا ځینـو غړ یو، دوزارتونو ځینو معینا نو، دافغا نستان دخلکو دځارندوی لوی قوماندان، دبهر نیـو چـارو دوزیـــر دد فتر آمر دبهـر نیـو چارو دوزارت دتشر یفا تو رئیس ، کا بـل والی ،او دبهر نیو چارو دوزارت یو شمیـر لوړ رتبه ما مور ینو ،په کابل کی دو یتنام دسو سیا لیستی جمهوریت دلوی سفارت‌شارژ دافیر او ځینو غړو گډون کړی و .

دویتنــــام دســـو سیا لیستی جمهوریت دصد راعظم مر ستیال او دبهر نیو چارو وزیر جلالتماب گون زوی چن دجدی په دوهمه‌نیټه له غرمی مخکی جلال آباد ته دتگ په لاره

کی دننغلو دبر ښنا دبند تاسیسات پدا ستی حال کی وکتل چی دمربوطو مو ظفینو لــــه خوا ئې ضیحات ورکول کیدل .

دغه جلالتماب او دده ملگرو ته په ننغلو کی دننغلــو دبــر یښنــا تــاسیساتو کــارگــرانــو او کار کوونکو له خوا اتو دهر کلی وو یـــل شـو .

دویتنام دسو سیا لیستی ملگرو په همغی نیته په هغی غر منی میلمستیا کی گــډون وکړ چی دکابل والی ډاکتر سهاك له خــوا دد وی په ویاړ دننغلو په کلوپ کی شوی وه پهی میلمستیا کی داو بو او بر یښنا وزیــر پو هنوال محمد منصور ها شمی ،دبهر نیــو چا رو دوزارت سیا سی او اداری معینا نــو، دسوداگری دوزارت معین ،دبهرنیو چـــارو دوزارت دتشر یفا تو رئیس او دهغه وزارت یو شمیر نورو مامورینو اوپه کابل کــــی دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یتدلــوی سفارت شا رژدافیر برخه اخیستی وه .

دویتنام دسو سیالیستی جمهوریتدصدراعظم مر ستیال او دبهر نیو چارو وزیر جلا لتماب گون زوی چن‌دجدی په دوهمه نیته ماز دیگر جلال آباد ته ورسید او دننگر هار او لغمان دخلکو له خوایی تود هر کلی وشو .

جلالتماب گون زوی چن او ملگری هیـات یی پداسی حال کی چی دسودا گری دوزارت معین محمد حکیم ماليار ،د بهر نیو چـــارو دوزارت دتشر یفا تو رئیس محمد ولی‌مندوزی او دهغه وزارت یو شمیر نور مامورین او د ویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت دلـــوی سفارت شار ژدافیر تون گوا نگ کو ورسره وو .په همد غه ورځ په پنځو بجو دجلال‌آباد ښارته ورسیدل دسر خکا نو پله ته نـــږدی د ننگر هار والی اوعسکری قو ماندان جگړن بهرام الدین ،دلغمان والی حضرت گــــل بار گامی ،دننگر هار دناوی دپر مختیادپروژی لوی رئیس پوهنمل گلداد ،دلغمان اوننگر هار دولایتو نو دولایتی کمیټو غړ واو دمر کزی دا یر ورئیسانو ،دښوو نځیو زده کوو نکــو او دقر غیو دولسوالی خلکو دولو لو پــــــه ځر گندولو او چکچکو سره په داسی حال‌کی چی زمونږ دگران مشر دانقلا بی شورا رئیس او صد راعظم نورمحمد تره‌کی عکسو نه او سره خلقی بیر غونه ورسره وو ددوست هیواد ویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت میلمنو ته تو دهر کلی ووایه او پدغه وخت کی دقرغیو دښو ونځی یو شمیر نجو نو او هلکا نو زده کوو نکو دخلق ترانه وویله اوملی اتڼ یـــی وکړ .

همدا رنگه دجلال آباد دښار دد رو نتهـــی په برخه کی دننگر هار پو هنتون استا ډانو او محصلانو او د سر خکا نو دپله او دثــور دانقلاب دبڼ ترمینځ دلاری په اوږ دو کـــی دننگر هاراو لغمان دولا یتو نو یوگڼ شمیـــر شر یفو خلکو په چکچکو ، دشعارو نو پـــه ور کولو او دزیاتو ولولو په ځر گند ولـــو سره دقهر مان ویتنام دسو سیالیستی‌جمهوریت دصد راعظم جلالتماب مرستیال او دبهر نیـــو چا رو وزیر ته هر کلی ووایه :

دغه راز دجلال آباد دښار دثور دانقلاب‌دبڼ په وره کي دننگر هار ولایت دگو ندي‌ساز-



دصدراعظم مرستیال او دبهرنیو چارو وزیرحفیظ الله امین کله چی ددوی په ویاړدویتنام دسوسیالیستی جمهوریت دصدراعظم مرستیال اودبهرنیو چارو وزیرله خوادکابل په هوتل کی په ورکړی شوی میلمستیاکښی ویناکوی . ۱۳۵۷ر۱۰ر۴

مانونو اود ځوانا نواو ښځو دخلقی سازمانونو غړیو ،دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یت میلمنو ته ښه راغلاست وواییه.

دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت‌دصدراعظم مر ستیال ا ودبهر نیو چارو وزیر جلا لتماب گون‌زوی چن او ور سره هیات یی دجدی‌په دریمه نیټه ما شام په شپږ وبجو دننگرهار ولایت له مرکز جلال آباد څخه کابل تــه را ستون شو.

دغه جلالتماب او ملگر ویی له غر مـــی مخکی په داسی حال کی چی دسودا گـــری دوزارت معین حکیم مالیار ،دننگر هار والـــی او دعسکری قوا وو قو ماندان جگړن بهرام ـ الدین ،دلغمان والی حضرت گـــل بار گامی، دننگر هار دناوی دپر مختیا دپرو ژی لـــوی رئیس پو هنمل گلداد ،دبهر نیو چارو دوزارت دتشر یفا تو رئیس محمد ولی‌مندوزی،دننگرهار ولایت دمرکزی دایرو یو شمیر مشران اوپه کابل دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یـــت دلوی سفارت شا رژدافیر له هغوی سره ملگری وو دغازی آباد دولتی میکا نیزه فارم او دغه راز دجلال آباد دښارپه څنگ کی دهـــډی غیر منقول موزیم وکوت .

دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت‌دصدراعظم جلالتماب مرستیال او دبهر نیو چارو وزیـــر په داسی حال چی دغازی آباد ددولتی میکانیزه فارم بیلا بیلی برخی چی په هره برخه کـــی دمو ظفو کسا نوله خوا تو ضیحات ور کول کیدل وکتلی دخپلی کتنی په پای کـــی دفارم ددوستی په بڼ کی‌یونیا لگی کینبنود.

دغه راز دغه جلالتماب او ملگر ویی دهډی غیر منقول موزیم پداسی حال کی چـــی داطلاعاتو او کلتور دوزارت دموزیمونو دلوی آمر له خوا توضیحات ورکول کید ل وکوت چی ددوی خوښی شو .

دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریت دصدراعظم مرستیال اود بهرنیو چارو وزیرا او ملگر- ویی په هغی غر منی میلمستیا کی گــــډون وکړ چی ددوی په ویاړ دننگر هار دنـــاوی دیر مختیا دیروژی دلوی رئیس پو هنمـــــل گلداد له خوا دهـــدی دفارم پـه رستورانت کی شوی وه .

پدی میلمستیا کی دسودا گری دوزارت معین دننگر هار والي او دعسکری قواوو قو ماندان دبهرنیو چارو دوزارت دتشر یفا تـــــــو رئیس ،دولایتی کمیټی یو شمیر غړ یــــو، دننگر هار مرکزی داير ومشرا نو اودویتنام دسو سیالیستی جمهو ریت دلوی سفارت شارژ- دافیر گډون درلود .

دغه راز په همدغه نیټه دننگر هار دوالی له خواد ویتنام دسو سیا لیستی جمهو ریــــت دصدراعظم د جلالتماب مر ستیال او دبهر نیو چارو دوزیر په ویاړ دجلال آباد دښار دثـــور انقلاب په بڼ کی یوه میلمستیا شوی وه چـــی په هغی کی دلغمان والي حضرت گل بارگامی، دولایتی کمیټی غړو، دننگر هار ولایت دداير و مشرا نو او ددغه جلالتماب ملگرو بر خــــه اخیستی وه .

ددغی میلمستیا په ترخ کی دسیمه ایــزو هنر مندانو له خوایو کنسرت ور کړی شواو دننگر هار ولایت دخلکو له خوا دویتنــــــام دسوسیالیستی جمهوریت میلمنو ته سوغاتونـه ور کړی شول .

دویتنـــام دســـو سیالیستـــی جمهوریت دصد راعظم جلالتماب مرستیال او دبهر نیـــو چارو وزیر او ملگری یی کله چی دجلال آباد دښار څخه دکابل په نیت روا نیدل له استو- گنځی نه تر درو نټی پوری دحرکت دلــــوری دواړو په دواړو خواووکی دجلال آباد دښارپه زر گو نو تنه شریف خلك لیکه ولاړ وواودغه جلالتماب یی په چکچکو دشعارو نو پــــــه ور کولو او دولولو په څر گند ولو ســــــره بدر گه کړ .

دافغانستان ددمو کراتیك جمهور یـــــت دصد راعظم مرستیال او دبهر نیو چارو وزیر حفیظ الله امین دجدی په څلورمه نیټه دشپی په هغی میلمستیا کی گډون وکړ چی ددوی په ویاړ دویتنام دسو سیالیستی جمهوریـــــت دصد راعظم دمر ستیال او دبهر نیو چـــــارو دوزیر جلالتماب گون زوی چن له خوا پـــــه کابل هوټل کی شوی وه .

پدی ستره میلمستیا کی چی دما ښام پــــه شپږ نیمو بجو جوړه شوه دوزیر انو دشورا غړیو، دانقلابی شورا ددفتر رئیس ، دافغانستان دخلکو دخاړندوی لوی قـوماندان ، دبهرنیـــو چارو دوزیر ددفتر رئیس ، د بهرنیـــو چـــارو دوزارت دتشریفا رئیس ،کابل ښاروال،دبهرنیو چاروو وزارت یوشمیر سترومامو رینو ،دشوروی سوسیالیستـــی جمهوریتـــونو د اتحـــاد لـــوی سفیر شیخ السفرا الکسا ندر میخا ئیلوویچ پو زانوف ،ددو ستو هیواد ونو یو شمیرنورو لویو سفیر انو،د ویتنام دسو سیا لیستــــی جمهوریت دلوی سفارت شا رژدافیراودجلالتماب گون زوی چن ملگری هیات گډون کړی وُ.

دصدراعظم مرستیال او دبهر نیو چـــارو وزیر حفیظ الله امین د جـــدی پـه ٤ نیټـــه تر غرمی دمخه په لسو بجو دصدارت په مانـــی

کـــــی دویتنام دسو سیا لیستی جمهوریـــت دصد راعظم له مرستیال او دبهر نیو چارولـــه وزیر جلالتماب گون زوی چن سره وکتل.

دغه کتنه ددوستانه او پوره تفا هم پـــــه فضا کی له غرمی نه مخکی تر یوو لســـو بجو او پنځلس دقیقو پوری روانه وه .

دانقلابی شورا رئیس او صد راعظـــــــم نورمحمدتره کی دجدی په ٤ نیټه تر غر می دمخه په یوولس نیمو بجودویتنامدسوسیالیستی جمهوریت دصد راعظم مرستیال او دبهر نیـــو چارو وزیر جلالتماب گون زوی چن دپیژنـــد گلوی دکتنی له پاره ومانه .

ددغی کتنی په وخت‌کی دصد راعظم‌مرستیال او دبهر نیو چارو وزیر حفیظالله امین،دبهرنیو چا رو دوزارت سیا سی معین شاه محمـــــد دوست ،دویتنام دسو سیا لیستی جمهور یـــت دبهر نیو چارو دوزارت معین جلالتماب دیـــن نهو لیم اوپه کابل کی دهغه هیــــــواد شا رژ دافیر تون کواگ کوهم حاضر وه .

وروسته بیا دویتنام دسو سیالیستی‌جمهوریت دصد راعظم مرستیال او دبهرنیو چا رو وزیر د غرمی ډوډی دخلکو په کورکی دانقلا بـــی شورا درئیس او صدر اعظم نورمحمد تره‌کـــی په حضور کی وخوړ ه .

د افغانستان دخلکو دد مو کراتیک گو ند دمر کزی کمیتی عمومی منشی دافغا نستان ددمو کراتیک جمهوریت د انقلابی شورا رئیس او صد راعظم نورمحمد تره کی دویتنــــــام دسو سیا لیستی جمهور یت دصد راعظـــــم دمر ستیال او دبهر نیو چارو وزیر جلا لتماب گون زوی چن دمنلو په وخت کی وینا وکړه چی‌متن یی‌دادی:

خو شحا له شوم چی دلو مړی ځل دپاره دویتنام یوه ستر نماینده ته دلته هرکلی‌وایم او په دی باندی مونږ او دافغانستان نور خلك خو شحا له‌دی .

دافغانستان خلك تل په‌دی انتظار کی ووچی یووخت دویتنام یو ستر نما ینده دلته ووینو داز مونږ نیکمرغی ده .چی دثور انقلاب‌داوخت برابر کړ .چی تاسو دلته راغلاست البتــــــه پخوانی ارتجاعی رژیم چی دلته وو هغو دافکر نه‌شو کولی چی دلته به دستر ویتنام یـــو نما ینده راشی .

ځکه دافغانستان خلك او دویتنام خلـــك ډیر ورته تاریخ لری او ډیر مشا به فکـــر کوی نو ځکه دوی ډیر خو شحا له دی چـــی تا سو ته دلته هرکلی وایی .

دافغانستان خلکو هم دامپر یالیزم اواستعمار په ضد باندی ډیری اوږدی مبارزی کړی دی آن له ۱۸۳۸ کال نه بیا تر ۱۹۱۹ کال‌پوری دوی دامپریالیزم او استعمار په ضد بـــانـــدی مبـــارزی کـــړیـــدی او دوی د هغـــوی لـــه جغ نه ځانونه خلاص کړل او دویتنام خلکــو هم له افغانستان څخه لږ څه وروسته دامپریا۔ لیزم پر ضد باندی داسی مبارزی کړ یدی‌چی واقعا ټولو امپر یالیستی قو تو ته یـــــی یو ډیر ستر درس ورکړ چی‌نورهزیارایستونکو خلکو په چارو کی لاس وهنه ونکړی .

که څه هم تر اوسه پوری دافغانستان خلك اودویتنام خلك ډیری لږدی تجارتی او اقتصادی



زموږ گران اوانقلابي لارښود دانقلابي شوراړئيس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کی کله چی دویتنام دسوسیالیستی جمهوریت د صدراعظم ښاغلی فام وان دونګ سره روغبړ کوي. دو ډېرو سره د ويتنام دسوسياليستی جمهوريت د صدراعظم مرستيال اودبهرنيو چارو وزير جلالتمآب گون-
زوی چن يي دکتنی دپاره دخلکوپه کورکی‌منلی دی .
۴ر۱۰ر۱۳۵۷

اړيکی نلری خو ورته او گډ هدف لری افغا نستان په دی باندی پيل کړی چه په نو يو اسا سا تو باندی خپله ټولنه جوړه کړی او دقهر مان ويتنام خلك هم همداسی غواړی نو دوی هيڅکله هم غرو نه، بحرونه ، ويالی او لويی وچی يوله بله سره نشی‌بيلو لی‌دادی نن ډير سره نژدی يو او ډير خو شحا له يم چی پدی سيمه کی دافغانستان خلك لو مړی خلك و چی ځانونه يی‌له امپر ياليزم نه خلاص کړل او دنورو تر استعمار لاندی هيواد و د پاره مثال شول چی بايد دامپر ياليزم او استعمار پر ضد باندی مبارزه وکړی او دويتنام خلکو امپر يا ليزم ته داسی درس ور کړ چی هغو ی قطعاء اوس جر ئت نکو ی چی دنورو خلکو په داخلی چارو کی مداخله‌وکړی او حتی ددی گټه مونږ ته هم ډيره ورسيد له زمونږ انقلاب چی کامياب شو امپر يا ليزم لکه پخواچی په هرځای کی‌يی بيبا کا نه بلاغو ندی ځان اچاوه هغسی دوی زمو نږ دخلکو پر انقلاب باندی ځان وانه چولی شو ځکه تاسو ښه درس ورکړی و .

تاسو اوس دامپر ياليستا نوله ليوه نه خلاص شوی اوس نور ليوان درته دريږی مگر مونږ وايوچی داليوان هم‌بايد ستا سو په داخلی چارو کی لاس ونه وهی او پريږدی چی‌تا سو خپل وطن آباد کړی اومو نږ له تا سو سره کلکه همدری لرو چی تا سو مستقل اوسی او څوك تاسو ونه ځوروی اوتاسو خپل هيواد پخپله په ډير ه ميړانه لکه څرنگه

چی مو له امپر یالیستا نو خلاص کړ همدا
ډول یی ودان کړی .

او س هغه زمانه تیره شوی څه وخت چی
په شوروی اتحاد کی لومړنی کارگری
انقلاب وشو .نو ځوا رلسو امپر یالیستی
او استعماری ملکو نو لکه دلیو انو په څیرچی
په انسان حمله کوی په شوروی اتحاد باندی
حمله وکړه مگر دوی په میړا نه ځا لو نه
څینی خلاص کړل خواوس بل وخت دی
بل ډول شرایط دی تاسو ویتنامی خلك ،
مو نږ دافغانستان خلك دټولی نړی د زیار
ایستونکو دمادی او معنوی ملاتړنه برخور -
داره٬ یو هیڅ ډول لیوه که‌په امپر یالیستی
شکل کی وی یایی بله پرده پر ځان غوړ-
ولی وی نشی کولی چی ستا سو او زمونږ‌په
چا روکی داسی څر گنده مداخله وکړ ی‌لکه
پخوا به یی چی کوله دنړی ټو ل کار گران
او زیار ایستو نکی دکار گری منکوری په
داسی کلك مز ی‌باندی تړلی دی چی‌اوس‌دوی
ټول یو سوك دی هر چیرته چی امپر یالیستان
او یا نور تیری کوونکی پیدا شی دا سوك‌د
هغوی پر خوله وهلی کیږی .

زه یو ځل بیا وایم چی غړونه ، سمندرونه
او لویی وچی هیڅکله هم مونږ او تاسو او
دنړی ټول زیار ایستو نکی یوله بله نشی
بیلو لی هر چیری چی تا سو یا ست
مونږ له تاسوسره یو، هرچیری چی مونږ یو
تاسوله مونږ سره یاست او مونږ او تاسو
واقعاء دهغه هدف پر لور روان یو چی په
هغه کی دفرد څخه دفرد استثمارنه وی اومونږ
دداسی جامعی دجوړ ولو دپاره هراړ خیزی‌هلی
ځلی کړیدی او داتو میا شتو په موده کی
مو ډیر چټك گامونه اخیستی اوزه باور لرم
چی په را تلو نکی ډیر لنډه موده کی به
موږ ددغه راز ټو لنی بنسټ بشپړ کړو .

زه خپله خو شحالی دافغانستان د خلکو
خو شحالی ستا سی دپیا وړ وویتنا میا نود
خو شحالی سره له دی امله یو ځای کوم‌چی
تا سو هم دامپر یالیزم له لیوه نه خلاص‌شوی
یا ست او مونږهم دفیو ډالیزم ،امپر یالیزم
او ارتجاع له لیوانو څخه خلاص شو و.مو نږ
ویا ړو چی دستر وویتنامیا نو نما ینده
دلته گور او ورسره خبری کوو داز مو نږ
دخو ښی ځای دی مونږ خوشحا له یو چی
تا سو دلته یاست او څه وخت چی بیر ته
ویتنا م ته ځی ددی په څنگ کی چی زما
اود افغا نستان دخلکو له خوا به ټو لو ته
سلامونه ورسوی هغوی ته به دایقین ورکوی
چی دافغانستان پیاوړی او زیار ایستو نکی
خلك تل ستاسو تر څنگ ولاړ دی په
هر ډول مبارزه کی چی هغه ستا سو دخپلکو
په گټه وی دزیار ایستو نکو خلکو په گټه
وی .دوی به تل ستا سو په څنگ کی
ولاړدی همیشه به په دی لاره‌کی ستا سو دیو
وروړه څیر خپل ځان احسا سو وزه دا موقع
غنیمت گنم او ټولو امپر یالیستی او ارتجاعی
قو توته که ددی سیمی وی که دهغی سیمی
ټو لوته حتی اخطار ور کوم .چی مونږ اوتاسو
پر یږدی چی خپله ټو لنه چی څر نگه یی
غواړو هغسی یی جوړه کړ و زمونږ څخه دی
لاس واخلی .

په تیره بیا امپر یالیستانو او ددوی پلویا-
نو ته چی اوس یی نور متحد ین هم پیدا
کړ یدی اخطار ور کوو چی دجهان زیـــار
ایستو نکی په تیره دافغانستان او ویتنـــــام
زیار ایستو نکی پر یږدی چی خپل سرنوشت
په خپله لکه څرنګــه چی یی غواړی هماغسی
و ټاکی خو بیا هم دا وایم چی زمونـــــــږ
دافغا نستان خلك اوزه پخپله هم په دی ډیر
خوا بدی یم چی ویتناميا نو دخپل څــــــان
د خلاصون دپاره ډیر تلفات ورکړل ۰ دا زمونږ
او دټول جهان دزيار ایستو نکو ژوره همدردی
له دوی سره ده خو په دی باندی بیا شا ید
تا سو ویتنامی ملګری خو شحا له او ســـی
چی مونږ پدی لاره کی په افغانستان کی تــر
سلو کسو زیــاتــه قربانی نــده ورکـړی خـو
مو نږ هغه انقلاب کامیاب کړ چی واقعا ءهغه
داسی انقلاب دی. چی تاسو او دجهان ټــول
زیار ایستو نکی خلك یی غواړی او دهغــه
ملاتړ کوی .

زه هیله لرم چی ستاسی پاتی استو ګنــه
هم زمونږ په هیواد کی په خوښی سره تیره
شی او هیله کوم چی جلال آباد ته هـــــم
ستا سی سفر په خوشی سره تیر شوی‌وی.
ملګری امین ماته ستا سو دښو او ګټورودښه
نیت خبرو په باره کی معلو مات را کړی ﺷی
زه بیا هم دملګری امین نه خو شحا لـــــه
یم چی افغا نستان ته یی ستا سو دسفرپرو-
ګرام داسی تر تیب کړی و چی تا ســـــو
جلال آباد ته دخپل سفر په تر څ کی دثور
دستر انقلاب په مقا بل کی زمو نږ دخلکـــــو
احسا سات او ولولی په خپلو ستر ګوو ګوری.

په تیر وخت کی زمونږ خلك دخپلو اصلی
دوستانو څخه لیری‌ساتل‌شوی‌وو اودادی‌اوس‌کولی
شی دخپلو ریښتینو دوستانو سره وګــوری یو
ځل بیا دخپلی خوا او دافغانستان دخلکو لـــه
خوا ستا سو په واسطه دویتنام خلکو تـــــه
ډیر زیات سلا مونه رسوم .

په مقابل کی دویتنام دسو سیا لیستـــی
جمهوریت دصد راعظم مر ستیال او دبهر نـــو
چار و وزیر جلالتماب ګون زوی چن‌دافغانستان
دخلکو دد موکرا تیك ګوند دمر کـــــزی
کمیټی دعمومی منشی دانقلابی شورا درئیس‌او
صد راعظم نورمحمد تره کی دصمیمانـــــه‌او
واقعبینانه څر ګند ونو څخه دخپلی مننـــــی
مرا تب څرګند کړل وی ویل :

افغا نستان ته زما سفر ددی وخت برا بر
کړ چی ستا سو دهیواد او انقلاب په باره‌کی
زیات معلومات لاس ته راوړم او داله دی‌امله
زیات اهمیت لری چی دغه امر هغو نــــږدی
همکا ریو او ملاتړ او متقا بلو مر ستو تـــه
چی مونږ یی غوا ړو په خپلو ګڼ وسترو
هد فونو کی دهغو څخه بر خور داره اوسو
زیا توالی او پر اختیا ور کوی ۰

دافغانستان دد موکرا تیك جمهور یـــت‌او
دویتنام دسو سیا لستی جمهوریت تر منـــځ
دپنځو کلو لپاره کلتوری ، اطلا عاتی،تربیوی
او علمی موافقه دجدی په ٤ نیټه تر غرمـــی
دمخه په یوو لسو بجو او شلو دقیقو دصد ارت
په ماڼی کی لاس لیك شوه .

موافقه‌لیك دافغانستان‌ددموکراتیك‌جمهوریت له
خوا دصد راعظم مر ستیال او دبهر نیو چـــارو
وزیر حفیظ‌الله امین او دویتنام دسوسیالیستی

دتخار دښوونې اوروزنې لوی مدیر دولایتــي کمیټي دمنشي دمرستیال له خوا کیښودلـــه شوه .

* دعدلیې وزارت دتمیزعالي مقام دبیلابیلو دیوانونو دثور دبریالي انقلاب اوپه هیوادکې ددموکراتیك جمهوري نظام دټینګښت څخه راوروسته تریوولس زره شپږسوه څلویښت دوسیې چې نه وې حل شو ی حل او فصل کړیدی .

۲۲ر۵ر۵۷

دافغانستان دخلکو دډموکراتیك گونـــد دمرکزي کمیټي دعمومي منشي دانقلابي شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کي دخلقي اونیکي ارادې له مخې دشمالان ترویالي لاندې پریوسلواته پنځوس قزاقي کورنیو بانـــدې دهلمند په ولایت کې ځمکه وویشل شوه .

۲۲ر۵ر۵۷

دتراویحو دلمانځه په ترځ کې دقــرآن – عظیم لشان ختم چې دهیواد دربښتینې بچــي اودافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابي شورا دمشر او صدراعظم نورمحمد تره کـــي په گټون دروژې په اول مانښام دخلکو دکورپه جوماتې کې دجومات دخطیب قاري محمد عمر په امامت پیل شوی ؤ تیره شپه پای ته ورسید .

۲۳ر۵ر۵۷

دخلقي بوللو جشن) دننداره چیانو دخوښيو اوله شور اوزوږ څخه ډکو چکچکو په مخ کې په کابل ننداري کې پیل شو .

۲٤ر۵ر۵۷

دثور دستر انقلاب دهدفونو او دخلکـــو دربښتینې بچي اوستر ښوونکي دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره کي دلارښونو په اساس دکابل ښاروالي یوزرواوه ســـوه بې کوره کسانوته چې له کلونو کلونو راپدې خوا یې حق ثابت ؤ خودتیر خلقي ضدو او دموکراتیك ضدوفاسدو حکومتونو دخصلت په اساس په انتظار کې وو دخیرخانې مینې په پروژو کې ورته ځمکې ویشلي دي .

۲٤ر۵ر۵۷

دخصوصي پانگو اچولو دتشویق په برخه کې دافغانستان ددموکراتیك جمهوري دولت دانقلابي وظیفو داساسي کرښو سره سم دپانگې اچولو عالي کمیټي دتولید په بیلابیلو برخو کـــي څلور دیرش منځنی اووړې پروژې تول دڅلور سوه درې ملیونو نهه سوه دوه ویشت زره افغانیو په پانگه منظورې شوې .

* دانقلابي شورا مشر اوصدراعظم نورمحمد تره کي دهوایي اومدافع هوایي لویې قوماندانې منصبداران دخلکو په کورکي خپل حضورتـــه ومنل اوله هغوی سره یې دخوښي اوخوښحالي په یوه فضاکښې خبرې وکړې .

۲٦ر۵ر۵۷

دافغانستان دتیلو موسسې ریاست دکارگرانو دپرله پسې زیار او ددوست دولت دشـــوروي سوسیالیستي جمهوریتونو اتحاد دمتخصصانو دهمکارۍ په نتیجه کې دهرات ولایت دکهسان ولسوالۍ داحمد آبادپه سیمه کې دتیلو او گاز شتوالي ځرگند شویدي .

۲۸ر۵ر۵۷

زموږ قهرمان گران اوانقلابي مشردافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دمرکزي کمیټـي عمومي منشي دانقلابي شورا رئیس اوصدراعظم

نورمحمد تره کی ددرندو مراسمو په ترڅ کی دپټی په پریکولو او دمخصوصی دکمی په فشارسره دافغانستان دخلکو راډیو تلویزیون پرانست .

**۲۹ر۵ر۵۷**

دافغانستان شریفو خلکو چه کارگران ، دهقانان، روشنفکران او دښوونځیوزده کوو: دی دهیواد دولایتونوپه مرکزونو اوولسوالیو کی دخلکوهیواد او د ثورپه شانه تلونکی انقلاب ددښمنانو خلقی ضد عملونه دغونډوپه جوړولو، ویناو اوانقلابی شعارونوپه ورکولو اودمارشونوپه اجرا سره وغندل .

**۲۹ر۵ر۵۷**

دوروستیو دسیسه کوونکو دکشف او اد اودهغوی دناکامی له امله دوردگو ولایت په مرکز میدانښار کی په سلگونو تنوکارگرانو، بزگرانو ، مامورینو دمیدان دجمعیت لیسی او دجلریز علاقه داری دمنځنی ښوونځی زده کوونکی اومنسوبینو دښار په دننه واټونو کی دخلکو دستر مشر دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم نورمحمد تره کی دعکسونو په وړلودانقلابی شعارونو په ورکولو دډول په وهلواودخلقی ترانی په لوستلو سره یوستر مارش وکړ .

**۳۰ر۵ر۵۷**

په هیوادکی دسرشمیرنی دعمومی پروژی دبریالی تطبیقولوپه باب دهرات ولایت په سالون کی د پلان جوړولو چارو دوزارت داحصائیوی معین په مشری او دهرات دوالی و ددوایرو مامورینو په گډون یوه غونډه وشوه .

**۳۰ر۵ر۵۷**

دانقلابی شورا دشپږمی گڼی فرمان ددرناوی له امله دکابل ښار دهلکانو دښوونځیو دلوی مدیریت له خوا دپولی تخنیك په جمنازیوم کی یوه درنده غونډه شوی وه .

**۱ر۶ر۵۷**

داوبو اوبرښنا وزیر پوهنوال محمد منصور هاشمی دکابل ولایت **دبت خاك په تنگی** کی دامیرغازی بندوکوت اوموظفینو ته لارښوونه وکړه چه ډیرژرددغه بند دعوارضو دمنځه وړلو ته اقدام وکړی اودځمکی داوبوکولو له پلوه دهغی سیمی دبزگرانوستونزی له منځه یوسی.

**۲ر۶ر۵۷**

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا دشپږمی گڼی دفرمان نافذیدل په یوه غونډه کی دکونړ ولایت دپیچ دری ولسوالی دکارگرو، بزگرو، زیارکښو د ښوونځیو منسوبینو او خلکو له خوا دننگلام دلیسی په انگړکی ونمانځل شول اوهرکلی یی وشو .

دبندیانو دبند دبخښنی اودبند د مودی دکمښت په باب دافغانستان دخلکوددموکراتیك گوند دعمومی منشی اودافغانستان ددموکراتیك جمهوری دولت دانقلابی شورا دریئس او صدراعظم نورمحمد تره کی دفرمان له مخی دغزنی ولایت دوه دیرش تنه بندیان دشاندداری اوپرتمینی غونډی په ترڅ کی دبند څخه آزاد اودنورو شپږوتنو دبندپه موده کی کموالی راغلی دی .

٤ر٦ر٥٧

دښوونې اوروزنــې وزارت په پیشنهـــاد دوزیرانو دعالي مجلس په تصویـــب او د افغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابـــي شورارئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کـــي په منظوری په افغانستان کی دعلومودتکامل په مقصد دعلومو داکاډمی تشکیل چی دیوه علمی ستر کمیسیون له خوا ترتیب او تنظیم شویدی دصدارت عظمی په چوکاټ کی‌تایید شو .

٤ر٦ر٥٧

دکابل ښاروالی یوویشتمی ناحیی‌کارگرانو اجیرانو ، مامورینو او خلکوپه بابرېن کـــی دیوی ستری اودرندی غونډی په جوړولو سره دارتجاع او توطئه کونکو تورعملونه چـــی دافغانستان دخلکو کټو ضد، دډوریه شانه تلونکی انقلاب په خلاف یی عمل کاوه وغندل.

١ر٦ر٥٧

ددولتی مطابعو او نشراتی مؤسسو گوندی مسئولی کمیټی، ددولتی مطابعو دریـــاست اونشراتی مؤسسو کارگرانو، مامورینـــو ا و منسوبینو په گډون دهغه ریاست په انگړ کی زمونږ دخلکو او هیواد دښمنانو دوروستـــی توطئی دکشف کولوپه خاطرچه دافغـــانستان دخلکو دموکراتیك گـــوند او هیواد پالـــو داگاهانه او هوښیارانه اقداماتوله امله پـــه نطفه کی ناکام شویو ستر مارش وکړ .

١ر٦ر٥٧

دشبرغان دښارپه ختیزه برخه‌کی دجرقدق دگاز دکان اودسلفرو دبیلولو ددستگـــاه دکارگرانو او دکورنیو او بهرنیو مـــاهرانو دزروکورنیوله پاره داستوگنی کورونه جوړیږی چه دهغو دوه سوه کورونه به په راتلونکو څوارلسو میاشتو کی بشپړ او پاتی به یـــی وروسته په لنډ وخت کی جوړشی .

٧ر٦ر٥٧

د انقلابی شـــورا درئیس او صدراعظـــم نورمحمد تره‌کی دعادی جرمونو د نارینــه او ښځو بندیانو دجزا دبخښنی او تخفیف‌دفرمان نافذیدل ددریو نورو میاشتو له پاره منظـور کړل .

٧ر٦ر٥٧

داوبو اوبرېښنا وزیر پوهنوال محمد منصور هاشمی ددغه وزارت دیوشمیر کـــورنیو ا و بهرنیو متخصصینو وروستیو سیلاونو په اثـــر بند شوی ؤ مؤظفینوته لارښوونه وکړه .

٩ر٦ر٥٧

دنادری لوټماری کورنی او دهغی دظـــالمو پلویانو دمالونو نندارتون چی دډور دژغورونکی انقلاب له امله دافغانستان په خلکو پـــوری اړه پیداکړیده دصدراعظم مرستیال اودبهرنیو چارو وزیر حفیظ الله امین دکابل ننداری په څنگ‌کی پرانیست .

١١ر٦ر٥٧

دسنبلی نهمه دپښتونستان دملی ورځی زمونـــږ دپښتنو اوبلوڅو وروڼودغه تاریخی ورځ په‌کابل اودهیواد په ولایتونوکی په خاصو مراسمـــو سره ونمانځل شوه .

١٢ر٦ر٥٧

د انقلابی شـــورا رئیس او صدراعظـــم نورمحمد تره‌کی د١٣٥٧ کال دجوزا دمیاشتی

د۱۷ نیټې د ۱۱ لمبر فرمان له مخې او د اکوچنی نیکمرغه اختر د رارسیدو له امله دهیواد دمرکز او ولایاتو شپږسوه ځلویښت تنه نارینه او ښځینه بندیان له بند څخه خلاص شویدی .

۵۷ر۶ر۲۰

دلاجوردو او نورو قیمتي ډبرو دپلورلو کړکې دکانو او صنایعو وزیر دیپلوم انجنیر محمداسمعیل دانش له خوا په پښتونستان واټ کې پرانستل شوه .

۵۷ر۶ر۲۰

دبتون او حجاري فابریکې کارګرانو او منسوبینو ددرنو مراسمو په ترڅ کې دثور ماتې نه خوړونکي انقلاب ددښمنانو خائینانه توطئه وغندله .

۵۷ر۶ر۲۲

څرنګه چه زموږ ګران هیوادوال په ښه توګه خبردي دیحیی کورنۍ دخودخواهي ، زوراوقدرت په طرز اوسلوك له بیت المال څخه دافغانستان دشریفو خلکو دروا حقوقو اوفردي زرګونو ارزښتونو په مقابل کې دهیڅ ډ و ل اوټماري څخه سترګې نه دي پټې کړې او د دولت وارداتوته یې دتاوان رسولو څخه هم ډډه نده کړې .

زموږ خلقي دولت چې دهیواد دربړیدلو خلکو په اراده یې داستعمارګرۍ طبقي‌سیاسي حاکمیت پای ته رسولی او دګران افغانستان دنجیبو خلکو دپرمختګ اوګټې په لورپراخه ګامونه اوچتوي دثوردستر انقلاب دلوړوهدفونو دلاس ته راولو دپاره یې دهیواد دخائنانو توري پردې څیرې کړې او دهغوی په نقا ب پټې څیرې ښکاره کوې چې دادي دنادر دغه دختیځ بې‌نظیره عوام‌غولوونکې دځپلوانونومونه چې تراوسه پورې یې دځپلو شخصي کورونو دځنبلو اوبو دامتیازله پرته لاس ته راوړې وې اودهغو محصول یې ددولت په حساب نــــدی تحویل کړې نوم یې دادي :

۱ـ دشاه محمود ددوه کورونودنل داوبو محصول ټول (۲۲۷۶۶۶ر۰۰) افغانۍ .

۲ـ دمحمد داود دکور دنل داوبو محصول ټول (۱۶۸۶۶۸ر۰۰) افغانۍ .

۳ـ دمحمد نعیم دکور دنل داوبو محصول ټول (۱۶۸۶۶۸ر۰۰) افغانۍ .

٤ـ دغلام محمد شیرزاد دکوردنل داوبـو محصول ټول (۱۶۸۶۶۸ر۰۰) افغانۍ .

۵ـ دتیمورشاه ددوه کورونو دنل داوبـو محصول ټول (۱۸۷۲٤٤ر۰۰) افغانۍ .

٦ـ دشاه ولي دکوردنل داوبو محصول‌ټول (۱۲۸۲٤٦ر۰۰) افغانۍ .

۷ـ دعبدالولي دکوردنل داوبومحصول ټول (۵۸۹٦۸ر۰۰) افغانۍ .

۸ـ سلطنتي ارګ د(خلکوکور) دنل داوبو محصول ټول (۵۸۹۹۸ر۰۰) افغانۍ .

په مجموعي توګه دغو دامپریالـــیزم او کوډاګیانو او ارتجاعي عناصرو (۲۰۵٦۲٤) افغانۍ عامه شتمنۍ زیاتمنه کړې وه .

* دچاپ، خپروني اواطلاعاتو پر وسایلـو باندې ددولت دمستقیمي څارنې داصل له مخې دهما، وارسته، پښتني، سبا، شعاع، آریانا ، بهزاد مطبعي او دچاپ څونوري کــوچنـــي دستګاوې ملي شوې .

۵۷،۶،۲۴

دافغانستان ددموکراتیك جمهوری دولـت دمالیی وزارت دوزارت د مرکز، بانکونو او تصـد یـو د کـا ر کـو و نکـو په ویاړ چی د نادری کو ر نی او په هغی پوری دتړلو مرتجعینو د ملـی شویو مالونوپـه نندارتون کی په انقلابی روحیه وظیفه سرته رسوی دکابل ننداری په تالارکی یوه ستره غونډه جوړه شوه .

۵۷،۶،۲۸

دافغانستان دخلکو دوسله وال پوځ دطبی علو مو داکاډمی علمی اوعملی لومړی جرگه دعامی رغتیا دوزیر داکتر شاولی لخـــوا دافغانستان دخلکو ددموکراتیـك گـوند د عمومی منشی ددمو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورا درئیس اوصدراعظم نورمحمدتره کـــی دپیغام په لوستلو سره دهغی اکاډمی پـــه تالارکی دمراسمو په ترڅ کی پرا نستـل شوه .

۵۷،۶،۲۸

دکانی ډبرود لابراتوار ونو دمر کـــز دبنسټ ډبره دکانو او صنایعو وزیر دیپلـوم انجنیر محمد اسما عیل دانش لخوا دآهو بوتیا نو دفابریکی تر څنگ دمراسمو پـه ترڅ کی کیښو دله شوه .

۵۷،۶،۲۹

دسوب پهنامه دبلو څی جریدی دلومړی خپرو نی لهامله دکابل دننداری پـــــه تالارکی یوه پرتمینـه هنری غونډه شوی وه

۵۷،۶،۳۱

دښوونی اوروزنی په سکتورکی دافغانستان ددموکراتیك جمهوری دولت دانقلابی وظیفو داساسی کرښوله مخی دننگر هار ولا یت دچپر هار دعلاقه داری دشو لانی دکلـــی دنجونو او دکنډی باغ دکلی دهلکا نـــو لومړ نی ښو نځی یوپه بل پسی پرانیستل شول .

* دپلخرخی د صناعتی سیمی د فابریکـو د کارگرانو اتحاد په دکانو اوصنا یعــو وزارت دصنا یعو معین دیپلوم انجنیرمحمد غلام رحیمی دیوی غونډی په ترڅ کښی پرانستله .

۵۷،۷،۲

دولایتو نو دښوونی اوروزنی دمدیر انـو سیمینار دښوونی اوروزنی دوزیر پو هندوی ډاکتر عبدالرشیـد جلیلـی له خوا د یـوی وینا په کولو سره پرانستل شو .

۵۷،۷،۳

دبنایی ساختما نی دستگاه د اداریو دانی دبنسټ ډبره دمراسمو په تـرڅ کی دفواید عامی وزیر دستگیر پنجشیری له خـــوا دهغی دستگاه په انگړکی کیښودل شوه .

* دچهلستون د روغتیـا یی اوبـو پروژه دشانداره مراسمو په ترڅ کـی دعامـی روغتیا دوزارت معین داکتر اسدالله امین‌له خوا پرانستل شوه اودهغی سیمی دخلکـو

داستفادی وړو ګر ځیده .

۵ر۷ر۵۷

دسوخته بخشی دویالی دسر بند دبنسټ

ډبره دکابل والی ډاکتر سها ك له‌خواد کابل دسید په تګلوری کی دهود خیلـــو په کلی کی کیښودل شوه .

۶ر۷ر۵۷

دمستحقـو ماموریـنو لپـاره د ارزان بیـــه کورونو د سملاسی پـروژی دبنسټ ډبـــره دمراسمو په ترڅ کی دفواید عامی دوزیر دستګیر پنجشیری لخوا په خیر خانه مینه کی کیښودل شوه .

۶ر۷ر۵۷

دزرهدار دپنځلسم لمبر قوا ؤ منصبداران، طلاب او افراد دیغمان ددوه لاری په کمپ کی دیوی غونډی په ترڅ کی لکـــه دببرك کارمل ، قادر ،شاهپور ، میر علی- اکبر اودهغوی دمر تجع انډ یوالان دتوری ارتجاع نو ګرانو او خا ینا نو دسیسـه محکو مه کړه .

۸ر۷ر۵۷

دقضایی ستاژ کورس دمراسمو په تر څ کی عدلیه وزیر اولوی څار نوال عبدالحکیم شر عی جوز جانی دهغه وزارت په سا لون کښی پرانیست .

۱۰ر۷ر۵۷

دخلکو دستر لاربښود زموږدپیاوړی ښوونکی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دپیغام په لوستلو سره دساینس دښوونو اوملی پرمختیا سیمه ایز سیمینار دمراسمو په ترڅ کی په کابل کی پرانیستل شو .

۱۴ر۷ر۵۷

دبغلان دنوی ښار داوبورسولو شبکو دنـل دغزولو دلومړی پړاوکاردفواید عامـــی وزارت داوبو رسولو تصدی له خوا دیوی غونډی پـه ترڅ کی پیل شو .

۱۵ر۷ر۵۷

دخیرخانی مینی دیوی برخی داوسنی‌شبکی دځښلو داوبو دزیاتوالی پروژه دمراسمو پـــه ترڅ‌کی دفواید عامی وزیر دستګیر پنجشیری پرانستله .

* په هیوادکی دښوونی او روزنی دپراختیا اوپراخوالی په سکتور کښی د افغـــانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی‌وظیفو داساسی کرښو له مخی دننګرهار ولایت دسره ر و د ولسوالی دبالاباغ دکلی منځنی ښوونځی‌لیسی ته لوړه شوی او دمراسمو په ترڅ کی دهغه ځای ولسوال پرانستله .

۱۸ر۷ر۵۷

دغلام محمد میمنګـــــی د هنری سازمان دزده‌کوونکو دکار محصول د«هنرمند اوانقلاب نندارتون» په نامه داطلاعاتو او کلتور وزارت دکلتوری او هنری معین له خوا دهغه‌سازمان په انګړکی پرانستل شو .

* دهیواد هنرمندانو داتحادیی د نمایندګانو شورا غړی دراډیو افغانستان په تالارکی‌دستری غونډی په ترڅ‌کی وټاکل شوه .

۲۰ر۷ر۵۷

دافغانستان دخلکو انقلابی مشر او ستـــر ښوونکی دوطن ربښتینی بچی دافغانستان‌دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نور محمد۔ تره‌کی دنادری لوټماری کورنی اوپه هغی‌پوری دتړلو ستمگرو دمالونو نندارتون چه دثـــور دپرتمین انقلاب دبری له امله یی دافغانستان په نجیبو خلکو اړه پیداکړی ده وکوت .

* دافغانستان ددموکـــراتیك جمهوریـــت دانقلابی وظیفو داساسی کرښوله مخی‌دماشوم روغتیاموسسی ترڅنگ دشیدوخوړلو لومــړی مرکز دعامی روغتیاوزارت د معین ډاکتـــر اسدالله امین له خوا پرانستل شو .

۲٤ر۷ر۵۷

دافغانستان خلکو دستر لارښود دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټـی عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم اودافغانی سری میاشتی دټولنـی دلارښـــود دنورمحمد تره‌کی په پیغام سره د ۱۳۵۷کال دتلی په ۲٤ دسری میاشتی دمخصوصی‌میاشتی نمانځل پیل کیږی .

۲٦ر۷ر۵۷

اووم لمبرفرمان دافغانستان ددموکراتیـــك جمهوریت دانقلابی وظیفو داساسی کـــرښو ددولسمی مادی دتطبیق په غرض دمدنی‌حقوقو په برخه‌کی له نارینه سره دښځی دحقوقـــو دبرابرتیا دتامین او دښځی اومیړه ترمنــځ دپلارواکی فیوډالی‌غیرعادلانه مناسباتودله منځه وړلوپه غرض اودکورنیو دډیرو زیاتوښـــــو اړیکو دټینگښت په خاطر صادر شو .

۲۷ر۷ر۵۷

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت ســـور بیرغ چه زمونږ دخلکو دانقلابی اندیښنـــــو ښکارندوی، دافغانستان دخلکو ددموکراتیـــك دویاړځخه ډك گوند دانقلابی کار اومبارزی سمبول دی دمیزان په اوو‌ویشتمه سهار پـــه نهوبجو دخلکو دستر لارښـــود او دهیـواد دربښتینی بچی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کـــی په لاس دانقلابی شورا وزوږ او خوښیودانگازو په موج کی په پرله پسی لاسونو پړقولو دهورا په ویلو اوزمونږ دنجیبو خلکـــو دانقلابی شعارونو په ورکولو دخلکوپه کورکښی پورته شو .

۲ر۸ر۵۷

دگوراش په نامه دترکمنی جریدی لومړی گڼه له چاپه راووته دگوراش په نامه دجریدی لومړی گڼه دستر مشر او دافغانستان دخلکو دستر ښوونکی دافغانستان دخلکوددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کـی په عکس او داطلاعاتو او کلتور وزیر بارق۔ شفیعی په پیغام سره له چاپه راووته .

۳ر۸ر۵۷

دافغانستان دخلقی دولت ددیارلس سوه اوه پنځوسم کال دجوزا دمیاشتی داوولسمی نیټی دیوسلواوولسمه لمبر فرمان دتطبیق په لړکی زمونږدستر لارښوددافغانستان‌دخلکوددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلابی

شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کــی دهدایت سره سم اوهمدارنگه‌ه ملی عنعناتوته داحترام په رڼاکی چه ښځو اوماشومانوته په درنده سترګه لیدل کیږی دیحیی دغداری او لوټماری کورنی ښځی اوماشومان چه دثور د پرتمین انقلاب دګټو دپه نظرکی نیولو سره دانقلاب په بختوره ورځ بندیان شوی وو له بندځخه خلاص اوورته اجازه ورکړای شــوه هرچیری چه غواړی ځانته ژوند غوره کاندی .

* دعقرب ددریمی‌نیټی دشهیدانودخاطری‌یادولو له امله دهیواد په مرکز اوولایتونوکی غونډی وشوی .

۵۷ر۸ر٤

دبنګ مسافری انقلابی اثرچی دافغــانستان دقهرمان زوی ستر لیکوال دانقلابی شورارئیس اوصدراعظم نورمحمدتره‌کی ادبی شهکار دی دافغانستان دعلومو اکاډمی له خوا دادی پــه ښکلی صحافت اوپه زره پوری قطع په ۱۵۰ مخونو کی چاپ اوخپور شو .

په دغه انقلابی اثرباندی دصدراعظم‌مرستیال اودباندنیو چارو وزیر حفیظ الله امین یــوه جامع سریزه لیکلی ده .

۵۷ر۸ر۸

دحیاتی احصائیی اودنفوس داحوال دثبــت سیمینار دهیواد دنفوس داحوال دثبت‌دمدیرانو اودځینو وزارتونو اوعلاقی وړموسسو داستازیو په ګډون دکورنیو چارو وزیراسلم وطنجارپه ویناسره دهغه وزارت په کتابتون کی‌پرانستل شو .

۵۷ر۸ر۱۳

دکورنیو چارو وزیر اسلم وطنجار د یوی غونډی په ترڅ‌کی دکابل ننداری په تالارکی دوزلوبی دبرخه‌والو‌قیمونودچاپ‌اندازانوسوغاتونه هغوی ته ورکړل .

۵۷ر۸ر۲۰

دانقلابی اوخلقی شعرونو اوترانو لومــړی غونډه داطلاعاتو او کلتور وزارت دهنردریاست له‌خوا داستقلال لیسی دفرهنګی مرکزپه تالار کی جوړه شوی وه .

۵۷ر۸ر۲٤

داطلاعاتو اوکلتور دوزیر بارق شفیعی‌لخوا دخلکو دستر لارښود دافغانستان دخلـــکو ددموکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلابی شورا درئیس اوصدراعظـــم نورمحمد تره‌کی دپیغام په لوستلو ســـره دکوشانی ځیړنو بین المللی سیمینارد‌مراسمو په ترڅ کی دراډیو افغانستان په لوی تـالار کی پرانیستل شو .

۵۷ر۸ر۲۹

زمونږ دستر مشر او انقــلابی لارښــود دافغانستان دخلکو ددموکراتیك ګوند مرکزی کمیټی دعمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دپیغام په لوستلو سره دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دلوړو ښوونو وزیر پوهاند محمود سوما له خوادجلال آباد په ښار کی دپرتمینو مراسمو په ترڅ‌کی دننګرهار پوهنتون پرانستل شو .

۵۷ر۸ر۲۹

زمونږ دستر او انقلابی لارښود افغانستان دخلکو ددموکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی د عمومی منشی‌دانقلابی شورادرئیس اوصدراعظم نورمحمد تره‌کی‌دپیغام‌په لوستوسره‌دافغانستان

ددموکراتیک جمهوریت دلوړ وښونو وزیـــر پوهاند محمود سوماله‌خوا دجلال‌آباد په‌ښارکی دیرتمینومراسمو په‌ترڅ‌کښی‌دننگرهار پوهنتون پرانیستل شو .

**۳۰ر۸ر۵۷**

زموږ انقلابی پوه مشردخلکو ددموکراتیک‌گوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی دکوشانی څیړ نودبین المللی سیمینار غړی دکتنی لپاره دخلکو په کورکی دمنل .

*دکوشانی څیړنوڼړیوال سیمینار چی‌دعقرب په ۲٤ نیټه په‌کال کی جوړ شوی‌ودعقرب په ۳۰ نیټه دسیمینار وبرخه‌والولخوا دپریکړه‌لیک په صادر ولو سره پای ته ورسیده .

**۱ر۹ر۵۷**

دنفوسو دسر شمیرنی دسمون جرگه‌گی دریمه غونډه‌دعامی روغتیا دوزیر اودپـــلان جوړولو دچارو دوزارت دکفیل اودنفوسو دسر شمیرنی دسمون دجرگه گی درئیس ډاکتر شاه ولی په مشری دپـــلان جوړ ولو دچارو دوزیر دکار په دفتر کی وشوه

**٤ر۹ر۵۷**

دعدلیه وزارت اولویی څارنوالی یو خبر ځای خبرورکړچی‌ددولت‌دانقلابی‌وظیفو داساسی کرښو سره سم دعدلی کدر ونو دنوی روزنی اوخلقی روزنی دپروگرام په لړکی دڅارنوالانو دوهـــم سیمینار دعدلیی وزارت په مرکزکی پرانیستل شو .

**۸ر۹ر۵۷**

داطلاعاتو او کلتوروزارت درادیو تلویزیون وزارت دیو ځای کیدوله امله درادیو افغانستان په تالار کی غونډه شوی وه .

*دانقلابی شورا اوومی گڼی فرمان دنمانځنی اودگذر گاه دنساجی دکارگر انو او منسوبینو دمرستی دصند وقونو دپرانستلو له امله دهغی نساجی په انگړکی یوه درنده غونډه شوی‌وه .

**۹ر۹ر۵۷**

دثـــور انقلاب ورځپانه دافغانستان د دموکراتیک جمهوریت‌نشراتی‌ارگان خپره‌شوه.

**۱۱ر۹ر۵۷**

په افغانستان کی دساینس او تکنالوژی سیمینار دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دملی سرود په خپرولو او دصدراعظـــم دمرستیال او دبهرنیوچارو وزیر حفیظ الله امین په وینا سره دکابـــل پوهنتون پـــه ادیتوریم کی پرانستل شو .

* په افغانستان کی دساینس اوتکنالوژی ملی سیمینار چی دلوړ و ښوونودوزارت له‌خوا دیونسکو په همکاری په کابل پوهنتون کی جوړ شوی وو دقوس دمیاشتی په دریارلسمه نیټه پای ته ورسیده .

**۱۸ر۹ر۵۷**

تیاکل شویده دغزنی ولایت دناوی ولسوالی په‌سور کلی‌کی دافغانستان دخلکو دگران مشر او ستر لاربښود دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دمرکزی‌کمیټی‌دعمومی‌منشی اودافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا درئیس

او صدراعظم نورمحمد تره‌کی پلرنی کور او اصلی ټاټوبی دیو تاریخی ویاړلی آثار دموزیم په توګه داطلاعاتو او کلتور وزارت له خوا خوندی اووساتل شی .

۲۲- ۹-۵۷

دسوپر کاستر دستګاه د دولتی مطابعود لوی رئیس ته خوا دمخصوصی تنی په‌دهلو سره دهغه ریاست د مونو تایپ په څانګه‌کی پرانستیل شوه او پکار واچوله شوه.

۲۱-۹-۵۷

دښوونی او روزنی د وزارت د ودانی دمرکز ګرمی‌شوی او پدی وروستیو وختونوکی د ګرمی شوی او پدی وروستیو وختونوکی د ښوونی او روزنی د وزیر پوهنوال ډاکتـــر عبدالرشید جلیلی له خواپرانیستل‌شواو په‌کار واچول شو.

*دهیواد دولایات د مستوفیاتو سیمینار د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت د ملـــی سرود په خپرولو او دمالیی وزیر عبدالکریم میثاق په وینا سره د مالیی په وزارت کـــی پرانیستل شو .

۲۱-۹-۵۷

دافغانستان د خلکو دموکراتیک ګونـــدد مرکزی کمیټی د سیاسی بورو دفیصلی له‌مخی دشینوار و دلوی ولسوالی‌په‌مرکز غنی خېلوکی له‌انقلاب نه ددفاع کمیټه دیوی‌درنی غونډی په‌ترخ کی دهغه ځای دلویی ولسوالـــی او عسکری قوماندان له خوا پرانستل شوه .

۲۲- ۹-۵۷

دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دخلقـــی معارف د پرمختیا او په هیواد کی‌د ښوونی‌او روزنی دسیستم تدریس سیمینار د یوی‌ستری ټولنی په ترخ کی دکابل ننداری په‌تالارکـی دصدراعظم دمرستیال او دبهرنیو چارو دوزیر حفیظ الله‌امین په وینا سره پرانستل شو.

۲۵- ۹-۵۷

زموږ انقلابی او ګران مشر دافغانستان دخلکود دموکراتیک‌ګوند دموکزی کمیټی عمومی منشی د انقلابی شورا رئیس اوصدراعظـــم نورمحمدتره‌کی دهیواد دولایاتو مستوفـــیان دخلکو په کور کی ومنل او له هغوی سره‌یی خبری وکړی .

*دپرتونیت نری رنځ ناروغیودتداوی دنویو لارو چارو په باره کی د اکادمی د روغتـــون دخوانو ډاکتر انو د تجربو محصول لومړنـــی کلینیکی جرګه دطبی علوموداکاډمی دقوماندانی په‌تالار کی پرانستله شوه .

* دښوونی او روزنی وزیر پوهنوال دکتور عبدالرشید جلیلی دهغه وزارت په کلوپ‌کی دهیواددولایاتو دښوونی‌او روزنی‌له مدیرانو

اودبیسوادی سره مبارزی له مدیرانو سره وکتل او دپوهنی داداری او تدریسی ستونز واو دهغو دحل د لاروچار وپه باب یی بحث او خبری وکړی.

* دافغانستان دخلکو د دموکراتیک ګوند د مرکزی کمیټی دسیاسی بورو پریکړی له مخی له انقلاب څخه ددفاع کمیټه په مکروریانو کــــی دیوی پرتیمنی غونډی په ترڅ کی له انقلاب څخه ددفاع دښاری کمیټی د تبلیغاتو د منشی او استازی او دعامی روغتیا د وزارت معین ډاکتر اسد الله امین له خوا پرانستله شوه او په کاریی پیل وکړ.

۲۷-۹-۵۷

دکابل دصنعتی پارکونو دولتی مطبعه د اطلاعاتو او کلتور د وزارت دمعین عبدالقیوم نورزی لخوا د کابل په صنعتی سیمه کــــه پرانستله شوه .

۲۸-۹-۵۷

دکابل په دولتی مطبعه کی د آفسیټ یو نوی ماشین در ول شوی او ددولتی مطبعو د لوی رئیس محمد عیان (عیان) له خوا دتنی په وهلو سره په کار واچول شو .

۳۰-۹-۵۷

دخلکو دګران بچی دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دلار شوونی له مخی دعظمی صدرات دپیښوضدتیاری ریاست دهیواد د ورستیو سیلاونو دمصیبت ځپلو سره مرستی په غرض پدی وروستیو ورځوکی دلوګر په ۱٤۷۹۵ تنوتا وانی شوپو خلکو باندی ټولی دره میلونه اداته پنځوس زره نقدی پیسی څه دپاسه ٤٥٨ ټنه غ م ٦٨٦ شړی او ٦٨٦ جوړی کوښی ویشلی دی.

دافغانستان د قهرمان زوی او سترلیکوال دانقلابی شورا د رئیس او صدراعظـــــم نورمحمدتره کی دوهم ادبی شهکار د(څړه) تر عنوان لاندی خپور شو .

۲-۱۰-۵۷

دافغانستان جمهوریت د انقلابی شوراداتمی ګنی دفرمان اودافغانستاند خلکو د دموکراتیک ګوند دمرکزی کمیټی پلینوم دتاریخی پریکړی دهرکلی له امله دافغانستان د ښځو د خلقی سازمان له خوا دهغه سازمان په تالارکی یوه پرتمینه غونډه جوړه شوی وه .

۳-۱۰-۵۷

دانسان دری اسکلیټونه چی دسروز روبه ګانه ښکلی دی دشبرغان دښار دشمال ختیځ په پنځه کیلومتری کی په طلاتپه کی دافغانی اوشوروی اتحاد دلرغون پوهنی دیوه ګډهیات دکیندلو او څیړ نوله امله تر لاسه شوی دی.

*دصدراعظم مرستیال او دبهرنیو چـــارو وزیر حفیظ الله امین دهغه وزارت دستوری په مانی کی په داسی حال چی دکرنی اوځمکی د اصلاحاتو وزیر ډاکتر صالح محمد زیری هـــم حاضر وود ځمکی داصلاحاتو د عملیاتی پلان آمران مخکی له دی چی دخپلو وظیفو په لوړروان شی دکتنی دپاره ومنل .

* دپکتیا ولایت دخوست د لویی ولسوالی د ۲۵ فرقی دپنځه سوه کورنیو او سینمـــــا جمنازیوم د پروژی کار دخاصو مراسمو پـــه

ترخ کې د دفاع وزارت دتعمیراتو د ریاست دلومړۍ لمبر ساختماني آمریت له‌خوا پیل شو.

٤-١٠-٥٧

دهیواد دوګړو دلومړۍ‌بشپړې‌د سرشمیرنې دهد فونړد خرګند ولو په مقصد د بغلان ولایت دمرکزي احصائیې دآمریت له خوا د دوشي ولسوالي په مرکز کـې یوسیمینار جـوړ شو.

٦-١٠-٥٧

د (فرهنګ خلق) مجلې لومړۍ ګڼه چې زموږ دستر مشرپه عکس ښکلې کړې شوې خپره او وویشل شوه.

٩-١٠-٥٧

دنورم او ستندرددعلمي پروګرام دطرحې په‌باب یو سیمینار دکانو او صنایعو دوزیر دیپلوم انجنیر محمد اسماعیل دانش له‌خوا دهغه وزارت په ودانۍ کې برانستل شو.

* دافغانستان دخلکو د دموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې سیاسي بورو د پریکړې له مخې دپروان ولایت دپنجشیرپه ولسوالي‌که دانقلاب څخه ددفاع کمیټه د ولایتي کمیټې‌د دغړي له خوا پرانستل شوه.

١١- ١٠ -٥٧

زموږ دهیواد دستر او اتل لارښود،د مرکزي کمیټې د عمومي منشي او دافغانستان دخلکو د دموکراتیک‌ګوند(په هیواد کې‌دکار-ګري طبقې مخکښ ) مؤسس ،انقلابي شورا درئیس اوصدراعظم نورمحمدتره‌کي ،په‌ویناسره چې دافغانستان د خلکو دراډ یوتلویزن له لارې وکړه دافغانستان د خلکو دموکراتیک ویاړلي ګوند دلومړي کنګـرې څوار لسمه کالیزه په ټول هیوادکې په بې‌ساري درنده‌او پرتمینه توګه ونمانځله شوه.

* دافغانستان‌دخلکوددموکراتیک ګوند(دهیواد دکارګرې طبقې مخکښ) دلومړي کنګرې د څوار لسمې کالیزې په ویاړ او دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابي‌وظیفو داساسي کرښو په پیروي په‌بهرکې دافغاني ځوانانو روشنفکرانو او وطـوالودسیاسي شعور دودې اومعلوماتو په مقصد (افغاني محصلان) تـر عنوان لاندې خپروني لومړۍ ګڼه چې دخلکو دستر ښوونکي دافغانستان‌دخلکود دموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې دعمومي منشي دانقلابي شورا درئیس او صدراعظم په عکس ښکلې شوې دلوړ وښوونو دوزارت دتالیف اوترجمې دریاست له خواد هغه وزارت په مطبعه‌کـې چاپ اوخپره شوه

١٤-١٠-٥٧

زموږ دانقلابي ستر مشر، دانقلابي شورا د رئیس او صدراعظم نورمحمدتره‌کي پـه لارښوونه زموږ دخه دپاسه‌سلو تنو وطنوالو ناوړ وژلو اومړینې‌پیښنه چې دکوز علاوالدین اودزمانخان دکلاپه ته کاو یوکې په‌وحشیانه توګه دعقلي او عصبي نارو غانو په نامه‌په شکنجې او خورورنکوعملو نوسره. نیم‌ژوندای ښخ شوي وو، دخارنوالي د اداري له خوا بیاتر غور لاندې نیول شوي دي.

*دسمنگانو ولایت دمرکزایبکو ښار داوبو دبرښنا دپروژه دجوړولو د مراسمو په‌ترځ کی داوبو او برښنا دوزارت‌معین‌له‌خوا پرانیستل شو .

**۱۵–۱۰–۵۷**

دځمکو داصلاحاتو دعملیاتو هیات دغونډی به‌ترځ کی دلغمان ولایت‌دالینګار په‌ولسوالی کی‌په کار پیل وکړ .

**۱۶–۱۰–۵۷**

دافغانستان دخلکو د دموکراتیک ویاړلی گوند (دهیواد دکارگری طبقی‌مخکښ) دلوړی کنگری دخوارلسمی کالیزی په ویاړ او د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت دانقلابی وظیفو داساسی کړ ښوله‌مخی‌داطلاعاتواوکلتور وزارت مامور ینو او منسوبینو د هغه وزارت‌په مربوطاطو کی د بی سوادی پر ضد جهاد اعلام کړ .

* دننگرهار ولایت دسره رود ولسوالـی دکوز سلطانپور د کلی دنجونو دلومړنـــــی ښوونځی دودانی دبنسټ تیږه دمراسمو پـه ترځ کی دهغه ځای ولسوال کیښود له .

*دافغانستان د دموکراتیک جمهوری دولت دانقلابی وظیفوداساسی کرښوله مخی دانجیل دولسوالی په‌مربوطو کلیوکی دلیک لوست زده‌کولو اتلس کور سونه پرانیستل شول.

**۱۷–۱۰–۵۷**

دکرنی او ځمکو اصلاحاتودوزارت دځمکو داصلاحاتو دعملیاتو ډلو دمراسمو په ترځ کی‌دننگرهار په ولایت کی په کار پیل‌وکړ.

**۱۸–۱۰–۵۷**

دافغانستان د دموکراتیک جمهوریت د انقلابی شورا او ومی اواتمی گنی فرمانونو دلمانځنی له امله دلوړ و ښوونو د وزارت دمنسوبینو له خوادکابل ښاردوولسمی گوندی ناحیی په همکاری دهغه وزارت په تالارکی درنده غونډه شوی وه .

**۲۱ر۱۰ر۵۷**

دافغانستان دخلکو دسترښوونکی او گران مشر، دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی ، دانقلابـــی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره‌کی په پیغام سره ، دماشوم دبین المللی کال نمانځنه په ټول هیواد کی پیل شوه .

**۲۱ر۱۰ر۵۷**

دایوبی دمیزو پاکولو فابریکه دمراسموپه ترځ کی دمالیی دوزارت دمعین اودصناعتی پرمختیا بانـــک دسرپرست له خوا دکابل په صناعتی سیمی کی دځانگړی تکمی په و هلو سره کارو اچول شوه .

**۲۳ر۱۰ر۵۷**

دافغانستان ددموکراتیک‌جمهوریت دانقلابی شورا داتمی گنی فرمان له مخی دلغمـــان ولایت دقرغیو په ولسوالی کی پنځلس‌تنو‌ته ځمکه پنځلسو مستحقو کورنیو ته وویشل شوه .

*دځمکو ددموکرتیکو اصلاحاتو دپروگرام له‌مخی دفراه ولایت په مرکز او مربوطاتوکی

دری سوه‌او دری دیرش تو‌ټې ځمکه‌په مستحقینو ویشله شویده .

* دځمکو دموکراتیکو اصلاحاتو دپروګرام دتطبیق په لړکې دفراه ولایت دانار دری‌او بکواپه ولسوالیوکې د لومړی‌درجې معادل پنځه جریبه یو سل شل‌تو‌ټې ځمکه‌دمراسمو په‌ترځ کې مستحقو کسانوته و ویشل شوه.

**۲۴ــ۱۰ــ۵۷**

دافغانستان ددموکراتیك جمهوری دولت د انقلابې وظیفو د اساسې کرښو له مخــې سمنګانو کندز ، پکتیا او بلخ د ولایتــو مربوطاتوکې دلیك لوست پنځوس کورسونه پرانستل شول .

**۲۵ــ۱۰ــ۵۷**

دانقلاب ددفاع کمیټه دغونډې په ترځ کې‌د ولایتې کمیټې د منشې او دجوزجان دوالی‌له خوا دآقچې په ولسوالې کې پرانستله شوه.

**۲۶ــ۱۰ــ۵۷**

بې ځکمې بزګر انوته د ځمکې د ویش‌په لومړی پړاوکې دهرات‌ولایت مربوطوولسوالو په‌مرکز ونو کې څه‌دپاسه‌اوولس زره جریبه ځمکه دسلګونو زرو کسانو داحساساتو پــه شپوکې یوزرو شلورسوه‌اته پنځوس مستحقو کورنیوته دپرتمینو مراسمو په تر ځ کــې وویشله شوه .

**۲۸ــ۱۰ــ ۵۷**

دخصوصې بانګی‌اچولو د هڅونې په برخه کې‌دافغانستان ددموکراتیك جمهوری دولت‌د انقلابې وظیفو داساسې کرښو له‌مخې‌دپانګې اچولو عالی کمیټې‌په‌بیلابیلو تولیدی برخوکې د(۴۷۸۵۳۳۵۲۵) افغانیو په ټوله پانګه اته‌ویشت‌منځنی او کوچنی پروژې منظــوری کړې.

* دنیمروز په ولایت‌کې دځمکو داصلاحاتو دعملیاتې پروګرام په تطبیق سره‌چې‌په‌دوو راتلونکو میاشتو کې به پای ته‌ور سیږی‌دهغه ځای دبې ځمکواو لږ ځمکو بزګرانو څوارلس زره‌کورنې اونوروولایتونو دیرش زره‌مستحقې کور نې دنیمروز په‌ولایت کې د ځمکوخاوندان کیږی .

**۲۹ــ۱۰ــ۵۷**

دچاریکار و دښار دلومړی ګونډی ناحیې دکمیټې دفتر درندې غونډی په ترځ کې‌چې دپروان داو بواو بریښنا دودانې په انګړکې جوړه شوی‌وه .داوبواوبریښنا وزیر پوهنوال محمد منصور هاشمې د افغانستان د خلکود دموکراتیك زنځیر ماتوونکې ګونډ په‌نامتونوم اودافغانستان دخلکو د ګران ،اوویاړلی‌مشر دافغانستان د خلکوددموکراتیك‌ګونډ دمرکزی کمیټې دعمومې منشې ، دانقلابې شورا د رئیس او صدراعظم نورمحمدتره‌کې دروغتیاپه هلیه دپټې په پری کولو سره پرانیستل شو.

**۳۰ــ۱۰ــ۵۷**

دخلکو د ګران یوه مشر او ستر لارښود دافغانستان دخلکوددموکراتیك ګونډ دمرکزی کمیټې د عمومې منشې د انقلابې شورارئیس اوصدراعظم نورمحمدتره‌کې په بشر دوستانه ارادې، او انقلابې لار ښوونې سره پــه علاوالدین او د زمان خان کلاکې په اصطلاح

په‌روحی هوسا ځایونو کی چی په حقیقت کی
دداودی رژیم دوژلو پټ ځایونه وو. زموږ په
لس گونوبی گناه هیواد والو د ناوړه قتلو
دردونکی پیښی بیا څیړل او تحقیق دځارندوی
داستازی په گډون دڅارنوالی دعالی اداری
دڅیړنی د هیات له خوا پیل شوی دی .

**۳۰ر۱۰ر۵۷**

*دافغانستان دخلکو دد موکراتیک گوند دمرکزی
کمیټی دسیاسی بیورو د پریکړی له مخی د کوهستان
دنواباد په کلی کی دیوی غونډی په ترڅ کی
دانقلاب ددفاع کمیټه دکاپیسا ولوی ولسوال
اودولایتی کمیټی غړی له خوا پرانستل شوه.

*په افغانستان کی دلوړی سویی ملی ورکشاپ
دلوړو و ښوونو دوزارت دمعین انجنیر پیرمحمد
زیری له خوا دهغه وزارت دکنفرانسونو په
تالار کی پرانستل شو .

*هغه ارزښناک او قیمت لرونکی تاریخی
آثار چی دشبرغان دښار دشمال ختیځ په پنځه
کیلو متری کی له طلاتپی څخه لاس ته راغلی
او څه ناڅه دوه زره کاله تاریخی لرغونتوب لری
دافغانستان ملی موزیم ته وسپارل شول .

**۱ر۱۱ر۵۷**

دعدلیی وزارت او لویی څارنوالی یوخبر
ځای خبر را کړچی په برعلا الدین اودزمانخان
په کلاکی دتش په‌نامه روحی هوساځایونو د
وزنی دڅیړنی د کمیټی پلټنی له امله اوس
اوس دمستبد داود دزمامداری دوخت دوحشیانه
وژنو دځه پاسه اووتنووژل شویو کسانو سرونه
اودمړونښه نښانی کشف شوی دی .

* دافغانستان دخلکو دد موکراتیک گوند
دمرکزی کمیټی دسیاسی بیورود فیصلی له مخی
دانقلاب ددفاع کمیټه دستری غونډی په
په ترڅ کی دننگرهار ولایت مربوط درود اتو
په ولسوالی کی دولایتی کمیټی دمنشی او
دننگر هار دناوی دپر مختیا دپروژی دلوی
رئیس له‌خوا پرانستل شوه .

**۳ر۱۱ر۵۷**

دکرنی او ځمکو داصلاحاتو دوزارت دکرنی درواجولو
او پرمختیا دلوی ریاست دمستخدمینو اوا جیرانو
دلیك لوست دزده کولو کورس پرانستل شو.

**۴ر۱۱ر۵۷**

دصدراعظم مرستیال اودبهرنیو چارو وزیر
حفیظ‌الله امین په بگرام کی دیو سلودوه‌و
کورنیو داوسیدو کورونه اودپترولود زیرمی
ټانـــك دپټیو په پری کولو سره پرانستل.

**۵ر۱۱ر۵۷**

دثور دستر انقلاب دلومړ نی کا لیزی
دنمانځنی دمراسمو دسمون کمیټی دعدلیی وزیر
او لوی څارنوال عبدالحکیم شرعی جوزجانی
په مشری دخلکو درادیو تلویزیون پـــه
سالون کی غونډه وکړه اوددغی تاریخی کالیزی
په مراسمو پوری مربوطی مثلی یی په‌پراخه
توگه ترڅیړنی لاندی ونیولی او لازم تصمیمونه
ییی ونیول .

**۶ر۱۱ر۵۷**

دسپین زر شرکت دکار گرانو اتحادیه‌ددغه
شرکت دنمایندگیو دیوزرو پنځه سوه خلورا تیا
کارگرانو په گډون دکندز ولایت په مرکـــز

او ولسواليو کې ديوې غونډۍ په ترڅ کـــې
پرانستل شوه .

**۵۷ر۱۱ر۷**

دخلقي او مترقي ښوونې اوروزنې ديوه سيستم
دجوړولو اود لومړيو ټو لګيو دنو يو درسي
کتابو نو دلست دپروګرام دتطبيق دپاره دلومړ
يو ټولګيود ښوونکودبيا روزنې پـــه مقصد
دثانوي تخنيک په اديتوريـــــم کې يوسيمينار
جوړ شو .

**۵۷ر۱۱ر۹**

دوزير اکبرخان روغتون خلقي کتابتون دعامې
روغتيادوزارت دمعين داکتر اسد الله امين
له خوا دسرې پټۍ په پرې کولوسره دمراسمو
په ترڅ کې پرانستل شو .

**۵۷ر۱۱ر۱۰**

دافغانستان دخلکو پياوړې ښوونکې دخلکو
په کورکې دکابل دښار ماسترپلان وکتل.

**۵۷ر۱۱ر۱۴**

دفوايد عامې وزير دستګير پنجشيرې دافشار
داو بورسولو دسترې پروژې دجوړ ولو کار
دافغانستان دخلکو ددموکراتيک ګوند دهغـه
دستر لارښود او ښوونکې ، دافغانستان دخلکو
ددموکراتيک ګوند دمرکزي کميټې دعمومي منشي
دانقلابي شورا درئيس او صدراعظم نورمحمد
تره کي په وياړلي نوم پرانست .

**۵۷ر۱۱ر۱۶**

دکندهار دسپينسيو ټوګرانو او بد لـــو
دفابريکې دکار ګرانو ديوسلو پنځوسو کورونو
دپروژې وبنسټ ډبره دولايتي کميټې دمنشي
او دکندهار دوالي انجنير ظريف له خوادهغه
ولايت دسپنسين او بدلو دفابريکې په څنګ
کې دمراسمو په ترڅ کې کيښودله شوه .

**۵۷ر۱۱ر۱۹**

زموږ دګران او انقلابي مشر دانقلابي شورا
درئيس او صدراعظم نورمحمد تره کي پـــه
لارښوونه او دښوونې او روزنې دوزارت په
تصويب يو شمير دوسيې چې دتيرو مستبدو
رژيمونو په دوران کې يوشمير خلقي او
وطنپالو ښوونکوته جوړې شوې وې دکلای نودښار
دشريفو خلکو ديوې سترې ټولنې په مخکې
دولايتي کميټې دمنشي اودبادغيس دوالي له
خوا وسو ځول شوې .

**۵۷ر۱۱ر۲۱**

داسلام دستر پيغمبر حضرت رسول اکرم،
محمد مصطفی (ص) نيکمرغې ميلاد په ټول هيواد
کې به ستر وټولنوکې دافغانستان دمليونونو
زيار کښو او مسلمانو خلکو له خوا ونمانځل
شو .

**۵۷ر۱۱ر۲۲**

دحضرت سرورکا ئينات (ص) دنيکمر غـه
ميلاده امله اوډثور دستر انقلاب دنيکـــو
هدفونو له مخې ، دخلکو ستر مشراوپياوړې
لار ښود ،دافغانستان دخلکو ددمو کراتيـک
ګوند دمرکزی کميټې عمومي منشي دانقلابي
شورارئيس اوصدراعظم نورمحمدتره کــــې
دهيواد دمرکز او ولاياتو ددوه سوه يـــو
ويشتو نارينه او ښځينه بنديانو بند پا تې
موده ښښلې ده .

**۲۵ر۱۱ر۵۷**

په خواشینی او تاسف سره مو خبـــر اخیستی دی چی په کابل کی دامر یکـــا دمتحده ه ایالاتو لوی سفیر جلا لتماب ادولف دبزد څو تنو ترور یستا نو او دافغانستان دخلکو ددښمنانو دزړو له امله ووزل شو ۰

**۲۹ر۱۱ر ۵۷**

دبگرامیو دنساجی دفابر یکی کار گرانو دافغانستان دکار گرانو داتحاد یی ترمشری لاندی ستر میتنگ جوړ کړ اوپه هغـــــه کی یی دو یتنام دسو سیا لستی جمهوریت پر ضد دچین دولسی جمهوریت وسله وال اقدام محکوم کړ ۰

**۳۰ر۱۱ر۱۳۵۷**

دملی بس دتصدی ریاست دبر ښنابسونه دمراسمو په ترڅ کی دمالیی دوزیر عبدالکریم میثاق له خوا دپښی په پری کو لـــــو سره په کار واچول شول ۰

**۱ر۱۲ر۵۷**

دافغانستان د سو لی او پیو ستو ن د سازمان غړ یو دعامی روغتیا دمو سسی په تا لارکی دیوی غونډی په ترڅ کی دویتنام دسو سیالیستی جمهوریت په خاوره باندی دچین دولسی جمهوریت وسله وال تیری وغانده اوپه دی باره کی یی یو پریکړه لیك صادر کړ ۰

**۱ر۱۲ر۵۷**

تراوسه پوری نژدی شل زره ارزښتناك تاریخی آثار چی په نړی کی یی ساری ندی لیدل شوی دشبر غان دښار دشمال ختیځ په پنځه کیلو متری په طلا تپه کی دافغانـی او شوروی لرغون پو هانو دکیند لـــــو او پلټنو له امله لاس ته راغلی دی ۰

**۸ر۱۲ر۵۷**

دافغانستان دځوانانو د خلقی سا زما ن درهبری هیات او دځوانانو دخلقی ساز مان دولایتی کمیټی غړ یو دبېرك شینواری په مشری فوق العاده غونډه وکړه او دهغـــی په تر څ کی یی دویتنام دقهر مانو خلکو په خاوره باندی دپر دیو قوا وو تیری وغانده او دهغه تلگرام متن یی چی دملگری ملتودسرمنشی ډاکتر کورت والد هایم په نامه مخابره شویدی تصویب کړ ۰

**۱۵ر۱۲ر۵۷**

دخلکو روغتون په نامه دکندهار دښاردوه سوه اوپنځوس بستریزروغتون دولایتی کمیټی دمنشی اودکندهاردوالی لهخوادپټی په پریکولو سره پرانیسل شو ۰

**۱٦ر۱۲ر۵۷**

دبلخی ابـن سینا در ملځی په چوکاټ کی ٦ دولتی در ملتونونه پرانستل شول ۰

**۱۷ر۱۲ر۵۷**

دافغانستان دخلکو دستر اوپیاوړی لارښود دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم نورمحمد تره کی دپیغام په لوستلوسره دښځی بین‌المللی ورځ په ټول هیوادکی دستروټولنو په جوړیدو سره ونمانځله شوه ۰

**۲۰ر۱۲ر۵۷**

دصدراعظم دمرستیال اودبهرنیو چارودوزیر حفیظ الله امین په وینادمرکز دورځپانو جریدو او دولایتوو نود اطلاعاتو او کلتور دمدیرانو

خلقي سيمينار دافغانستان دخلکو دراډيو تلويزيون په ستر تالار کې پرانيستل شو .

۲۳ر۱۲ر۵۷

دهيواد دخلکو دپياوړی مشر او ښوونکی دافغانستان دخلکو ددموکراتيک گوند دمرکزی کميټې دعمومي منشي دانقلابي شورا درئيس او صدراعظم نورمحمد تره‌کي په لارښوونه له‌کوچيانو سره دمرستي عالي کميسيون دکرنې او ځمکو داصلاحاتو په وزارت کې جوړشو .

۲۷ر۱۲ر۵۷

دافغانستان ددموکراتيک جمهوري حکومت داعلاميي په اوريدو لوسره زموږ په زړونوتنو وطـــن پالونکو او زړ وروخلکو چې کارگران بزگران ، روشنفکران ، استادان، محصلين، دانقلاب ددفاع دکميټوغړ ی‌اودکابل دښار خلک يکې وو دمار شونو په کولو اودغونډ ويـــه جوړ ولو سره دايران داوسنيو مرتجعومذهبي واکمانو عملونه چې دمذهبي تعصب له مخې زموږ دهيواد دخلکو ترمنځ بي اتفاقي اچوي په کلکه وغندل .

دافغانستان ددموکراتيک جمهوري حکومـــت اعلاميه :

گرانو وطنوالو به اوريدلي‌وي‌چې تقريبا يوه نيمه مياشت پخوا تهران راډ يو وويل چي دوی اوه زره افغاني تبعه سره يو ځـــای کړي دي او ژربه يي افغانستان ته ستا نه کړي .

داپه حقيقت کې افغاني تبعه نه ووبلکې ايراني عسکر و چې زموږ دهراتي خلکوپه لباس کې چمتو شوي وو . ددغو او وزرو کسو له‌جملې څخه څلور وزرو کسو وکړی شول چې د هرات دښار او شاوخوا علاقوکې دافغاني تبعې په نامه په هرات کې دايراني قونسلگرۍ په مرسته ځای په ځای شي‌او هلته اړو دوړه مينځ ته راولي .

دری څلور ورځې مخکې هم دتهران راډيو يوه اوږده اعلاميه خپره کړه چې په هغـــی کې يې دا ټکې هم ځای کړي وو :

دشيعه گانو مجاهد آيت اله شريعتمداری نړی ته اعلان وکړ چې په افغانستان کې‌هغه مسلمانان چې له ايران سره ديني اودوروری رابطه لري ځورول کيږی .»

ددی اعلاميي غټ مقصد دادی چې‌دافغانستان زيار ايستو نکی شيعه گان دخپل خلقـــی حکومت په ضد ولمسوی دايران او سنـــی مر تجع مذهبي وا کداران د خپل مذهبـــی تعصب له‌مخې هلې ځلې کوی چې زمو ږ انقلاب له ستو نزو سره مخامخ کړی .

دافغانستان پياوړی زيار ايستو نکـــی مسلمانان به دخپلو مېړ نيو او ننگيا ليو پلرو نو په شان په خپله خاوره دپر دو تيری ته هيڅکله اجازه ور نکړی او پـــه ډيره ميړانه اوسر ښندنه به له هر ډول دښمنانو سره په هرجامه کې‌چې‌وه‌وجنگيږی.

دگـــران افغـــانستان نجيبـــو او زړ ورو خلکو ته بلنه ورکوله کيږی چې خپـــل يو مو ټی توپ لاپسی ټينگ او پياوړی کړی او زموږ پر خاوره او دوطن په ننگ

**او نا موس باندی تیری کوو نکو ته کلک گو زارونه ور کړی .**

**په تیره زموږ هراتی ورونه با یـــد دغه تیری کوونکی او دهغو خا ئن پلو یان هر چیرته چی مونده کړی سمد لاســـه دی حکو متی مقاما توته وسپاری .**

**دافغانستان ددموکراتیـک جمهوریـــت د حکومت اعلامیه .**

**۱۸-۱-۵۸**

دحمل په ۱۸ورځ یوډیر شمیر پاکستانی عسکر وپه افغانی جامو کی‌دپښتنو له خاوری دپکتیا په‌ولایت کی په دی لاندی څـلورو افغانی تانو یرغل را ووړ ،

قدم تانه خونی تانه، لږه تانه، ببرک‌تانه اودافغانی امنیتی‌قواووادو پاکستان یرغلگرانو ترمنځ کلکه جګړه ونښته‌او په نتیجه کـی کی‌وروسته له هغه‌چی‌پاکستانی یرغلگرانو ته دسردرانده تلفات ورسیدل ټول‌له افغانـــی خاوری څخه و شړل شول اوه کسه افغانی محافظین هم شهیدان‌شو یدی .

په‌دی وسیله پاکستانی حکومت ته اخطار ورکول کیږی چی پرافغانی خاوره باندی‌لـه یرغل څخه په کلکه ځان وژغوری او‌په‌سیمه کی‌دسولی دخرابید ومخه ونیسی .

* دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت‌د انقلابی وظیفو داساسی کرسو اود ښوونی‌او روزنی د وزارت د پرمختیایی پروگرامونوله مخی دپروان دشپی لیسه دمراسمو په ترځ کـــی دولایتی کمیټی دمنشی اودپـــروان والی له‌خوا پرانستل شوه .

**۱۹-۱-۵۸**

دثور دستر انقلاب‌دشهیدانودځلی دبنسټ تیږه د پکتیا ولایت والی او دعسکری پوځ قوماندان د درندو مراسمو‌په ترځ‌کی دگردیز په‌ښارکی کیښودله .

**۲۰-۱-۵۸**

دلومړی وزیر د مرستیال ډاکترشاه‌ولی‌په مشری مالی او اقتصادی کمیسیون دمالیی‌پلان اوسوداگری دوزیرانو په‌گډون د لومړی‌وزارت په‌مانی کی جوړ شو .

**۲۱-۱-۵۸**

زموږ مقدسه خاوره دپاکستان دارتجاعی عسکر ودتیری او دپاکستان ارتجاعی ټولنوته‌د اخطار په‌باب دافغانستان‌ددموکراتیك جمهوریت دحکومت له‌اعلامیی څخه دهیواد په بیلو بیلو برخوکی دافغانستان شریفو او زړوروخلکو ملاتړ او ننگه وکړه او دپاکستان دارتجاعی ټولنه او دایران دمذهبی متعصبو مرتجعینو خاینانه عملونه یی په کلکه وغندل .

**۲۵-۱-۵۸**

دافغانستان دسترمشر دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند دعمومی منشی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت‌دانقلابی شورا د رئیس اودوطن ددفاع‌دعالی‌شوادرئیس نورمحمدتره‌کی ترمشری لاندی دافغانستان په دموکراتیـك جمهوریت کی دوطن ددفاع عالی شورادخلکو په‌کورکی چی ددغی‌شورا مرستیال دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت‌لومړی وزیرحفیظ الله

امین اونور ټول غړی حاضر وو غونډه وکړه.
پدغه غونډه‌کی دڅور له انقلاب اوزموږ له خلقی نظام څخه دافغانستان دمیړنیو خلکو پراخ‌ملاتړ دخلقیانو د وطنپالنی مبارزی او دافغانستان دخلکو دقهرمان وسله وال پوځ‌له میړانی او زړورتیانه ډك رول داسی په‌قدر سره تجلیل شوچی د پوره ویاړوړ دی همدا ډول پدی غونډه کی دافغانستان د دفاعـــی طاقت دلاډیری پیاوړ تیا او دافغانستان پـــه کورنیو چاروکی د بهرنیود ښمنانو دمداخلو اوزموږ دوطن پرناموس دهغوی دوسله‌والو بریدونود شنډ ولو او پوره نابود ولو په‌باره کی‌لازم تصمیمونه ونیول شول. دغه غونډه‌له غرمی څخه وروسته تریوی بجی اوشلو دقیقو غرمی څخه وروسته تریوی بجی اوشلودقیقو پوری اوږده شوه .

**دافغانستان ددموکراتیك جمهوری حکومت اعلامیه**

زموږ انقلابی، غیرتی او وطن پا لو نکی خلك خبر دی چی دافغانستان خلقی اوانقلابی دولت دڅور دځنځیر ما تو و نکی او پـــه شانه تلو نکی انقلاب دبری له هما غـــو لو مړ یو وختو نو څخه په ډاګه څرګنده‌کړه چی افغانستان له ګاونډ یو هیوادو نـــو سره دښوا ړیکو هیله من دی ، په سیمه‌او نړی کی سولی ته زیاته اړتیا اوعلا قمندی لری ،چی وکو لای شی خپل انقلا بـــــی پرو ګرامونه دهیواد دزیار کښو خلکو پـــه ګټه عملی کړی .
له‌بده مرغه لیدل کیږی چی بین المللی ار تجاع امپر یالیزم او کین افرا طیــــون، په توطئو اودسیسو سره زموږ دانقلاب په لاره کی ګانی اچوی .

دغه راز داکار زموږ له وطنوالو څخـــه پټ نه دی ، چی دڅور دماتی نه خوړو نکی انقلاب له بریا لیتوب نه وروسته یوی ډلی خائنانو یا خپلی ګټی په خطر کی ولیدلی‌اویا دخلکو دپوښتنی له‌ویری وتښتیدل اولـــه سر حدونو په خوایی دخپلو با دارانو لمنی ته پناه یو وړه .

دد غو فرار یانوا و زموږ دخلکو ددښمنانو دفعالیتو نو خبر دپښتنو ، بلو څو په‌خاوره او دپاکستان په مرکز اسلام آباد اورا ولپنډۍ او نورو سیمو کی‌په مبالغه امیز . تو ګه خپر یږی دهغه هیواد رادیو او ارتجا عـــی جر یدی او خپرو نی دغه خبر ونه خپروی او هغو ته‌بیلی بیلی بنی ورکوی.
دځینو خبری اژانسونو نورو خبر ځایو نو له خولی دغه ډلی او مرتجع عنا صر ددغـــو سیمو په کمپونوکی په افغانستان کی‌دتخریبی عملیاتو له پاره‌روزل کیږی .

دځینو جګړه ما رو امپر یالیستی او کینو افراطی تیری کو ونکو هیوادو نو مر بیان دهغوی په روز نه اوو سله وال سمبا لښت کی زیاته مرسته کوی. او مالی مر ستی اوتبلیغاتی وسایل دهغوی په واك کـــی ایښودل کیږی اوپه دی ډول بیابیادافغانستان په کو رنیو چاروکی څرګنده اوله تیری ډکه لاس وهنه کوی .

دپاکستان له حکو مت سره دافغا نـــــی مقا ماتو دبیابیا تما سو نو سره سره چی ددو ستی او ښواړیکو لاپی کوی ددغو عناصر وفعالیتو نه‌نه یوازی بند نه شول ۰بلکی‌ډیر سخت او ډیر پراخه شو یدی ۰

زموږ شرافتمند اوزړ ور زیار ایستونکی دافغانستان غیر تی خلك دخپلو نیکو نـــو دلاری پیروی کوی ۰لکه ځنګه چی یـــــی دستمګرو تیری کوو نکی او استثمار ګرو لاس دهغه وخت له‌افسا نوی قدرت سره له بیخه پری کړ نن بههم دهغوی اجیرا نو ته دعبرت درس ورکړی ۰

دافغانستان خلك ښځی دی که نارینه زوړ دی اوکه ځوان خپل یو والی دستر ګی‌دکسی په څیر ساتی لکه دستر غره په څیربه په خپل پولادی ستوك سره دخپل ګران هیواد او دڅور دانقلاب ددښمنا نو په خولی ګوزار وکړ ی۰

دوطن ټولو زیار کښو قهر ما نواو زړورو بچیا نو ته بلنه ورکوله کیږی هر چیر ی‌چه دی‌او‌په هروخت کی چی دهیواد په کارفکر کوی زیاتی هلی ځلی دی وکړی چـــــــی ددوی نا ولی دښمنان په بیلو بیلو ما سکو نو او څیرو سره خپل ځانونه پټ نه کړای شی هر چیری چی هغوی پیدا کوی سملاسی دی حکو متی مقا ماتو ته وسپاری یا دی‌پری نږدی چی دوطن دناموس سپینه او پـــاکه لمنه دمر تجعینو دمسلمان ډوله پیر نګیا نو دلندن او پاریس ددغو نو کرانو په تورو لاسونو سره لکه داره شی دوطن له مورڅخه دفاع وکړی ، دښمنا ن له منځه یو سی ،اود خپلو غیرتی پلرو نو اود تاریخ دمیړنیـــــو ار وا ډیره خو شحاله کړی ۰

۱۸ر۱ر۵۸

نژدی څلور زره تنه ارتجاعی او انقلابی ضد عناصر چی دافغانانو‌په جاموکی افغانستان ددموکراتیك جمهوریت دامنیتی قواوو اودهرات دزیار ایستونکو خلکو له خواپه کلکه ونکول شول ۰

۱۸ر۱ر۵۸

په‌هرات کی دایران‌جنرال قنسل‌جواد هاشمیان دافغانستان ددموکراتیك جمهوری حکومــت لخوا یونا مطلوبه سړی اعلام شویدی ۰

۱۷ر۱ر۵۸

زموږ دخلقی‌رژیـــم پرضد دایران دمذهبی حکومت دمتعصبو واکمنانو دپاکستان دارتجاعی ټولنو دامپریالیزم دنمایندګانو اوتوری ارتجاع دنوکرانو توطئه دسیسه زهرجن تبلیغات او بیشر مانه لاسس وهنی دهیواد دزرکونو تنو شریفو اوزیار کښو خلکو له‌خوا دمارشونو‌په کولواودغونو وپه جوړ ولو سره په کلکه‌سره محکوم اووغندل شول ۰

۱۸ر۱ر۱۳۵۸

دافغانستان دخلکو ددموکراتیك ګونـــــد دمرکزی کمیټی‌غړی دکابل‌ولایت دګوندی‌کمیټی منشی عدلیه وزیر او لوی څارنوال عبدالحکیم شرعی جوزجانی چی دیو ګوندی هیات پـــه مشری دشوروی سوسیالیستی جمهوریتونود اتحاد دکمونست ګوند په بلنه دیو دوستانه سفرله پاره هغه هیواد ته تللی ووطن ته راغی

دیوه خبر له مخی خوروړخی‌مخکی دپاکستان دبهرنیوچارو وزارت په اسلام آباد کــــی دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت په سفر باندی دهغه هیواد دبهرنیو چارو وزارت‌کی‌له دی امله چی گواکی دافغانستان له خوادکرمی دناوی په‌یوه سیمه باندی دتوپ ډزی شویدی احتجاج کړیدی ٠

دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دبهرنیو چارو دوزارت نطاق دپاکستان دبهرنیوچارو دوزارت دغه بی اساسه او غلطه ادعا دوی او هغه له حقیقت نه‌لری بولی دغه نطاق څرگنده کړه چی دافغانستان‌انقلابی‌دولت‌دهیواد دامنیت دساتنی اودخپلی خاروی‌دتمامیت ددفاع‌دستری وظیفی په‌پام کی لرلوسره په‌سیمه‌کی له‌ستولی او امنیت سره سخته مینه لری اودانقلاب دهدفونو اوارمانونو دسرته رسولوپه غرض ورته زیاته اړتیالری نطاق زیاته کړه افغانی مربوطو مقاماتو په زیاته پاملرنه اومینی‌سره دهر ډول داسی پیښی دمنځ ته راتللو چی له گاونډ یوهیواد واو پاکستان سره دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت اړیکی خړپړکړی مخه نیولی اووبه یی نیسی ٠

**۱۳ر۱ر۱۳۵۸**

**دافغانستان ددموکراتیک جمهوری حکومت اعلامیه :**

افغانستان تل دخپلی مترقی اوسو لــه غوښتو نکی پالیسی له‌مخی په منځنی‌ختیځ کی دیوی عادلانه او د وامدار ه‌سو لـــی غو ښتو نکی دی دعربو دنیول شو یوسیمو دآزاد ولو او دهغوی دغصب شو و حقو قو په نظر کی ساز ش کارانه تلا همو نــه دبیر ته ور کولو دپاره دعر بی خلکــــو او دفلسطین دمبارزو خلکو له مبارزو شخه یی ژور اوبی دریغه ملاتړ کړی او کوی‌یی٠

دافغانستان دموکراتیک جمهوریت ټینگه عقیده لری چی په منځنی ختیځ کی‌ددوامداری او عادلانه سو لی تامین یوازی هغه وخت میسر ید لای شی ٠چی داسرائیلو تیـــری کو ونکی پو ځ چی دامپر یا لیزم پــــه ډاډیی دعر بی سیمو نیو لو او دفلسطیـن دخلکو دحقو قو له بیرته ورکولو شخه ډډه کو لو ته دوام ور کړیدی په سملا ســـی توگه او بی له‌کوم قید او شرطه له عر بی نیو ل شو یو خاورو شخه ووځی او دفلسطین دخلکو روا حقوق دهغوی له خوادفلسطین دیوه خپلواك دولت دجوړیدو په گډون پوره‌بیرته ور کړی شی ٠

دافغانستان دمو کراتیك جمهور یت پــــه دا سی حال کی چی دفلسطین مو ضوعد منځنی ختیځ دستـــری کشالی زړی گڼـــی په‌دی عقیده دی چی په منځنی ختیځ کـــی دعادلانه او دوامداری سولی دټینګیدودپاره په هر ډول سو له غو ښتونکو هلو ځلو کی باید دفلسطین دخلکو دریښتینی یواز ینـــی نما ینده په توگه دفلسطین دآزادی دموسسی په گډون ټول علاقه لرو نکی اړ خو نـــه په برابر وحقو قو سره گډون وکړی ٠

ددغه اسا س له مخی دافغا نستان پــــه نظر دمنځنی ختیځ په باب دا نورالسا دات او مینا خیم بیگین تر منځ وروستی دزیاترو سو له دو ستو او متر قی هیواد و اوقوتونو

او دعر بو او فلسطین دخلکو دحقو قـــو پرضد گڼل کیږی دمنځنی ختیځ دحا لاتــو د زیاتی پیچلتیا سبب کیږی اوله تو ظلی پر ته بل شی نه دی ۰

دافغانستان دمو کراتیك جمهوریت عقیـده لری چی دمنځنی ختیځ په باره کی دمصر او اسرائیلو ترمنځ ورو ستیو موافقو هغــه امکانات چـــی په منځنی ختیځ‌کی دیوی دوا- مداری او عادلانه سو لی دتا مین دپاره‌موجود وو تر زیاتی اندازی له منځه وړ یدی ۰

دافغانستان دمو کراتیك جمهوریت دعربو دخلکو دیووالی او پیو ستون دکمز وری‌کولو او دفلسطین دخلکو دمبارزو دبری په لاره کی دخنډو نو دپیدا کولو دپاره دامپر یالیزم صیهیو نیزم اوبین المللی ارتجاع دتو طئونه ډکی او گـډی هلی ځلی په کلکه محکوموی او دعر بو له مترقی خلکو او قوتو نـــو او دفلسطین له مبارز و خلکو سره یو ځل بیا دخپل ځان او دافغانستان دزړو روخلکو پیو ستون تا ئید وی ۰

په همدی اساس افغانستان په بغداد کی دعر بی هیواد ونو دبهر نیو چا رو او دمالیی دوزیرانو ددوستی تولنی دبر یکړو ښــه هر کلی کړی اوعقیده لری چی دعر بـــو او فلسطین خلك به دخپلو گډود ښمنا نو او د هغوی دتو طئو په وړاندی دبشپړ یو والی له لاری وکولای شی ، له خپلی دا عیـــی شخه له خپلو هیلو سره سم دفاع وکړی‌او ورو ستی بری ته ورسیږی ۰

۱۲ ر ۱ ر ۵۸

دانقلابی شورا دفتر خبر راکړی دی چی دافغانستان دخلکو دد مو کراتیك گو نـــد دمر کزی کمیټی دعمومی منشی دافغانستان‌د دمو کراتیك جمهوریت دانقلا بی شو راد رئیس نورمحمد تره‌کی له حضور شخـــه چی دوطن ددفاع دعالی‌شورارئیس‌اودافغانستان دخلکو دوسله وال پوځ اعلی سرقوماندان دی ۰دافغانستان په دمو کراتیك جمهوریت‌کی دوطن ددفاع دعالی شوردقانون دشپږمـــی مادی له مخی دانقلابی شورا درئیس دگارد قوماندان جگړن محمد یعقوب دافغا نستان ددفاع دوزارت دلوی در ستیز په تو گـــه مقرر کړ یدی ۰

۱۶ ر ۱ ر ۱۳۵۸

دلوړی وزارت دتحر یراتو ریا ســـت خبر را کوی چی د افغانستان دد موکراتیك جمهوریت دانقلابی وظیفو داساسی کرښوله مخی او دخلکو دستر مشر ، دافغانستان‌دخلکو ددمو کراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی د افغانستان دد مو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورا درئیس نورمحمدتره‌کی دلار- ښو ونو او خلاقانه نو ښتونو په رنا کـــی دهیواد نجیبو خلکو ته دډیر ښه او ډیـــر گټور خد مت په مقصد لکه چی مخکی هـــم اعلان شوی دافغانستان ددمو کراتیك‌جمهوری حکو مت په تشکیل کی دتقنینی فر مان په وسیله دافغانستان دد مو کراتیك جمهور یت دانقلابی شورا له حضور شخه دترانسپورت دوزارت په نامه منظور شو یدی ۰

۳۱ر٤ر٥٧

دوزیر انو دمسافر تونو کرو نولوژی:

دبهرونی اوروزنی وزیر دستگیر پنجشیری دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دیوه هیأت په مشری دآسیایی اوپاسفیك حوزی دهیواد دبهرونی اوروزنی دوزیرانو په شلور مه سیمه ایز ه جرگه کی دگهون له پاره کولمبوته لاړ.

۳ر٥ر٥٧

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دلوړی رتبی یودولتی اوگوندی هیأت چه دمرکزی کمیټی ددارالانشا او دسیاسی بورو غړی دعامی روغتیا وزیر ډاکتر شاه ولی ، دمرکزی کمیټی دسیاسی بورو غړی دمالیی وزیر عبدالکریم میثاق پکی برخه لری دکیوبا د جمهوریت دانقلاب په پنځه ویشتم تلین کی دبرخی اخیستلو لپاره هاوانا ته لاړ .

۱۲ر٥ر٥٧

دبهرونی اوروزنی وزیر ملگری دستگیر پنجشیری چه دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت دیوه هیأت په مشری دآسیایی اوپاسفیك دسیمی هیوادو دبهرونی اوروزنی وزیرانو په سیمه ایزه شلورمه جرگه کی دگهون له پاره کولمبوته تللی ووکابل‌ته‌راغی.

۱٦ـ٥ر٥٧

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت لوړرتبه گوندی اودولتی هیأت چی مشریی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك گوند د مرکزی کمیټی ددارالانشاء سیاسی بورو غړی اودعامی روغتیا وزیر ملگری ډاکتر شاه ولی دی او دهیأت غړی چی دافغانستان دخلکو ددموکراتیك‌گوند دمرکزی کمیټی دسیاسی بورو غړی اودمالیی وزیر ملگری عبدالکریم میثاق گوندی ستر کدراو دمخابراتو وزارت معین ملگری انجنیر محمد ظریف دی دکیوبا دجمهوریت دانقلاب په‌پنځه ویشتمه کالیزه کی له گهون اوهغه هیواد ته ددوستانه‌سفر نه‌وروسته کابل‌ته‌راغی. راغی .

۲۸ر٥ر٥٧

دسود اگری وزیر ملگری عبدالقدوس غوربندی چی دسوداگری دپراخوالی دپاره داسکاپ سیمی دوزیر انو په جرگه کی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دهیات‌مشر دی نوی ډیلی ته لاړ .

۳۱ر٥ر٥٧

داطلاعاتو او کلتور وزیرملگری بارق‌شفیعی دیوه هیات په مشری دشوروی سوسیالیستی جمهوریتونو اتحاد دحکومت په بلنه مسکوته لاړ .

٤ر٦ر٥٧

دعامی روغتیا وزیر اودپلان جوړ لو دوزارت وکیل ملگری ډاکتر شاه ولی دپرمختیایی هیوادو دتخنیکی همکاریو دجرگی په غونډو کی دگهون لپاره چی دملگروملتو له خوا په بوینس آیرس کی جوړیږی دیوهیأت په مشری ارژانتین ته لاړ .

٥ر٦ر٥٧

دسوداگری وزیر عبدالقدوس غوربندی په ډیلی کی دسکاپ سیمی هیوادو دوزیرانو په جرگه‌کی له گهون وروسته هیوادته راغی .

۹ر٦ر٥٧

دسوداگری وزیرملگری عبدالقدوس‌غوربندی دیوه هیأت په‌مشری دبلغاریا دولسی‌جمهوریت

دحکو مت په بلنه صو فیی ته‌لاړ .

* داطلاعاتو اوکلتور وزیر ملگری بارق‌شفیعی چی دیوه هیأت په مشری دشوروی اتحاد دحکومت په بلنه دیوه رسمی اودوستانه سفرله پاره هغه هیوادته‌تللی ؤ هیواد ته‌راغی.

۵۷ر۶ر۱۶

دسیاسی بورو غړی دعامی روغتیاوزیر او دپلان جوړولو دچارو وزارت‌وکیل ملگری‌ډاکتر شاه ولی دارژانتین څخه هیوادته راورسید .

۵۷ر۶ر۱۴

دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دسیاسی بورو غړی اودفواید عامی وزیر ملگری دستگیر پنجشیری دیوه سترگوندی اودولتی هیأت په مشری دکوریا دولسی دموکراتیک جمهوریت حکومت په‌بلنه دکوریا ولسی دموکراتیک جمهوریت دجوړیدو نه دیرشمه کالیزه‌کی دگډون او دوستانه سفرله پاره هغه هیوادته لاړ .

۵۷ر۶ر۱۸

دخلکو ددموکراتیک گوند دسیاسی بورو دغړی اودفواید عامه وزیر ملگری دستگیر پنجشیری په مشری دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت‌گوندی اودولتی هیأت دپیونگ‌یانگ په جمنازیوم کی دکوریا دخلکو ددموکراتیک جمهوریت دجوړیدو د دیرشمی کالیزی دپرانستلو په غونډه کی گډون وکړ .

۵۷ر۶ر۱۹

دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت یولوړ رتبه گوندی اودولتی هیأت دافغانستان دخلکو ددموراتیك گوند دمرکزی کمیټی دسیاسی بورو غړی اودکرنی اوځمکی اصلاحاتو وزیر ملگری ډاکتر صالح محمد زیری په مشری دحبشی دحکومت په بلنه دیوه رسمی او دوستانه سفرله پاره هغه هیوادته لاړ .

*دسو داگری وزیر عبدالقدوس غوربندی چه دیوه هیأت په مشری دبلغاریا دخلکو جمهوریت دحکومت په بلنه په یوه رسمی اودوستانه سفر هغه هیواد ته تللی ؤ هیوادته راستون شو .

۵۷ر۶ر۲۲

دافغانستان ددموکراتیک جمهوری هیأت دشوروی اتحاد په الماتا کښی دروغتیایی څارنواولومړنیو دروغتیایی خدمتونو دنړیوالی جرگی په غونډوکی تر گډون وروسته هیوادته راغی .

۵۷ر۶ر۲۶

دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دسیاسی بورو غړی اودمالیی وزیر ملگری عبدالکریم میثاق دیوهیأت په مشری دنړیوال وجهی صندوق او دنړی وال بانك دکورنرانو دبورو په کلنیو غونډوکی دبرخی اخستلو له پاره دامریکا متحدو ایالاتو ته لاړ .

۵۷ر۶ر۲۷

دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دسیاسی بورو غړی اودفواید عامی وزیر ملگری دستگیر پنجشیری چی دیولوړرتبه گوندی اودولتی هیأت په مشری دکوریا دخلکودموکراتیك جمهوریت دحکومت په بلنه دیورسمی او دوستانه سفر لپاره هغه هیوادته تللی و هیوادته راغی .

